بسم اللہ الرحمن الرحیم

قل جاء الحق وزهق الباطل إن الباطل كان زهوقا (القرآن)

من أتاكم وأمركم جميع على رجل واحد يريد أن يشق عصاكم ويفرق جماعتكم فاقتلوه - رواه مسلم مشكاة باب الامارة (۳۲۰/۱)

# القول السديد

في

# جواب قول العنيد

تالیف.


ابو یوسف محمد ولی درویش

الاستاذ بجامعۃ العلوم الاسلامیہ علامہ بنوری

ٹاؤن کراتشی ۷۴۸۰۰

بسم الله الرحمن الرحیم

وقل جاء الحق وزهق الباطل إن الباطل كان زهوقا (القرآن)

من أتاكم وأمركم جميع على رجل واحد يريد أن يشق عصاكم ويفرق جماعتكم فاقتلوه

رواه مسلم، مشكاة باب الامارة

(۱ - ۳۲۰)

# القول السدید فی جواب قول العنید

په دی کتاب کښ په تقلید باندی د امین الله غیرمقلد دشبهاتو او وسوسو جائزه اغستے شویده او ازالہ ئے شویده۔


تالیف...... ابویوسف محمد ولی درویش (المتوفی ۱۹۹۹ء)

الاستاذ بجامعة العلوم الاسلامیه علامه بنوری تاؤن کراتشی ۷۴۸۰۰

# فهرست مضامین

بسم الله الرحمٰن الرحيم

الحمد لله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفىٰ۔

امّا بعد : يوه ورځ په كمره كښې ناست وُوم، په دېكښې يو طالب د تقليد په رد كښې يو ليكلے شوے كتاب راته راوړو ، او وے وئيل ، چه دې سړي د دې كتاب په وجه سره ، ډير خلق بے لارے كړه ، ما وے ابليس غيرمقلد دے ، او خلق بے لارے كوي۔ نو كه د ابليس په لاره روان سړے دا كار اوكړي ، نو څه بعيده خبره نه ده ، ځكه چه د هغه مقصد هم دا وي ، چه د امت اتحاد تس نس كړي ، او په دوئ كښې اختلاف او انتشار پيدا كړي۔ ځكه چه د تقليد نه بغير يو قدم تله هم ګران دي۔ لكه دا خبره به په ځپل ځائے راشي ، اِنشاءَاللّٰه تعالیٰ

ډير كسان د تقليد معنى داسے ذكر كوي ، چه په اوريدو سره ترې د خلقو نفرت پيدا شي ، وائي تقليد په لغت كښې په مرئ كښې پړې اچولو ته وائي۔ لكه د سپي په مرئ

کښې پټه اچول، یا د ښاروې په غاړه کښې رسۍ اچول. او حال دا دے، چه کله اصطلاحي معنی وا غستے شي، نو لغوي معني مراد نه وي. او تقلید په اصطلاح کښې دچا خبره منل، لکه د اتباع معنی ده، په چا پسے تلل، او مراد ترې تابعداري اغستے کیږي، خو دا خلق دا سے معنی ذکر کوي، چه دخلقو ترې په تښتو او ریدو سره نفرت پیدا شي.

ګوره صلاة په لغت کښې تحریك الصلوین یعنی کوناټو خوزولو ته هم وائي (کما فی غیاث اللغات) خو اصطلاحي معنی ئے مونږ اغستے شي، ورنه بیا خو بیکار دی چه که غیر مقلدین د سبلمنے نه صرف کوناټو له یو ښنړورکړي او ورئے خوزوي، نو مونږ دئ اوشي. خوځما دا خیال دے، چه غیر مقلدین به هم دا معنی نه اخلي، بلکه اصطلاحي معنی به اخلي، نو د تقلید هم اصطلاحي معنی یعنی دچا تابعداري کول، اغستل پکار دي. ګنے دا خو بیا د شعیب علیه السلام د قوم طریقه شوه. "ویلٌ للمطففین" ځان لره یوه قاعده او بل لره بله قاعده.

# تقلید او اتباع یو شے دے:-

لکه څرنګه چه اتباع د پیروي یعنی دچا د تابعداري په معنی

راځي، تقلید هم پدې معنی راځي، په غیاث اللغات کښې دي۔

" اتباع بروزن اتفاق بمعنی پیروی - تقلید گردن بند در گردن انداختن وکار بعهدهٔ کسی ساختن، و برگردن خود کار گرفتن، و مجازاً بمعنی پیروی کسے بی دریافت حقیقت آن"

باقي د دواړو په مینځکښ دا فرق کول، چه تقلید د چا بې دلیله خبره منل، او اتباع دا چه په هغې باندې دلیل وي. دا فرق غلط دے، ځکه چه په قرآن مجید کښې راځي۔

" بل نتبع ما وجدنا علیه آباءنا "

دلته د دوئ د پلار نیکه سره کوم آیت یا حدیث وُو، چه دوئ ئے اتباع کوله، لکه د دے نور مثالونه په هم که خدائے ته منظور وي، په خپل ځائے باندې راشي. نو معلومه شوه چه که تقلید بې دلیله د چا تابعدارئ ته وائي، نو اتباع هم بې دلیله تابعدارئ ته و یُلے کیږي. لکه په دې تیر شوي آیت کښې چه دی،

اوس چه د تقلید او اتباع په مینځکښې فرق نشته، او دواړه په یوه معنی کښې استعمالیږي، نو مونږ وایو، چه فرښتو تقلید اوکړو، حضرت آدم علیه السلام ته ئے سجده اوکړه، او شیطان اونکړو. او ملعون اوګرځیدو - نو په دنیا کښې اول غیر مقلد شیطان دے، اوکه څوک وائي چه نه، بلکه مقلد دے، نو ثابت دِ ئے کړي چه د چا مقلد دے؟ اوکله څنګه چه غلطه

اتباع جائز نه ده، دغسے غلط تقلید هم جائز نه دے۔

الغرض د تقلید نه انکار د اتباع نه انکار کول دی۔ او له دینه خلق تیر ستل گمراهي ده، نن صبا هر طرفته د فتنو زور دے، د فقهے د اهمیت نه او د حدیث د حجیت نه خو انکار وُو، خو اوس لا پکښ د قرآن کریم نه د انکار فتنه هم په زور وشور سره شروع ده، هر طرفته د فتنو باد ونه الوزی په داسے وخت کښ د اسلام او د مسلمانانو خیر خواهي داده، چه په دوئ کښ اتحاد او اتفاق وی، چه غلیم پرے د حملے کولو زړه او نکړے شی۔ خو بعضے تحریکونه د لامذهبیت په شکل کښ دا زور اتحاد نه خوښوی۔ او په مسلمانانو کښ افتراق او انتشار پیدا کول خپله دینی فریضه گنړی۔

هیڅ یو عقلمند هم د تقلید نه انکار نشی کولے، ځکه چه که څوک بخاری یا مسلم گوری، نو د مقلدینو لکه ابن حجرؒ او عینیؒ د شرحو په رڼړا کښ ئے گوری خپل ئے دومره استعداد نه وی، چه د دوئ د شرحو نه د امداد اغستلو بغیر پری پوئے شی، خو بیا هم نعرے وهلے کیږی، چه تقلید نشته، درسته شپه د مقلدینو شرحے اوگوری، او صبا له چه درس ته کینی نو وائی۔ تقلید نشته، تقلید شرک دے گناه ده او جهل دے، گویا ټوله شپه ئے په شرک گناه او جهل کښ

تیره کړی ، دا تنشه نمک حرامی ده نور څه نه دی۔

الغرض دفتنو په وخت کښې نوے فتنے را برخیره کول، ددین هیڅ خدمت نه دے ، خو بیا هم بعضے خلقو دیته بلهے وهلی دی، په دی لړکښی دامین الله چه واڅی په اصل کښی دکونړ دے ، او څان ته پیسبنورے وائی، کتاب "التحقیق السدید (چه په حقیقت کښی غیرسدید دے) فی مسئلة التقلید" دے ، کونړ ملا دتقلید په رد کښی دا کتاب لیکلے۔ او دخپل وس مطابق ئے ډیر زور لګولے دے۔ څما زړه دا نه غواړی چه په داسے قسم خبرو خپل وخت ضائع کړم ، خو دکونړ ملا بعضے زهریلی عبارتونو مجبور کړم ، چه دجواب دپاره قلم کاغذ راواخلم ، او خلق دده د وسوسو او شر نه په امان پاتے شی۔

وماتوفیقی إلا بالله ، علیه توکلت وإلیه أنیب ، وهو المستعان وعلیه التکلان ، حسبی الله ونعم الوکیل ، نعم المولی ونعم النصیر ، وصلی الله تعالیٰ علی خیرالبریة محمد وآله واصحابه أجمعین وعلی من تبعهم باحسان إلی یوم الدین۔

أحقر الوری إلی ربه الغنی

ابو یوسف محمد ولی درویش غفرله

۴ ر ذوالحجه ۱۴۱۶ھ

کونړ ملا کتاب خود تقلید په رد کښې لیکلے۔ او شروع ئے د تقلید نه اوکړه، ځکه چه د تقلید تعریف د نورو نه نقل کوی، او دا عین تقلید دے، ده لره پکار وو، چه د تقلید تعریف ئے دکتاب وسنت نه نقل کړے وے، یا ئے پرے اجماع نقل کړے وے، (اګرچه دوئ اجماع هم نه منی) چه په دی تعریف په فلانی وخت کښې اجماع شویده۔ خو دے د دی په ځائے دامتیانو د قول نه د تقلید تعریف ثابتوی۔

کونړ ملا صاحب آخر په دی تعریف باندے څه دلیل دے؟ ځکه چه دلیل ستاپه نیزد منحصر دے په کتاب وسنت کښې، او بیا سرنامه ئے د شوکانی نه کیښوده، او شوکانی زیدی دے، او زیدی د شیعه ګانو یو ډله ده۔ او شاه ولی الله رحمه الله په عقد الجید کښې وائی،

الامامیة والزیدیة وهم أهل البدعة لایجوز الاعتماد علی اقاویلهم اه ص۵۶

یعنی امامیہ او زیدیہ بدعتیان دی، ددوئ پہ خبر و اعتماد کول جائز نہ دی،

د شیعہ توب غتہ نښہ دخلفاء راشدینو خصوصًا دحضرت عمر رضی اللہ عنہ سرہ بغض او حسد ساتل دی، او د شوکانی پہ نیل الأوطار کښې د امیرالمؤمنین حضرت عمر رضی اللہ عنہ پہ بارہ کښې د توھین کلمات موجود دی۔ نو د کتاب شروع ئے د دا سے سړی د قول نہ اوکړہ، چہ د شاہ صاحبؒ د قول مطابق بدعتی دے او د حضرت عمر رضی اللہ عنہ توھین کوی۔

کونړ ملا د تقلید پہ تعریف کښې د شوکانی او بیا ورپسے د ابن قیمؒ تقلید کوی او تقلید ته جائز هم نه وائی، هغه د پښتو متل دے، چه کارغه غُل خوری او مښوکه ښخوی، کونړ ملا تقلید هم کوی او انکار ترے هم کوی۔ واقعی چہ

؏ درکفر ہم صادق نۂ زنار را رسوا مکن

## :- دکونړ ملا خیانت :-

پہ عبارت کښې قطع وبرید د غیر مقلدینو پخوا

عادت دے، چه دا او نکړی نو روتهئ ئے نه هضمیږی
د آمدی عبارت ئے نقل کړو، او هغه هم نیمګړے، د پاره
د دے چه روتهئ ئے هضم شی۔
د آمدی پوره عبارت دا دے۔

اما التقليد فعبارة عن العمل بقول الغير من غير حجة تلزمه، وهو مأخوذ من تقليده بالقلادة وجعلها فى عنقه و ذلك كالأخذ بقول العامى وأخذ المجتهد بقول من هو مثله، وعلى هذا فالرجوع إلى قول النبى صلى الله عليه وسلم والى ما أجمع عليه اهل العصر من المجتهدين ورجوع العامى إلى قول المفتى وكذلك عمل القاضى بقول العدول لا يكون تقليدًا لعدم عزوه عن الحجة، اما فى قبول قول الرسول فما دل على وجوب تصديقه من المعجزة ووجوب قبول قول الاجماع قول الرسول وقبول قول المفتى والشاهدين الاجماع على ذلك وان سمى ذلك تقليدًا فلا مشاحة فى اللفظ۔

(۲۹۷-۴)

تقلید د چا په قول باندے بغیر دغه دلیل نه عمل

کول، او دا د تقلا دے پہ غاړه کښې د اچولو نہ ماخوذ دے، او دا لکہ د یو عامی (جاهل محض) پہ قول عمل کول او یا د یو مجتهد ځان پشان د بل مجتهد خبره اغستل، (ځکہ چہ یو سړے عامی وی، نو هغہ د سره دلیل نہ پیژنی، نو پہ دلیل سره بہ مسئلہ څہ او سیائی ع

*او خویشتن گم است کرا رهبری کند*

او پہ یو مجتهد د بل مجتهد تقلید نشتہ) او د دے تعریف نہ دا پتہ او لگیده، چہ د پیغمبر علیہ السلام خبره منل، او د زمانے د مجتهدینو اجماع منل، او د عامی د مفتی خبره منل، او د غسے د قاضی د گواهانو پہ خبره عمل کول تقلید نہ دے ځکہ چہ د دلیل نہ خالی دے، د پیغمبر علیہ السلام د قول پہ منلو معجزه، او د اجماع پہ منلو د پیغمبر علیہ السلام قول، او د مفتی او گواهانو د خبرے پہ منلو اجماع دلیل دے، د یتہ اگرچہ تقلید د ټیلے شوے۔ خو پہ اصطلاح او نوم ایښودلو کښې څہ جهگره نشتہ۔

کوننړ مُلا د اخط کشیده عبارت نقول پر یښودی دے، ځکہ چہ هم دده د منشاء خلاف وو، او هم دده د روایت خلاف وو۔ ځکہ چہ قطع و برید د غیر مقلدینو پېدری روایت دے۔

د آمدیؒ د دے عبارت نه معلومه شوه، چه دمجتهد خبره مثل د دلیل مثل دی، او دا محض تقلید یعنی روند تقلید نه دے، او مقلدین چه دائمه مجتهدینو خبره منی نو دا د دلیل تابعداری ده، اگرکه خلقو دیته تقلید وئیلے

د آمدیؒ د دے عبارت نه د مجتهدینو د تقلید جواز ثابتیږی، او کونړ ملا ترے په تقلید باندے رد ثابتوی

کونړ ملا چه می سراید و طنبوره او چه می سراید
پوئے نه شوے رندے میښے را دکړو په سرګذار

کونړ ملا څه نور تعریفونه هم ذکر کړی دی، او تقلید لے کړے ځکه چه د دے خلقو د قول په حجت کیدو ئے څه دلیل نه دے ذکر کړے۔ یعنی د تقلید درد دپاره ئے تقلید کړے۔

په ص۶ ئے دابو عبد الله بن خویز منداد قول نقل کړے، او دا صاحب په خپله مالکی دے او د امام مالکؒ مقلد دے۔ او په تعریف کښ ئے دده تقلید کړے، په دے تعریف کښ ئے د تقلید او اتباع په مینځکښ فرق ذکر کړے، او حال دا دے چه دا فرق هم دلغت په اعتبار سره غلط دے، او هم قرآن کریم د تصریح په اعتبار

سره ، دابن خویز منداد صاحب تعریف دا دے ،

التقليد معناه فى الشرع الرجوع إلى قول لا
حجّة لقائله عليه وذلك ممنوع منه فى الشريعة
والاتباع ما ثبت عليه الحجة ، ص۶

یعني تقلید دچا داسے قول ته رجوع کولو ته وائی چه په هغے هیڅ دلیل نه وی ...... او اتباع هغے ته وائی چه په هغے باندے دلیل وی۔ دا فرق سراسر غلط دے، لکه مخکښې ذکر شو، ځکه چه دکفارو په باره کښې راځی چه کله دوئ ته اوئیلے شی چه د منزل من الله تابعداری اوکړئ نو دوئ وائی." بل نتبع ما وجدنا عليه آباءنا " یعنی مونږ دهغه څه تابعداری کوُو په کوم چه مونږ خپل پلار نیکه موندلی دی - دلته دکفارو دخپلو مشرکانو پلارانو او نیکونو دکفر اوشرک تابعدارئ ته قرآن کریم اتباع وئیلې ده۔ ولے په دے شرک اوکفر څه شرعی حجت موجود وُو ؟ حاشا وکلا - نو بیا دا فرق کول چه تقلید بے دلیله دچا خبرے منلو ته وائی، او اتباع په دلیل سره خبرے منلو ته وائی، سراسر غلط شو۔ یو معمولی سوچ اوفکر کولو والا هم ددی فرق په غلطئ باندے پوهیږی - خو دکونړ ملا پرے څه؟

کہ صحیح وی او کہ غلط، د تقلید پہ رد کښې ئې نقل کوی۔ او ابن قیمؒ د تقلید پہ تعریف کښې د ابن خویز منداد صاحب تقلید اوکړو، او د امام احمد بن حنبلؒ مقلد خو دے، او وم تعریف ئې د ابن قیمؒ نہ نقل کړے

کل من اتبعت قوله من غير ان يجب عليك قبوله بدليل يوجب ذلك فانت مقلده والتقليد فى دين الله غير صحيح، وكل من اُوجب الدليل عليك اتباع قوله فانت متبعه والاتباع فى الدين مسوغ والتقليد ممنوع صک

یعنی چہ د چا تابعداری پہ تا باندے پہ دلیل سرہ واجب نہ وی، او تہ ورپسے روان ئې نو دا تقلید دے او تقلید پہ دین کښې منع دے، او د چا پہ تا بعداری باندے چہ دلیل وی او تہ ورپسے روان ئې نو دا اتباع دہ او اتباع پہ دین کښې جائزہ دہ۔

او لہ خبرہ دادہ چہ د ابن قیمؒ پہ خبرہ منلو باندے کوم دلیل دے چہ کوئی ملا ورپسے روان دے، او د ابن خویز منداد صاحب پہ خبرہ منلو باندے کوم دلیل دے چہ ابن قیم او کوئی ملا دواڑہ ورپسے روان دی، ولے دا تقلید نہ شو؟

دویمه خبره داده چه کونړ ملا لږ وړاندے د آمدی عبارت ذکر کړے وو، چه د مجتهد د خبرے په منلو باندے دلیل شته. او مقلدین چه د مجتهدینو خبره منی، نو دا په څه دلیل سره ده او منع نه ده.

بلکه دا چه د ابن قیم په دے عبارت کښې دوه حکمونه دی یو جائز او بل ناجائز څه شي ته جائز یا ناجائز وئیل شرعی حکم دے، او د دلیل محتاج دے، ابن قیم پرے نه آیت پیش کړے او نه حدیث. او کونړ ملا پرے ایمان راوړے، کونړ ملا صاحب آخر دا څه دی؟

کونړ ملا په ص۸ باندے لیکی " په خپله غاړه کښې پړی اچول او د هغوی نه په زوره جاهل جوړول او دا پړی بل لره په لاس کښې ورکول چه ته څه وائے د هغے به تابعداریم او ستا د خطاء او رسا به طلبګاریم او قرآن او حدیث چه ستا د قول په مقابله کښې وی د هغے تاویل ته به تیاریم ام" کونړ ملا په ایمان ئے وایه، چه تا په دے تعریفونو کښې هم د غسے او کړه او کنه؟ دا ابن قیم او ابن خویزمنداد وغیره!

تعریفونه دے بغیر د څه دلیل نه ذکر کړه، دا دے بغیر د څه دلیل نه تابعداری او کړه او کنه؟

د تقلید او اتباع په مینځکښې په فرق څه دلیل نشته، بلکه فرق د آیت په رڼړا کښې غلط دے، هغه دِ اومنلو اوکنه - قرآن کریم وائي چه اتباع هم بے دلیله خبرے منلو ته وائي، لکه دکفارو دخپلو مشرکانو پلار نیکه اتباع - او ابن خویز منداد وائي، چه نه اتباع هغے ته وائي چه په هغے دلیل وی - او تا په پښتو سترګو دا فرق قبول کړو، او ځائے په ځائے دے ذکر کوے، دادِ د آیت په مقابله کښې دیو انسان خبره اومنله اوکه نه ؟ لږ په خپل ګریوان کښې سر ورد ننه کړه اوسوچ اوکړه - اوله خدایه او ویریږه، دروغ مه وایه، ځکه چه په دروغژن سړی د الله پاک لعنت وریږی -

کونړ ملا وائي، والله دا د تقلید حقیقت دے الخ یعنی تقلید بے دلیله خبره منل او اتباع په دلیل سره - اوحال دا دے چه دا دے فرق غلطی مــو اولیده، کونړ ملا پړے قسم اوخوړو اوخپل ایمان ئے پړے لکه دچنړچنړے والوزلو، په دروغه قسم ګناه کبیره ده خو دکونړ ملا پړے څه؟ وی دِ کنه -

کونړ ملا مخکښ لیکي، چه نن صبا هسې خلق دقرآن وحدیث نوم اخلي لیکن کله چه یو آیت یا حدیث د مذهب په مقابله کښې راشي نو تا سو ته پته ده چه څومره تاویلو دهغې کوي الخ ص۸

دا هغه قیصه ده، چه غلبیل راپاسی اوکوزې ته وائي چه پتا کښې دوه سوري دي۔ لېږ د خپل کور خبر دِ واخله نو بیا نورو ته هله پیغور کوه۔ اوګوره په قرآن کښې راځي،

"اِذا قرئ القرآن فاستمعوا له وأنصتوا لعلکم ترحمون"

کله چه قرآن لوستلې شي نو تا سوئے اورئ، او چپ اوسئ، او دا که په مانځه کښې وي اوکه دمانځه نه بهر د واړو ته شامل دے۔ او غیر مقلدین وائي، چه نه په امام پسې فاتحه به ضرور لولئ کنې مونځ به دِ او نه شي، او د آیت په باره کښې وائي چه په آیت کښې خطاب کفارو ته دے۔ لږ سوچ اوکړئ، د آیت تاویل چا اوکړو، او دا په کوم حدیث کښې دي، چه په دې ایاتونو کښې کفارو ته خطاب دے، مسلمانانو ته نه دے۔ د دے مطلب

خو دا شو ! چه کله کفار دِ قرآن اوری ، او چپ دِ اوسی ، او غیر مقلدین دِ په آیت " لاتسمعوا لِهٰذا القرآن والغو فیه " یا ندے عمل کوی . ماشاء اللّٰہ .

دغه شان حدیث " من کان له امام فقراءة الامام له قراءة " واخله ، امام ابو صیری رحمه الله په کتاب " مصباح الزجاجة فی زوائد ابن ماجة " کبن وائی ، چه ددے حدیث بعضے طرق صحیح دی ۔ لیکن غیر مقلدین وائی ، نه دا حدیث ضعیف دے ۔ دلته دا آیت او حدیث چا دخپلے رائے نه قربان کړل ، مقلدینو ، او که غیر مقلدینو؟

دغه شان دعدم رفع یدین په حدیث باندے امام نسائی باب تړلے ، " باب ترك ذلك " او غیر مقلد ناصر الدین البانی ورته دمشکاة په حاشیه کبن ویلی " صحیح علی شرط مسلم " ، خو غیر مقلدین دا حدیث نه مني ۔ آخر دا ولے ۔ دا دحدیث نبوی اتباع شوه او که دحدیث النفس ، فالی الله المشتکی ۔

کونړ ملا دابن قیم قول نقل کړیدے " هر هغه شخص چه دهغه په تابعداری خه دلیل نه وی او نه ورپسے روان شو نو تا ته مقلد وائی ، او تقلید په دین دا الله کبن غلط دے ، او دکوم شخص په تابعداری

چه څه دلیل وي، او تا دهغه خبره او منله، نو تا تر متبع واي، او اتباع په دین کښې جائز کار دے، او تقلید ممنوع دے، نقله ابن عبدالبر صکے

څلوایم. ابن قیم چه د ابن عبدالبر خبره او منله نو دا دکوم تبیل نه شوه. ولے د ابن عبدالبر دخبرے په منلو څه دلیل شته؟ چه ابن قیم ورپسے روان دے، که وي، نو هغه دلیل ذکر کول پکار وُو، او که نوی نو ابن قیم خپله هم تقلید او کړو، د غه شان د ابن قیم په تابعدارئ څه دلیل شته؟ چه کونړ ملا ورپسے پټے سترګے روان دے. او که نه وي نو بیا کونړ ملا پخپله هم تقلید او کړو، دا خو ﷺ

" لاتنه عن خلق و تاتي مثله "

والا خبره شوه، او کونړ چه خلقو ته دعوت ورکوی چه تاسو دکونړ ملا په دي خبره سوچ او کړئ نو دکونړ ملا په تابعدارئ آخر کوم دلیل دے؟ کونړ ملا له پکار وُو، چه په خپله تابعدارئ ئے دلیل وړاندے کړے وے، افسوس چه کونړ ملا پخپله دخپلے خبرے خلاف او کړو.

په صـ۸ ئے د تقلید نیم تعریف دا ذکر کړے، په

خپله غاړه کښې پړې اچول، او د ځان نه په زوره جاهل جوړول، او دا پړې جل لوه په لاس کښې ورکول چه ته وائې څه به د هغې تابعداریم، او ستا د خطاء او رسا به طلب ګاریم، او قرآن او حدیث چه ستا د قول په مقابله کښې وی د هغې تاویل ته به تیاریم - ص۸

د دے تعریف په یو یو لفظ غور پکار دے، او د کوڼ ملا علم او پوهے له داد او شاباسے ورکول پکار دی، شاباسے کوڼ ملا،

"إذا فاتك الحياء فقل ماشئت"

لږ د دے تعریف ماخذ او قائل به د هم بنوولے وے، خصوصاً د خط کشیده الفاظو، معلومیږی چه کوڼ ملا د تعریف په معنی هم نه پوهیږی، ځکه خواوتے بوتے وائی. موږ مخکښې دا خبره ظاهره کړیده چه د اتباع او تقلید مقصد یو دے، که یو نا جائز وی نو بل ۓ هم نا جائز وی، او که یو جائز وی نو بل به هم جائز وی، البته نا جائزه اتباع او تقلید هیڅوک نه مني. د کوڼ ملا په نظر کښې خطاء او رسا دواړه یو شے دے، د خط کشیده الفاظو نه هم دا معلومیږی دا خبره یاد لرل پکار دی، چه تقلید او اتباع

دهغه مجتهد او فقیه کیږی دچا په فقاهت او مجتهد کیدو چه اهل علم حضرات متفق وی، یو عام سړے داسے نه شی کولے، چه په قصد سره د پیغمبر علیه السلام دفرمان په مقابله کښی خپله رائے وړاندے کړی، او سیوا د رائے نه بل څه دلیل پری نه وی، نو هغه کسان چه دعوی د اجتهاد، دینداری او تقوی او پرهیزګاری د نیا قائله وی هغه به څنګه داسے اوکړی چه په قصد سره به د پیغمبر علیه السلام قول پریږدی. اوخپله رائے به وړاندے کړی، دا دکونړملا په مجتهدینو او فقهاؤ باندے بدګمانی ده۔

لکه څنګه چه مثلاً د امام بخاری تقلید خلق کوی داحادیثو دضعف اوصحت او د رجالو په باره کښی، په دے نیت سره چه دے به د الله په دین کښی دروغ نه وائی۔ اوکله چه یو حدیث ته صحیح او یا ضعیف اووائی۔ نوخلق ئے خبره منی، اوتقلید ئے کوی، سره د دے چه د امام بخاری په تا بعداری څه دلیل نشته، خو بیا ئے هم خلق تا بعداری کوی صرف په دی حُسنِ ظن سره چه دے به په دیکښی دروغ نه وائی۔هم دغه شان د مجتهدینو تقلید او اتباع خلق کوی،

چه دوی به د الله په دین کښې دروغ نه وائی، ځکه حسن ظن چه د محدثینو سره ساتی، هم دغه شان حسن ظن د مجتهدینو سره ساتی، او که دکوم ملا خبره واغستے شی، نو بیاخو هډو د سره څه پاتے نشو، نه د محدثینو تقلید او اتباع او نه د مجتهدینو۔

گوره کله د محدث سره دیو حدیث په ضعیف کیدو په ظاهره څه دلیل نه وی، او بیا هم وائی چه دا حدیث ضعیف دے، او خلق ئے بیا هم تقلید کوی، صرف په دے حسن ظن سره چه دے به د الله په دین کښې دروغ نه وائی۔

علامه سیوطی رحمه الله لیکی.

وربما تقصر عبارة المعلل عن اقامة الحجة على دعواه كالصيرفي في نقد الدينار والدرهم، قال ابن مهدى لو قلت للعالم بعلل الحديث من أين قلت هذا؟ لم يكن له حجة وكم من شخص لا يهتدى لذلك، وقيل له ايضًا انك تقول للشيئ هذا صحيح وهذا لم يثبت فعن تقول ذلك؟ فقال أرأيت لو أتيت الناقد فأريته دراهمك فقال هذا جيد وهذا بهرج، أكنت

تسأل عمن ذلك أو تسلم له الأمر، فقال فهذا كذلك لطول المجالسة والمناظرة والخبرة، و لهذا لم يتكلم فيه الا القليل كابن المديني و أحمد والبخاری ويعقوب بن شيبة وأبي حاتم وابي ذرعة والدارقطني اهـ تدريب الراوي (١-٢٥١)

کونږ ملا عقل د نصیب شه، کوره د علل حدیث په فن کښ صرف یو څو کسان دی، چه ماهر دی، او باقی ټول خلق که محدث دے او که غیر محدث دے، عالم دے او که جاهل دے، ټول د دوئ تقلید کوی، او بغیر لدینه بله څه لارهم نشته، ځکه چه دومره علم د چا دے؟

د کونږ ملا دا خیال دے، چه بس که مشکاة ئے په ترجمه سره اووے، یائے اردو ترجمه اوکته، نو د حدیثو لوی ماهر شو، او د تقلید ضرورت ئے پاتے نه شو، ع

فان کنت لا تدری فتلك مصيبة
وان کنت تدری فالمصيبة اعظم

د کونږ ملا هغه قصه ده، لکه پښتا نه وائی، چینده د لوټے سر ته اوختله، نو وے کشمیر م اولیدو،

دحدیث یوکتاب دوه ئے اوے، نو دائے خیال شو،
چه دحدیث په هونن کښی دبل نه مستغنی شوم ،
چانته م حاجت پاتے نه شو۔
کونړملا دتقلید صورتونه لیکی، او ټول ئے له
ځانه جوړکړیدی، ځکه چه دروغ وئیل دغیرمقلدینو
په ختمه کښی اغوښی دی۔ لیکی ،
(۱) اوّل صورت :۔
چه مقلد دقرآن وحدیث نه اعراض اوکړی ، اوبالکل
توجه ورته اونکړی الخ عرض دادے،چه اجتهاد په
فروعی مسئلو کښی دمجتهد کار دے، اومجتهد دادله
اربعه نه استدلال کوی، اومقلد دمجتهد قول اخلی،
اوکله چه یومسئله دقرآن کریم یاحدیث نبوی نه
مستنبطه وی، نو ددی نسبت کتاب وسنت ته یا
هغه دلیل ته کیږی، دکوم نه چه مجتهد مسئله اخذ
کړی وی ، نو دا دکتاب وسنت پیروی شوه ، دکتابو
سنت نه اعراض نه شو۔ دا دتقلید حقیقت دے،
خوکونړملا هسے د " الـذی یوسوس فی صدورالناس"
په طریقه دخلقو په زړونوکښ وسوسے اچوی،
دځان نه صورتونه جوړوی ، او خلق دهوکه کوی۔

کونړ ملا وائی، چه دوئ د مذهب د یو معتبر کتاب نه نقل اوکړی الخ صـ۹

په مذهب کښ معتبر کتاب هغه وی، چه د هغے په مسئلو د کتاب یا سنت یا اجماع یا قیاس نه څه دلیل وی، ځکه چه د تمامو اهل السنة والجماعة په نیزد باندے دلائل دا څلور واړه دی. او کله چه د دی دلائلو نه مسئله اغستی شوی وی، نو هغه مدلله وی، او د هغے نقل جائز دے، کونړ ملا لږ خپل کتابونه لکه د غیرمقلد وحید الزمان کتابونه لکه " نزل الابرار من فقه النبی المختار" یا " هدیة المهدیین " وغیره دِ کتلی وے، نو پته به درته لګیدلے وے، او خپل تصویر به درته ښکاره شوے وے، چه د حدیث په نوم باندے څومره دروغ وتپلی شوی دی، او څومره مسئلے دی چه د کتاب وسنت نه پرے هیڅ دلیل نه صراحةً شته او نه دلالةً۔

یا دِ د حکیم محمد صادق سیالکوټی غیرمقلد کتاب " صلاة الرسول" یا " سبیل الرسول" کتلے وے چه څومره د هوکے دی پکښ، د سیالکوټی دی کتاب "سبیل الرسول" ته " سبیل الیهود"، وئیل به زیات

مناسب وی۔ ځکه چه سیالکوټی په ډیکښ د رسول الله
صلی الله علیه وسلم د طریقې په ځائے ډیهو د وطریقه
اختیار کړیده۔ ع

دامن کو ذرا دیکھو ذرا بند قبا دیکھ

(۲) دویم صورت :-

کونړ ملا لیکی "چه ده ته دا هم نه وی معلوم،
چه دے اهل دعلم دے او که نه ؟ کونړ ملا ته شاید پته
نشته، چه د احنافو طریقه دا ده چه دغیر معتبر کتاب یا د
غیر فقیه قول نه اخلی، او که څوک ئے اخلی، نو دا
به دکم علمئ وجه وی۔ علامه ابن عابدین شامیؒ په شرح
عقود رسم المفتی کښ ذکر کړی دی، چه کوم کتاب او
کوم روایت معتبر او قابل د اغستو دے، او کوم نه دے۔
لکه څنګه چه د حدیثو د معتبرو کتابونو په ځائے څوک د
موضوعاتو د کتابونو نه یا د صحیح حدیث په ځائے
معلول او ضعیف حدیث اخلی، نو دا د هغه سړی خپل
قصور دے، د غه شان که څوک د معتبر روایت په ځائے
غیر معتبر او غیر مفتی به قول اخلی، نو دا د هغه
غلطی ده، باقی لکه څنګه چه د حدیثو په کتابونو کښ
صحیح او ضعیف بلکه موضوع حدیث هم وی، د غه

شان دفقهې په کتابونو کښې هم مفتي به او غير مفتي به روايات موجود وي، خو لکه څرنګه چه د حديثو د کتابونو نه صحيح حديث اغستل پکار دي، او ضعيف يا موضوع حديث نه دي اغستل پکار- دغه شان دفقې دکتابونو نه هم صحيح او مفتي به روايت اغستل پکار دي، ضعيف او غير مفتي به قول نه دي اغستل پکار- کونړ ملا! عقل دِ نصيب شه، خبرې ته لږ سوچ کوه- بے سوچه مه غږيږه-

(۳) دريم صورت :-

کونړ ملا دريم صورت داليکي- چه مقلد ته دليل بيه ښکاره شي په مسئله کښې خو دغه دليل د ده دمذهب خلاف وي- نو دا شروع شي ددفع کولو او ردکولو ددغه دليل- الخ صنا

کونړ ملا خبره د اسې نه ده، چه مطلقًا د دليل ردکول شروع کوي، دا هله وي کله چه مذهب دې دليل نه په بل مضبوط دليل باندے بنا وي، او او دواړه دليلونه جمع کيدے نشي، نو جواب ترې کوي- لکه په مانځه کښې خبرے اترے کولو سره احناف وائي چه مونځ فاسديږي، او دليل ئے

حدیث " انّ فی الصّلاۃ لشغلاً ا ھ" دے۔ چہ پیغمبر علیہ السلام حضرت عبد اللہ بن مسعود رضی اللہ عنہ تہ ھغہ وخت اووے، کلہ چہ د حبشے نہ مدینے منورے تہ راغے، پہ دغہ وخت کبنی رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم پہ مانځہ ولاړ وُو۔ عبد اللہ بن مسعودؓ سلام واچولو، او رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم جواب ورنکړو، او د مانځہ نہ روستو ئے ورتہ دغہ حدیث بیان کړو، نو احناف وائی، چہ پہ مانځہ کبنی دخبرو کولو اجازت احادیث منسوخ دی۔ اوس کہ لدینہ مخالف حدیث راشی، نو دوئ تہ ئے جواب کوی، داسے نہ دہ چہ مطلقاً دھر حدیث نہ جواب کوی، لکہ څنګہ چہ دکونړ ملا خیال دے، ددی خبرے حقیقت دا دے، خو کہ کونړ ملا خلقو تہ دا حقیقت ښکارہ کړی، نو بیا بہ ئے د دروغو جرندہ پارچاوہ شی۔

کونړ ملا لیکی۔ د احنافو د مذھب پہ مقابلہ کبنی چہ کلہ حدیث راشی، نو دوئ ورلہ څلور محملونہ کوری۔ ص ۱۰ ۔ کونړ ملا پہ دی عبارت کبنی ھم خلقو لہ دا دھوکہ ورکوی، چہ ګنے د احنافو مذھب د کتاب وسنت پہ مقابلہ کبنی دځانہ جوړ کړے شوید ے، دا دکونړ ملا دھوکہ دہ او تلبیس ابلیس دے، حقیقت چرے ھم نہ دے،

اوّل داچه داحدیث زمونږ د مذهب خلاف دے،نو منسوخ دے" ددے خبرے حقیقت اوس وړاندے ذکرشو، چه دوئ دا سے کله وائی۔

دویم داچه دا واقعه حال ده، لاعموم لها - داجواب احناف هغه وخت کوی، چه کله حدیث دعام قاعدے او سنت نه مخالف راشی۔ لکه د ماسپخین په مانځه کښ قرأت همیشه په پټه وئیلے کیږی، او په بعضے احادیثو کښ راځی، چه پیغمبر علیه السلام به کله کله څو آیتونه په زوره وے، نو احناف وائی، چه داچونکه د عام قاعدے خلاف راغلے، نو دایوه واقعه ده، عامه قاعده نه ده، یاد تعلیم د پاره ده، چه خلقو ته پته اولګی، چه په دے مونځ کښ هم قرأت شته، کونړ ملا دلته هم دهوکه کړیده، او خبره ئے پوره نه ده ذکرکړے۔

دریم " داچه دا دخصوصیاتو د نبی علیه السلام نه ده" او داسے شته، خو دا د هرحدیث په باره کښ نه وائی، لکه څنګه چه کونړ ملا خلقو له دهوکه ورکوی، لکه صوم وصال شو، یاد تهجد و مسئله شوه۔

څلورم دا چه دا حدیث بیان للجواز راغلے دے ام صلا دا هم عامه قاعده نه ده، دا هله وی، کله چه دا دیو بل حدیث په مقابله کښ راشی۔کوره، په ولاړے متیازے کول د صحیح حدیثونه ثابت دی۔ یا په یوه کپړه کښ مونځ د صحیح حدیثونه ثابت دے، نو احناف وائی، چه دا بیان للجواز دے، چه په وخت د ضرورت کښ داسے کولے شی، اوس که کونړ ملا او د هغه نور غیر مقلدین په دے حدیث باندے هر وخت او بغیر له څه ضرورت نه عمل کوی، په ولاړے متیازے کوی، یا چه د مانځه وخت شی، او ټولے جامے اوباسی او صرف شرمګاه پټ کړی، که ورون ئے ښکاره وی، نو خیر دے۔څکه چه ورون ددوئ په نیزد باندے عورت نه دے۔بس یو جاټکے داغوندی، او سرتور سر لغړ بربنډ اودریږی، او مونځ کوی، او ددی حدیثونو نه جواب نکوی، نو ددوی خپله خوښه ده، دچا پری څه زور نشته، باقی د کونړ ملا دا خبره چه پخپله ورسره هم دلیل نه وی، او حدیث نه جواب هم کوی "صلا خالص دروغ دی۔

دغه شان په بخاری دویم جلد کتاب التفسیر کښ د "باب قول الله تعالی نساءکم حرث لکم فأتوا حرثکم

أنیٰ شئتم " لاندے امام بخاریؒ دحضرت عبد اللہ
بن عمر رضی اللہ عنہما حدیث ذکر کړے ، چہ دلتہ ښځے سرہ
وطی فی الدبر مراد دہ۔ او احناف تر ے جوابونہ کوی.
نوکہ کونړ ملا او دغہ نور غیر مقلدین ملګری د
بخاری پہ دے حدیث باندے عمل کوی ، نو ددوئ
خوښہ دہ ، دچا پرځہ زور نشتہ ۔ الغرض احناف
دا سے جوابونہ نہ کوی ، لکہ څنګہ چہ دکونړ ملا
خیال دے ، او دا خیال ددہ غلط دے۔
کونړ ملا دحضرت اُم عطیہ رضی اللہ تعالیٰ عنہا
دحدیث پہ وجہ چہ احنافو اعتراض کړیدے ،
چہ هغوئ دنبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم دیو ے
وفات شوے لور د سر و یختہ درے کونځئ کړے.
او احناف وائی چہ دوہ کونځئ کوی بہ ئے ، او دا
دحدیث مخالفت شو ۔ کونړ ملا تہ پتہ نشتہ ، چہ
دا صرف د احنافو مذهب نہ دے ، بلکہ دحدیثو د
یو لوئ امام امامِ اوزاعیؒ او د تمامے اهل کوفہ
والو مذهب دے ، اوګورہ نوویؒ شرح مسلم۔
کونړ ملا وائی چہ دا د نص پہ مقابلہ کښے پہ
رائے عمل دے ، خو کونړ ملا تہ دا پتہ نشتہ

چه دلته نص شته او کنه ؟ کونړ ملا له پکار وُو چه د پیغمبر علیه السّلام قول ئے وړاندے کړے وے، نو که بیا ئے اعتراض کولے نو کولے ئے شو، خو دلته د پیغمبر علیه السلام قول نشته ـ په حدیث کښی دا نشته چه پیغمبر علیه السلام ور ته دا سے فرمائیلی وُو، چه درے کوڅخے ترجوړے کړه، بلکه حضرت ام عطیه رضی الله عنها دځان نه داسے اوکړه نو دا د صحابی عمل شو ـ نه د پیغمبر علیه السلام حکم ـ افسوس کونړ ملا ته د دے تمیز هم نشته ـ

د صحابی قول یا فعل په کوم وخت کښی د مرفوع حدیث په حکم کښی وی، کونړ ملا له پکار دی، چه شرح نخبه اوګوری، دا د یو صحابی اجتهاد دے، او د صحابی اجتهاد په بل مجتهد منل ضروری دی او کنه ؟ خبره اختلافی ده ـ د تفصیل د پاره دآمدی کتاب " الاحکام فی اصول الاحکام " اوګوره، نو د کونړ ملا دا اعتراض د بے علمئ نتیجه ده ـ

کونړ ملا په شافعیانو او مالکیانو هم اعتراض کړے اوخپله خوا ئے سره کړیده، دا غریبان قول عمر رضی الله عنه د بخاری د حل د پاره دابن حجر شافعی المذهب کتاب فتح الباری ګوری، بغیر لدینه یو قدم مخکښی نشی اغستے

او نه ترے بخاری حل کیږی، او اعتراض په امامانو کوی۔ ځ

این کار از تو آید و مردان چنین کنند

خیر کونړ ملا وائی۔" او د شوافع د مذهب په مقابله کښې چه حدیث راشی۔ نو دوئی وائی د اعراقی حدیث دے حجازی نه دے ص۱۲ دا اعتراض ئے هم خوشے اعتراض دے، او د اصول حدیث نه د نابلد تیا په وجه سره دے۔

او د مالکیانو په باره کښې وائی " او د مالکیانو د مذهب په مقابله کښې چه حدیث راشی، نو دوئی وائی د دمدینے والو د عمل نه خلاف دے او ص۱۲ دا اعتراض ئے هم په بے علمئ مبنی دے، ځکه چه مدینه منوره د انصارو او مهاجرینو د اولاد نه ډکه وه۔ او په یو حدیث عمل نه کول دا د هغه د نسخ علامه ده، ځکه چه ټول مدینے والا چرے هم هسے بے وجے په حدیث عمل کول نشی پریښودے، ضرور به دا حدیث یا ضعیف وی یا به منسوخ وی۔ ځکه چه تعامل امت ورته حاصل نه دے۔ که د کونړ ملا په دے خبره کښې شک وی، نو د دے مثال شته،

امام ترمذیؒ په خپل کتاب "کتاب العلل" کښې

لیکی "جمیع ما فی هذا الکتاب من الحدیث هو
معمول به و به اخذ بعض اهل ما خلا حدیثین،
حدیث ابن عباس "أن النبیّ صلی الله علیه وسلم
جمع بین الظهر والعصر بالمدینة والمغرب والعشاء
من غیر خوف ولا سفر ولا مطر" وحدیث النبیّ
صلی الله علیه وسلم "انّه قال اذا شرب الخمر فاجلدوه
فان عاد فی الرابعة فاقتلوه" وقد بیّنّا علة الحدیثین
جمیعًا فی الکتاب اه کتاب العلل فی آخر المجلد الثانی من سنن ترمذی
ص ۲۳۳

امام ترمذیؒ وائی په دے کتاب کښې چه څومره حدیثونه
دی، نو په هغے عمل شوید ے، او بعضے اهل علم حضراتو
اغستی دی، سیوا د دوو حدیثونو نه، یو دابن عباس
داحدیث چه پیغمبر علیه السلام په مدینه منوره کښې بغیر
څه ویرے او سفر او باران نه د ماسپخین او ماز یګر او
ماښام او ماسختن مونځونه یو وخت کښې جمع کړه - او
بل حدیث داچه که څوک شراب اوڅښي او اونیولے شي
نو هغه په دورو اوهئ، اوکه په څلورم ځل بیا اونیولے
شونو قتل ئے کړئ اه

د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما دا حدیث د مسلم

حدیث دے، او امام ترمذیؒ وائی چہ بیا هم متروک العمل دے، امام ترمذیؒ وائی چہ ددے حدیث علتونہ ماذکوکړیدی۔

کونړ ملا ګوره دی حدیث نہ، چہ د امام ترمذیؒ د قول مطابق قول امت پرېښود دے، او دا د نسخ علامت دے۔ دغہ شان د مدینے والا پہ یو حدیث عمل ترک کول دهغہ وخت د نسخ علامت ګڼړلے کیدو نوکونړ ملا پہ څہ پوے نہ شوے او اعتراض ئې اوکړو،

پوے نہ شوے ړندے مېښے وادکړو پہ سړګذار

کونړ ملا مخکښې بیکی،

څلورم صورت :۔

داچہ کلہ یو مقلد تہ قرآن یا حدیث پہ یوه مسئلہ کښې تہ بیان کړے، نو وائی چہ ولے فلانی ملا نہ پوهیږی، او فلانی شیخ القرآن یا شیخ الحدیث پہ دے حدیث نہ پوهیږی الخ صـ۱۲۔ دکونړ ملا دا اعتراض هم فضول او غلط دے، ځکہ چہ کہ دغہ عالم یا شیخ الحدیث واقعی پہ دغہ حدیث عمل نہ کوی، نو ضرور بہ دهغہ سره ددے حدیث مخالف قوی حدیث موجود وی، لکہ د رفع الیدین حدیث شو، غیرمقلدین د رکوع نہ مخکښې او روستو

رفع الیدین بیانوی۔ او د عبد اللہ بن عمر رضی اللہ عنہما حدیث وړاندے کوی، حالانکہ دا حدیث هم مضطرب دے اوهم ئے په وقف او رفع کښ اختلاف دے، امام بخاریؒ ئے مرفوع ګنړئ۔ او امام ابو داؤد وائی چه صحیح خبره داده چه دا په ابن عمر موقوف دے، یعنی مرفوع نه دے، نوکه یو عالم یا شیخ الحدیث په دے حدیث باندے عمل نه کوی، او رفع الیدین نه کوی، نو هغه پدے مسئله کښ د عبد اللہ بن مسعودؓ په حدیث عمل کوی۔ چه غیر مقلد ناصر الدین البانی ورته هم د مشکاۃ په حاشیه کښ "صحیح علی شرط مسلم" ویلی دی۔ نو که یو غیر مقلد ملا چا ته دا حدیث اوښائی، او هغه ورته اووائی چه ولے فلانے شیخ الحدیث په حدیث نه پوهیږی، نو د هغه دا خبره څه غلطه نه ده۔ کونړ ملا لږ سوچ اوکړه، تاسو د رفع الیدین په باره کښ څومره دروغ وائیئے۔ ستاغیر مقلد ملګرے عبد العزیز نورستانے وائی، چه "رفع الیدین د نهه څلویښت صحابه کرامو نه ثابت دے" او د پیغمبر صلی اللہ علیہ وسلم مونځ اھ

لکه وایم که په تاسو کښ واقعی ایمانی جرأت د شپے برابر هم وی، نو د دغه صحابه کرامو د روایتونه په

کوم کوم کتاب کښې دي؟ هغه لږ اوليکئ. خو داستا سو دوس نه بهرخبره ده، ځکه که دا سے اوکړئ نو بيا خو به ستاسو د دروغو پته اولګی، او ستا سو ټوله سلسله په دروغو روانه ده. ګوره غير مقلد شوکانی په "نيل الأوطار" او امير صنعانی په "سبل السلام شرح بلوغ المرام کښې و ټيلی دي، چه د پنځوسو صحابه کرامو دا روايتونو د تکبير تحريمه د رفع اليدين په باره کښې دي - دی څه، او تا سو خلقو ته څه بيانوے؟ ولے تا سو د پيغمبر عليه السلام په دے حديث عمل کوئ؟ " اذا حدّث کذب"، اخر دا ولے؟ لږ دخدائے نه اوويريږئ، او دروغ وئيل پريږدئ، په دروغژن سړی دخدائے تعالیٰ لعنت وريږی.

کونړ ملا په مخه دابن قيم داعلام الموقعين حواله ورکوی، عجيبه ده چه کتاب د تقليد په رد کښې ليکی، او دا بن قيم او شوکانی چه هم زيدی شيعه دے او هم غير مقلد دے، د هغه تقليد کوی، خپله لمن ئے خالی ده، څه پکښې نشته، اخير دا سے به ولے نه وی. دوئ خو د دوئ د واړو نه مدد هم غواړی.

وحيد الزمان غير مقلد په خپل کتاب " هدية المهديين" کښې ليکی، چه (د غير مقلد ينو سرغنه) نواب صديق حسن خان

صاحب به داشعر وئیلو، او ددوئ نه داستمداد قائل دُو.

ع کعبۂ دین مددی قبلۂ ایمان مددے
ابن قیم مددے قاضیٔ شوکان مددے

کونړ ملا هم دتقلید په رد کښ کتاب لیکی، او د " ابن قیم مددے قاضیٔ شوکان مددے " وظیفه کوی۔ ابن قیم حنبلی المذهب او شوکانی په خپله غیر مقلد دے۔ دعدم تقلید مدعی دے۔ نو ددوئ قول څنګه دحجت په طور وړاندے کیدے شی۔ ددوئ قول نه چاحجت وئیلے دے؟ ولے شوکانی ددے اهل دے، چه دهغه قول واغستے شی، ځکه چه هغه زیدی دے، او زیدی دشیعه کانو یوه برخه ده، افسوس چه کونړ ملا ددے دوُو کسانو په خبره ټول عالم اسلام نه کافر او جاهل وائ۔

" کبرت کلمة تخرج من افواههم "

" وسیعلم الذین ظلموا ایّ منقلب ینقلبون "

کونړ ملا اوس د تقلید په رد کښ د لیلونه وړاندے کوی، نوم خو د دلیل اخلی، خو ذکر کوی به هم هغه دابن قیم او یا شوکانی قولونه، کونړ ملا په دی ستا سره څه دلیل دے، چه ددوئ قول دلیل دے او حجت دے؟ خیر وړاندے ګورو چه کونړ ملا دخولے نه څه ملغلرے تو یوی

او دابن قیم او شوکانی نه څه استمداد کوی۔

کونړ ملا لیکی، چه څو نړ دادعوی ده چه دغه مذکوره
قسمونه د تقلید حرام دی اه مص۱۳ - کونړ ملا د حرام نتوی
خو اوکلوله، خو دابن تیم او شوکانی د قولونو نه علاوه
ئے څه ذکر نکړه، بس داچه ابن قیم دا وائی او شوکانی
داوائی - دکونړ ملا ایمان دادے، چه دابن قیم او شوکانی
په وینا سره هم حرمت ثابتیږی- کونړ ملا! تا خو
دوئ له دپیغمبر درجه ورکړه- وائے څه؟ اوکوے څه!

مخکښ لیکی، چه تقلید نه دعالم دپاره شته او نه د
اُمّی دپاره- بلکه په ټول امت باندے دکتاب الله او
سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم اتباع فرض ده الخ ص۱۳

دکتاب الله او سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم
دتابعدارئ په مسئله کښ دهیچا خلاف نشته، او نه
پکښ کیدے شی. خو خبره داده چه اُمّی یعنی ان پړه
سړے به څنګه مسئله معلوموی؟ دا بغیر لدینه چه
په یو عالم اعتماد اوکړی، او د هغه نه تپوس اوکړی،
او هغه ورته مسئله اوښائی - اُمّی خو په لفظی ترجمه
دآیات یا حدیث هم نه پوهیږی، خو چه عالم ورته
څه ښائی هغه به منی. او دا تقلید شو. پاتے شوه

د عالم خبره، نو عالم هم د اُعلم یعنی دځان نه دلوئ عالم تقلید کوی- دا حواله مخکښ د تدریب الراوی په حواله سره تیره شوه، چه په علل الحدیث باندے ډیرکم بلکه د شمار یو څو محدثین پوهیږی هر محدث پرے نه پوهیږی- او نور ټول امت که عالمان وی اوکه امیان ټول د دغه محدثینو تقلید کوی، حالانکه د دغه محد ثینو په دے تعلیل نه د آیت نه دلیل وی، نه د حدیث نه او نه د اجماع او قیاس نه- خو بیائے هم خلق تقلید کوی-

دکونړ ملا دا خبره چه په هیچا تقلید نشته، د حقیقت نه سترگے پټول دی، پخپله خوغریب د تقلید د تعریف په مسئله کښې هم د ابن قیم او شوکانی جولئے ته لاس نیسی، مدد تری غواړی- او تقلید ئے کوی، هغه چه څه اووائی کونړ ملا پرے آمنا و سلمنا وائی، لیکن دعوی ئے دا ده چه تقلید حرام دے- دعوی کوی او دلیل پرے نه وړاندے کوی- د ابن قیم او شوکانی قول څه دلیل نه دے،

دکونړ ملا دا خبره چه څه په عالم خو تقلید نشته ص۱۳ بالکل غلط ده، د اصول حدیث او جرح وتعدیل په مسئله کښې هم عالم تقلید کوی او هم اُمی-

دکونړ ملا دے عجیبه فلسفے ته اوګورئ۔ وائی هرکله چه عالم تقلید پریښودو، نو امی به د حکم شرعی تپوس د دے عالم نه کوی۔ دا به د قران وحدیث موافق جواب هغه ته ورکوی، نو هغه د قرآن او حدیث تابعداری شروع کړی، دا عالم به واسطه شی او فقط مبلغ الخ ص۱۳

دکونړ ملا خیال دا دے، چه امی به د مقلد عالم نه تپوس نه کوی، بلکه د غیر مقلد ملا نه به تپوس کوی۔ د غیر مقلد ملا نه تپوس جائز او د مقلد عالم نه تپوس تقلید دے او حرام دے۔ حالانکه د امی د پاره دواړه صورتونه یو شے دے، هغه نه د غیر مقلد د مسئلے د دلیل پوهیږی او نه د مقلد۔ نو بیا څنګه یو تپوس د کتاب وسنت تابعداری شوه، او جائز شوه، او بل تقلید شو او حرام شو؟ باقی دکونړ ملا دا خبره چه د غه عالم د مذهب حنفی فتوی ورکوی، او کتاب وسنت پریږدی۔ محض الزام دے او تهمت دے بهتان دے، ځکه چه په مذهب حنفی کښی په هغه قول فتوی ورکولے شی، په کوم چه د ادله اربعه نه دلیل قائم وی۔ او که ضعیف قول وی، په هغے فتوی نه ورکولے کیږی، هوں که څوک په غلطۍ مفتی به قول چه په دلیل سره وی پریږدی، او غیر مفتی به قول را واخلی، نو دا هم دا سے

ده، لکه څوک د حدیثو د کتاب نه ضعیف حدیث راواخلی، او صحیح حدیث پریږدی، دا دواړه کسان په غلطه دی

کونړ ملا مخکښې لیکی" ولې دا قرآن او حدیث امی له بد دی او کنه دا قرآن او حدیث صرف مجتهدینو له راغلی دی؟ ص۱۳ وائی،

یک من علم را ده من عقل باید

یعنی یو من علم لره لس منه عقل پکار دے۔ کونړ ملا خالص د بې عقلئ خبرے شروع کړے، یو طرفته یو څو کرخے مخکښې لیکی، چه امی به د عالم نه بلکه د غیر مقلد ملا نه تپوس کوی، او بل طرفته وائی چه ولې قرآن او حدیث امی له بد دی، کونړ ملا داچا وئیلی دی، چه امی له بد دی۔ خو چه امی ټے تنش په لفظی ترجمه هم نه پوهیږی، نو مسئله به تری څنګه معلومه کړی۔ معلومیږی چه دکونړ ملا په نیزد امی او مجتهد دواړه یو شان دی۔

بریں عقل و دانش بباید گریست

کونړ ملا په دے خپل خیال باندے دقرآن کریم دا آیت د دلیل په طور ذکر کوی،

"هو الذی بعث فی الامیین رسولًا منهم یتلوا علیهم آیاته الخ

علیہم آیاتہ الخ

کونړملا آخر دا دے آیت ستا مدعی سره جوړخه دے؟ د پښتو مثل دے. وائی " وهم دِ کوم ځائے او ډب دِ کوم ځائی خیژی.

کونړملا مخکښ لیکی، چه امی لہ هم الله پاک عقل ورکړی وی. مومن دے دحق او باطل تمیز کولے شی، ص۱۴۱

دکونړملا دا خبره سو فیصد غلطه ده، ځکه که امی داوزق کولے شی، نو بیا دعالم نه د تپوس کولو ضرورت به ورته ولے وی؟ بیا خو به دے په خپله په کتاب او سنت باندے پوهیدو، مجتهد به وو، او د مسئلو استنباط به ئے له نصوصو کولے شو، داسے سړی نه امی نه وئیلے کیږی، داسے معلومیږی چه کونړملا د امی په معنی هم نه پوهیږی ځکه خو اوتے بوتے لیکی.

کونړملا صاحب! دامی د لفظ دپاره به دے لږ د لغت کتاب خو کتلے وے، معلومیږی چه دکونړملا په نیزد مجتهد او امی دواړه یوه درجه لری، حالانکه په امی باندے اجتهاد لازم کول تکلیف مالا یطاق دے، کونړملا هسے خوځان نه پیښبورے لیکی، خو پیښبورے نه دے، ځکه چه پیښبوریان دومره غبیان او کج فهمه -

ندوی، داد کوڼر ملا شکوے دی. امی په دیل څه پوهیږی،
کوڼر ملا مخکښ لیکی، د صحابه کرامو او تابعینو او تبع تابعینو په دورکښ هم امیان ؤو، هغوی ولے تقلید نه کولو؟ ص۱۲۱.

کوڼر ملا په یوه غلط فهمئ کښ مبتلا دے. دے د مجتهدینو مذهب بالکل د اسلام خلاف گنړی. لکه دا مذهب چه د اسلام په مقابله کښ جوړ شوی وی، العیاذ بالله، خو دا د کوڼر ملا بدفهمی او کج فهمی ده. د کوڼر ملا مثال دا حول دے (یعنی چپ سترگے) هر څه ورته دوه دوه ښکاری. حالانکه دا مذهب هم په ادلۂ اربعه باندے بنا دی، په کومه مسئله چه د ادلۂ اربعه (کتاب الله، سنت نبوی، اجماع او قیاس صحیح) نه څه دیل نه وی. نه هغه هلو دُسره څه مسئله ده، او نه په هغے عمل کول جائز دی. کوڼر ملا هسے په مجتهدینو بدگمانه دے، حالانکه که مجتهد د مسئلے په استنباط کښ غلطی اوکړی او صحیح مسئله اوښائی، نو دوه اجره ورته میلاویږی، او که غلط شی نو بیا هم ورته یو اجر میلاویږی، اوگوره بخاری (۲-۱۰۹۲) مسلم (۲-۷۶)

باقی د کوڼر ملا دا دعوی، چه د صحابه کرامو او تابعینو او تبع تابعینو په وخت کښ تقلید نه وو، نو دا دعوی

بے دلیله ده، او دکونړ ملا د بے علمئ نتیجه ده. بخاری شریف کښ حدیث دے، د حضرت ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه نه چا دمیراث یوه مسئله اوتپوسله، هغه ورله جواب ورکړو، هغه بیا لاړو عبد الله بن مسعودؓ ته، هغه ورته د حضرت ابوموسیٰ اشعریؓ د مسئلے په خلاف جواب ورکړو، هغه سړے راغے او حضرت ابوموسیٰ اشعریؓ ته ئے هغه مسئله بیان کړه، چه هغوی خود اسے وائی، نو حضرت ابوموسیٰ اشعریؓ اووے،

لا تسألونی مادام هذا الحبر فیکم اه صحیح بخاری (۲-۹۹۷) مشکوٰة شریف ص۲۶۴،

دا حدیث بالکل د تقلید بلکه د تقلیدِ شخصی دجواز فائده ورکوی، شاه ولی الله رحمه الله لیکی

ان الناس لم یزالوا من الصحابة إلی ان ظهرت المذاهب الأربعة یقلدون من اتفق من العلماء الخ (عقد الجید ص۵۰)

دروغ وئیل کونړ ملا له هسے خوند ورکوی۔

دغه شان د تابعینو په دور کښ د تقلید د وجود نه انکار ورځے ته شپه وئیل دی۔

د تقلید مطلب دے، چه سائل د یو عالم نه د مسئلے

تپوس اوکړی۔ او هغه جواب ورکړی۔ او سائل د دلیل تپوس اونکړی۔ ځکه چه امی سړے دلیل څه پیژنی، دا مطلب نه دے، چه ګنی په دے مسئله هډو دسره څه دلیل نشته۔ مسئله بے دلیله نه وی۔ بلکه سائل د دلیل تپوس نه کوی، که دکونړ ملاصاحب په دے خبره کښی شک وی، نو مصنف عبدالرزاق او مصنف ابن ابی شیبة دِ په استیعاب سره اوګوری، دحدیث په دے دواړو کتابونو کښی بے شماره داسے مسائل دی، چه یو صحابی یا یو تابعی نه چا مسئله تپوسلی ده، هغه جواب ورکړے نه سائل د دلیل تپوس کړے او نه مجیب ورته دلیل ذکر کړیدے، ځکه چه یو سړے دیو عالم نه تپوس کوی، نو د هغه په هغه عالم باندے دا حسن ظن او اعتماد وی، چه دے به له ځانه مسئله نه جوړوی، لکه په محدثینو حضراتو باندے دا اعتماد دے چه دوئ به د ځانه حدیث نه جوړوی، یا په یو حدیث کښی به هسے خامخاه له ځانه علتونه نه راپیدا کوی، ټول مسلمانان هم پدے طریقه باندی روان وُو، تر دی چه غیر مقلدینو پکښی اختلاف شروع کړو،

کونړ ملا صاحب لیکی، چه د تقلید د رد دپاره دایوه خبره

هم کافی ده د خاوندانو د عقلونو دپاره، هغه دا چې تقلید په څلورمه صدئ کښ پیدا شوے اه صلا

څه یدے حیران یم چه کوثر ملا په پنځلسمه صدئ کښ دے، او خبرے د څلورمې صدئ کوی۔ ده نه څنګه پته اولګیده، ګړ

سر خدا که عارف وزاهد بکس نگفت
درحیرتم که باده فروش از کجا شنید

کوثر ملا بن تاریخ خوبه د کتلے وے، چه دا غلط فهمی د ختم شوے وے۔ او د ابن قیم روند تقلید د پرینبے وے۔ واقعی "الناس اعداء لما جهلوا"

کوثر ملا صاحب! امام ذهبی رحمه الله دامام الجرح والتعدیل ابن معین چه باره کښ په خپل کتاب "سیراعلام النبلاء" کښ لیکی۔

"قلت قد کان ابوزکریا رحمه الله حنفیا فی الفروع اه

سیر (۱۱ - ۸۸)

او په بل کتاب کښ "معرفة الرواة المتکلم فیهم بما لایوجب الرد" کښ لیکی۔

"فان ابن معین کان من الحنفیة الغلاة فی مذهبه وان کان محدثا" (مقدمة معرفة الرواة المتکلم فیهم ص۲۹)

یعنی یحي بن معین رحمه الله تعالیٰ المتوفی ۲۳۳ھ دامام ابوحنیفه رحمه الله په مذهب باندے وُو، سره دد ے چه محدث وُو، او څنګه محدث وُو، د تفصیل دپاره د امام ذهبیؒ سیراعلام النبلاء اوګوره - دامام بخاریؒ استاد وُو -

دغه شان د امام الجرح والتعدیل یحي بن سعید القطان رحمه الله المتوفی ۱۹۸ھ په باره کښ لیکی -

" کان علی مذهب ابی حنیفة فیما بلغنا اذا لم یجد النص اھ سیراعلام النبلاء (۹ - ۱۷۶)

او داخولګ وُو، دا د علی بن المدینی او یحي بن معینؒ او امام احمد بن حنبلؒ غوندے امامانو استاذ وُو، د تفصیل دپاره د سیراعلام النبلاء دغه پاڼړی اوګورئ -

دغه شان عبد الله بن مبارکؒ رحمه الله هم دامام ابوحنیفهؒ په مذهب باندے وو، دا سے ډیرے حوالے شته، خو د تهولو په ذکرکولو هسے خبره اوږدیږی - عقلمند سړی له خو هسے اشاره هم کافی ده، لا یفیدګ التطویل -

کوڼړ ملا صاحب ! داکسان دعلم حدیث امامان وُو - او د څلورمے صدئ نه وو، بلکه د دویمے او دریمے

صدئ وُو ، خوک د دوئ په علم کښ شک کولے شی ؟خو بیا هم تقلید کوی - کونړ ملا د تکیر فقیر دے ، چه څه ابن قیم وائ ، دے پرآمنّا و سلّمنا وائ - ع

درپس آئینه طوطی صفتم داشته اند
آنچه استاد ازل گفت بگومی گویم

او بل د شوکانی چه زیدی شیعه دے ، تقلید کوی ، کونړ ملا صاحب !

تو از تقلید شوکانی چرا دامن نیفشانی
که غیر از خار خواری هیچ از شوکان نمی آید

کونړ ملا ذکر کوی دلائل او راوړی د ابن قیم او شوکانی اقوال ، ځکه چه د غیر مقلدینو وظیفه داده ، ع

کعبهٔ دین مددے قبلهٔ ایمان مددے
ابن قیم مددے قاضئ شوکان مددے

کونړ ملا د اموروثی وظیفه چرته پریښودے شی -

کونړ ملا د شاه ولی الله رحمه الله تعالی حواله ورکړیده " قال الامام ولی الله الدهلوی فی حجة الله البالغة ج ۱ ص ۱۵۲ ، اعلم أن الناس کانوا قبل مائة الرابعة غیر مجمعین علی التقلید الخاص لمذهب واحد ، ص۱۲

کونړ ملا، که لږ پوهیدے، نو تا به د شاه صاحب ؒ دا عبارت هېڅو هم نه نقل کولو، ځکه چه د شاه صاحب ؒ د کلام نه صرف دومره معلومیږی، چه تقلید شخصي نه ؤو، د مطلق تقلید نفی تر ینه نه کیږی، او نه د مطلق تقلید نه انکار کوے، کونړ ملا لږ ے سترګے او غړوه، او د شاه صاحب ؒ دا عبارت لږ بیا اوګوره، چه ستا مذمومه دعوی ترے ثابتیږی او کنه؟ ع

فان کنت لا تدری فتلک مصیبة الخ

بله دا چه ما لږ مخکښے د یحي بن معین ؒ او یحي بن سعید القطان ؒ حواله ورکړه چه امام ذهبی ؒ وائی چه دوئ حنفیان ؤو، او دا تقلید شخصي دے، شاه صاحب ؒ په دغه تیرو شوو زمانو کښې د مطلق تقلید انکار نه کوی، د تقلید شخصي انکار کوی، اګرچه د تاریخ په رڼا کښې تقلید شخصي هم ثابت دے. د مطلق تقلید نه خو یو احمق هم انکار نشی کولے،

ګوره ستا سو شیخ الکل فی الکل مولوی نذیر حسین دهلوی صاحب هم د مطلق تقلید نه انکار نه کوی هغه په خپل کتاب "معیار الحق" کښې لیکی:

"قسم اوّل واجب ہے اور وہ مطلق تقلید ہے کسی مجتہد کی لاعلی التعیین الخ صـ۵"

کوټه ملا! عقل دِ نصیب شه، دانه په کومه کنده سر ګي، کم از کم دده خپل منشر خو به دِ منلے وے،

کوټه ملا! ستا سو د غیرمقلدینو داخه خراب عادت دے، چه "لا تقربوا الصّلاة" خو وایئ، او "وأنتم سکارٰی" پریږدئ، کوټه ملا صاحب دا ډیر غلط عادت دے، تا د شاه صاحبؒ د کتاب حواله ورکړیده، او د شاه صاحبؒ په خبره مطمئن سنکارے۔ او د شاه صاحبؒ تقلید دکړیدے، نو کله چه دِ په دے خبره کښې تقلید اوکړو، نو د حجۃ الله دده عبارات نه به دِ یو دوه صفحے روستو دا عبارت هم نقل کړیوے۔

شاه صاحبؒ هم دده کتاب په صـ۵۴ ج۱۰ ابا ندے لیکی۔

وممّا يناسب هذا المقام التنبيه على مسائل ضلت في بواديها الأفهام وزلت الأقدام وطغت الأقلام، منها أن هذه المذاهب الأربعة المدونة المحررة قد اجمعت الأمة أو من يعتد به منها على جواز تقليدها إلى يومنا هذا وفي ذلك من المصالح ما لا يخفى لا سيما في

هذه الایام التی قصرت فیها الهمم واشربت
النفوس الهوی واعجب کل ذی رأی برأیه اه حج ۱ ص ۱۵۴
یعنی د لنډیو څو مسئلو تنبیه او وضاحت پکار دے،
......... یوه له هغې نه دا چه دا څلور واړه مذهبونه
چه مدوّن شو یدی او لیکلے شو یدی، قول امت یا هغه
چا چه د هغوئ څه اعتبار وی، د دے مذهبونو د تقلید
په جواز باندے تر نن ورځ پورے جمع دی، او په دیکښې
ډیر مصلحتونه دی، چه هغه پټ نه دی۔ صفا ښکاره دی الخ
شاه صاحب وائی چه قول امت یا د چا چه څه اعتبار
وی، معلومه دا شوه، چه څوک لدینه انکار کوی، هغه خو
په امت کښې نه دی شمار، یا د هغوی څه اعتبار نشته،
کونړ ملا او د هغه ملګری معلومه شوه چه قول بے اعتباره
خلق دے. کونړ ملا صاحب! د شاه صاحب د قول مطابق
خو ته بے اعتباره او خټے، اوّل ځان اعتباری کړه بیا هله غږیږه،
کونړ ملا یو ځل بیا د " ابن قیم مدد " چغے شروع کړے،
لیکی،
" انما حدثت هذه البدعة فی القرن الرابع
المذمومة علی لسانه صلی الله علیه وسلم "
کونړ ملا صاحب! دا اعتراض بعینه ستا مشران

روښه منکرین حدیث دحدیثو په کتابونو هم کوی، بلکه پرویز ورته عجمی سازش وائي، خوځه وایم چه دمنکرین حدیثو او د منکرین فقه او منکرین تقلید ددواړو دا اعتراض بیهوده لغو او باطل دے، ځکه چه تدوین حدیث هم په خیرالقرون کښې شوے دے، او تقلید هم. د عقد الجید صنه حواله مخکښې تیره شوه،

او د سند بن عنان دا اعتراض هم د ابن قیم د اعتراض پشانے دے، او دا په حقیقت کښې د منکرینو حدیثو اعتراض دے چه په تدوین حدیث ټے کوی. کونړ ملا صاحب بالکل حاطب اللیل دے، دیته نه ګوری چه د دے اعتراض انجام څه دے، او دا دچا اعتراض دے. ګویا کونړ ملا له خوچه پئ وی، دخرے اوکه دسپئ وی" دکونړ ملا هم بس صرف اعتراض مقصد دے، دهر چا قول چه وی، دکونړ ملا پرے څه؟ کونړ ملا د دے عبارتونو نه مطلب نقل کوی. حاصل د دے عبارتونو دا دے، چه تقلید یو بدعت عمل دے. ددریمی صدئ نه روستو پیدا شوے دے، ص۱۵.

څه وایم دا هم هغه د منکرینو حدیثو اعتراض دے نورڅه نه دی، مخکښې لیکی صحابه کرامو کښې دا سے قسم

تقلید نہ وُو۔ الخ

دا دعویٰ هم غلطه ده۔ د بخاری حدیث " لا تسألونی مادام هـذا الحبر فیکم" مخکښې تیر شو، او د شاولی الله رحمه الله د عقد الجید منـ۵ حواله هم تیره شوه،

کو نړ ملا مخکښې وائی، او نه په تابعینو او تبع تابعینو کښې۔ الخ څه وایم د اهم د کونړ ملا د جهالت کرشمے دی، لږ مصنف عبد الرزاق او مصنف ابن ابی شیبة اوګوری چه د کونړ ملا دده بے خبرے حقیقت در ته معلوم شی۔

مخکښې وائی۔" سره دده چه عوام خلق موجود وُو، او هر شخص مجتهد نه وُو۔ صـ۱۵ عجیبه ده چه یو سړے مجتهد هم نه دے، او د چا تقلید هم نه کوی، کونړ ملا پخپله خو د ابن قیم او شوکانی قدم په قدم تقلید کوی۔ او د موربټی نے کنړی۔ خو نور چالوره ئے حرام ګنړی، هغه د اُردو ژبے متل دے " ہاتھی کے دانت دکھانے کے اور کھانے کے اور"، کونړ ملا صاحب! " ویل للمطففین"، سورت لږ د ترجمے سره اوګوره چه دا خپله طریقه درته معلومه شی،

کونړ ملا وائی " دا رنګه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ولے دا مهم کار پریخودلو الخ څه وایم کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، بالکل ئے نه دے پریښو دے۔ د حضرت معاذ رضی الله عنه

حدیث د تقلید د جواز د پاره مضبوط دلیل دے۔ او
الله تعالیٰ هم نه دِ پرېښودے۔

"فاسئلوا اهل الذکر ان کنتم لا تعلمون"

د ټول امت د پاره د قیامته پورے د تقلید په جواز
باندے پوخ دیبل دے، دغه شان آیت کریمه،

"واتبع سبیل من اناب اِلیّ"

په تقلید دلالت کوی، د اخبره مخکښې تیره شویده
چه د اتباع او تقلید مفهوم یو دے۔ اوس که کوښ
ملاته دا ایا تونه نه ښکاری، نو دا د ده خپل قصور دے

ع گر نه بیند بروز شب پره چشم
چشمهٔ آفتاب را چه گناه

الغرض د شاه ولی الله د قول نه معلومه شوه، چه
د تقلید په جواز باندے ټول امت متفق دے ان
تر دے وخته پورے۔ اوس چه څوک په یو اتفاقی
خبره کښې اختلاف پیدا کوی، نو هغه د حدیث شریف
په حکم سره دوژلو لائق دے۔ نبی کریم صلی الله
علیه وسلم فرمائی،

من أتاكم وامركم جميع على رجل واحد
يريد أن يشق عصاكم ويفرق جماعتكم

فاقتلوه، رواه مسلم، مشکاة شریف باب الامارة
صنا ۳۲۰

یعني که تاسو دیو سړي په تابعدارۍ باندے جمع یئ او یو سړے راشي او پتا سو کښې اختلاف پیدا کوي، نو مړے ئے کړئ، کوڼ ملا صاحب! دا تاچه کوم کار شروع کړیدے، د دے حدیث په رڼا کښې دا سے سړے گردن زدني دے۔

# د کوڼ ملا دلائل او دهغے جواب

**تنبیه:**۔ کوڼ ملا د ائمه مجتهدینو مذهبونه د اسلام په مقابله کښې یو بل دین گڼړي، دا غریب په دې نه پوهیږي، چه مجتهدین هم دکتاب وسنّت تشریح کوي. لهٰذا نه نوے دین نه جوړوي، او س که یوه مسئله په کتاب الله کښې نه وي، نو په سنّتِ نبوي کښې ئے گوري، که په دیکښې نه وي، نو اجماع

فاقتلوه ، رواه مسلم ، مشکاة شریف باب الامارة
صنہ ۳۲۰

یعنی کہ تاسو دیو سړی پہ تابعدارئ باندے جمع
یئے او یو سړے راشي او پتا سو کښې اختلاف پیدا
کوی، نو مړے ئے کړئ، کونړ ملا صاحب! دا تا چہ
کوم کار شروع کړیدے، د دے حدیث پہ رڼاکښې
داسے سړے گردن زدنی دے.

# دکونړملادلائل او دهغے جواب

**تنبیه** :- کونړ ملا د ائمہ مجتهدینو مذهبونه
داسلام پہ مقابلہ کښې یو بل دین گڼړی، دا غریب
پہ دی نہ پوهیږی، چہ مجتهدین هم دکتاب وسنّت
تشریح کوی. لہ ځانہ نوے دین نہ جوړوی، او س
کہ یوه مسئلہ پہ کتاب اللہ کښې نہ وی، نو پہ سنّتِ
نبوی کښې ئے گوری، کہ پہ دیکښې نہ وی، نو اجماع

کوری، که اجماع هم نه وی، نو بیا قیاس کوی، لکه د
حضرت معاذ رضی الله عنه په حدیث کښې د دے صراحت
دے، دا د تمامو اهل السنة والجماعة طریقه ده، غیر مقلدین
د اجماع او قیاس نه منکر دی، بل غیر مقلدین د صحابی
قول هم حجت نه گنړی، اګر که دغه قول غیر مدرک بالعقل
وی، لکه شوکانی چه په خپل کتاب "ارشاد الفحول"
کښې لیکی۔
اوس د کونړ ملا د لائلو ته غوږ کیږده، کونړ ملا لیکی۔
(۱) "وان تطیعوه تهتدوا" د نبی علیه السلام په اتباع کښې
تول هدایت دے۔ کونړ ملا! د دینه څوک انکار کوی، مثلاً
امام ابوحنیفه پخپله وائی، چه څه اول کتاب الله اخلم،
که په هغے کښې مسئله نه وی، نو سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم
اخلم، که په هغے کښې نه وی، نو د صحابه کرامو اقوال اخلم۔
که په دوئ کښې اختلاف وی، نو بیا د دوئ د اقوالو نه یو
قول غوره کووم، او که د دوئ اقوال نه وی، د دوئ نه
د لاندے خلقو اقوال وی، نو "فهم رجال ونحن رجال"
(۲) دویم " قل ان کنتم تحبون الله فاتبعونی یحببکم الله
ویغفر لکم ذنوبکم" بیا "من یطع الرسول فقد اطاع
الله"، بیا "فلا وربك لا یؤمنون حتی یحکموك فیما

شجر بینهم الایة د دینه اخار انکار څوک کوی - خو کونړ ملا!
لدینه د تقلید د ضرورت نفی نه کیږی - لیکن ځان پوهه
کړه، نصوص محدود دی او مسائل لا محدوده دی،
تر قیامته نوی نوی مسئلې را پیدا کیږی، مثلاً نن صبا
د تجارت، بیمه پالیسئ، د بینک نظام وغیره سره چه
کومې مسئلې را پیدا شوی، دا په هغه زمانه کښې
موجود نه وې،

نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خپل ژوندانه حضرت
معاذ رضی الله عنه ته فرمائی، چه ته به په څه فیصله
کوې، هغه وائی په کتاب الله، پیغمبر علیه السلام ورته
فرمائی، که په کتاب الله کښې ئے او نه مومې نو بیا،
هغه اووې په سنت د رسول الله به فیصله کوم، پیغمبر
علیه السلام ورته فرمائی، که په دیکښې ئے او نه مومې
نو بیا، هغه اووې "أقضی برائی" یعنی قیاس به
کوم - نو پیغمبر علیه السلام په شا او ټپولو -
حضرت معاذ رضی الله عنه قیاس کوی، او خلق
ئے تقلید کوی او هیڅوک پرې بد نه وائی، چه
او سبا به په دې مسئله کښې آیت یا حدیث کوم
دے؟

کونړملا آیت ۔

" والذین یؤمنون بما اُنزل الیک وما اُنزل من قبلک وبالآخرة هم یوقنون ه اُولٰئک علی هدی من ربهم واُولٰئک هم المفلحون ة

نقل کړے او وائی ۔ په دے آیا تونوکښ الله تعالی هدایت او فلاح د قرآن و سنت په اتباع موقوفه کړیده ۔ د کوم امام یا مجتهد په تقلید الله څه هدایت یا کامیابي نده فرما ئیلی ص۷۱ ۔

کونړ ملا صاحب ! "معلومیږی چه قول قرآن د نه دے وئیلے ۔ ځکه آیت " واتبع سبیل من اناب الی" هم د قرآن آیت دے ۔ یعنی تاسو تابعداری کوئ د هغه چا چه الله طرفته ئے رجوع کړی وی ، او مجتهدین حضرات هم په " من اناب الیّ " کښی داخل دی ۔

**تپوس ۴** ۔ کونړملا هسے تپوس دا کوم چه " او سنت په اتباع " دکوم آیت ترجمه ده ۔ ولے دا تحریف معنوی نه دے ؟ ۔

او دا آیت " اتبعوا ما انزل الیکم ولاتتبعوا من دونه

اولیاء " هم د تقلید نفی نه کوی۔

کونړ ملا د تفسیر قرطبی حواله وړاندے کوی،

" ودلت الآیة علی ترك اتباع الآراء مع وجود النص " ص۱۸

یعنی چه کله نص موجود وی، نو بیا دچا د رائے اتباع پریښودئ، کونړ ملا مونږ اوس ذکر کړه چه مجتهد قیاس هله کوی، چه نص موجود نه وی، او که نص صحیح صریح غیر متعارض موجود وی نو بیا قیاس نکوی، او که څوك داسے اوکړی، او چا ته د نص د وجود پته اولږی، نو هغه له د نص باوجود قیاس اغستل جائز نه دی، کونړ ملا هسے د تعصب په وجه په بدګمانئ کښ وریت پریت دے۔ بله دا چه کونړ ملا رد د تقلید کوی، او پخپله هم تقلید کوی، ولے کونړ ملا دد ے آیت دا ترجمه چه قرطبیؒ کړیده، دا په یو آیت یا حدیث کښ راغلے ده؟ چه نه ئے داسے راغلے۔ هغه وائی، کارغه غول خوری، او مینوکه خنډی۔ کونړ ملا هم د تقلید رد کوی، او هم تقلید کوی، د تقلید رد په تقلید کوی۔

دا اردو دژبے متل دے " لڑتا ہے اور ہاتھ میں تلوار نہیں ہے "

کونړملا لیکی ۔ دریم دلیل دا قول د الله تعالی دے۔

" واذا قیل لهم اتبعوا ما انزل الله قالوا بل نتبع ما وجدنا علیه آباءنا اولو کان الشیطٰنُ یدعوهم الی عذاب السعیر "

" واذا قیل لهم تعالوا إلی ما انزل الله والی الرسول قالوا حسبنا ما وجدنا علیه آباءنا "

وقوله تعالی " واذا قیل لهم اتبعوا ما انزل الله قالوا بل نتبع ما الفینا علیه آباءنا " اه ص ۱۸

**تنبیه** :- کونړملا دا ایاتونه خو اول ستا په دی دعوی چه په تقلید او اتباع کښ فرق دے، ردکوی. ځکه چه دلته اتباع آباء ده او دلیل پری نښته. حالانکه ستا په نیزد اتباع په دلیل سره وی۔

کونړملا صاحب، دا سے قسم ټول ایاتونه دخپل پلار نیکه د غلطو عقیدو د تابعداری په رد کښ دی، علامه شاطبیؒ په اعتصام کښ لیکی،

" قول من جعل اتباع الآباء فی اصل الدین هو المرجوع الیه دون غیره حتی ردوا بذلك براهین الرسالة وحجة القرآن ودلیل العقل الخ ص ۳۰۲ ج ۲

یعنی داد هغه چاخبرے دی چه د دین په عقیدو کښې ئے صرف د پلار نیکه تابعداری اصل گرځولی ده، او په دے ئے د قرآن او سنت دلائل رد کړیدی.

کوم ملاعقل دِ نصیب شه، داآیا تو نه په عقیدو کښې د تقلید په رد کښې دی، په فروعی مسئلو کښې د چا په رد کښې نه دی، ځکه چه په اصول دین کښې یعنی عقائدو کښې د چا تقلید حرام دے. او دا ایاتو نه هم دابنائی. باقی پاتے شوه په فروعی مسئلو کښې د چا د تقلید خبره، نو علامه شاطبیؒ په "اعتصام" کښې لیکی،

أن العالم بالشريعة إذا اتبع في قوله وانقاد اليه الناس في حكمه فانما اتبع من حيث هو عالم وحاكم بها وحاكم بمقتضاها لا من جهة اخرىٰ فهو في الحقيقة مبلغ عن رسول الله صلى الله عليه المبلغ عن الله عزوجل الخ صـ۲۹۷/۲

یعنی کله چه د شریعت عالم د قول اتباع اوشی، او خلق ئے د حکم تابعدار شی. او او ئے منی، نو د ده اتباع څه د بلے وجهے نه نه ده، بلکه صرف لدے وجهے نه او شوه چه دے د شریعت عالم دے او د شریعت د تقاضو مطابق حکم کوونکے دے. نو دا عالم په حقیقت کښې

د پیغمبر علیه السلام له طرفه رسوونکے دے، او پیغمبر علیه السلام د الله له طرفه.
نو مجتهد له ځانه څه نه جوړوی، هم هغه د کتاب و
سنت خبره خلقو ته رسوی.

کونړ ملا، لوړے ستړکے او غوږوه او له خدائے پاک نه
او ویریږه، د مشرکینو په باره کښ نازل شوی ایاتونه
په مسلمانانو باندے چسپان کول تحریف دے، او تا
ته پته شته، چه تحریف د چا کار دے؟ عقل دِ نصیب
شه، دا د یهودو کار او طریقه ده۔ د مسلمانانو نه۔
ګوره په آیت " بل نتبع ما وجدنا علیه آباءنا أو لو
کان الشیطن یدعوهم إلی عذاب السعیر " کښ د مشرکینو
پلارنیکه ته شیطان و بللی دی۔ ولے ستا په خیال دا
مجتهدین هم العیاذ بالله شیطانان وُو۔ بله دا چه مقلدین
د مجتهدینو تقلید کوی، ستا څه خیال دے چه د مشرکینو
پلارنیکه هم مجتهدین وُو؟

بله دا چه مجتهد ته د بخاری د حدیث په رڼړا کښ
په غلطئ هم یو اجر میلا ویږی، حدیث شریف کښ
دی؛

إذا حکم الحاکم فاجتهد فأصاب فله اجران
واذا حکم فاجتهد ثم أخطأ فله اجر ، رواه البخاری

(۲-۱۰۹۲) ومسلم (۲-۷۶) واللفظ للبخاری۔

کونړ ملا د مجتهدینو تشبیه به د ے مشرکینو سره هله وړکوله چه دوئ هم مجتهدین وے، او په صحیح مسئله ورته دوه اجرونه او په غلطئ ورته هم یو اجر میلاویدے

ع سخن شناس نهٔ دلبرا خطا اینجا ست

کونړ ملا د تفسیر قرطبی حواله ورکړیده او په دیکښې ئے هم دهوکه کړیده، پوره عبارت ئے نه دے نقل کړے، "لا تقربوا الصلاة" وائی۔ او "وانتم سکارى" پریږدی۔ کونړ ملا که د زړه سترګے د ړندے وے، نو وی به، ولے د سر سترګے د هم ړندے دی، هم په دغه صفحه دا ورپسے عبارت د نه لیدو، ټول عبارت دا دے۔

"قال علماءنا وقوة الفاظ هذه الآية تعطى ابطال التقليد ......... وذلك أن الله سبحانه اخبر عن جهالة العرب فيما تحكمت فيها بآرائها السفيهة فى البحيرة والسائبة والوصيلة فاحتجوا بأنه امر وجدوا عليه آباءهم فاتبعوهم فى ذلك وتركوا ما انزل الله على رسوله وأمر به فى دينه .......... تعلق قوم بهذه الآية

فی ذم التقلید لذم اللّٰه تعالیٰ الکفار باتباعہم
لآبائہم فی الباطل واقتدائہم فی الکفر والمعصیۃ
وهذا فی الباطل صحیح ، اما التقلید فی الحق فاصل
من اصول الدین وعصمۃ من عصم یلجأ الیہا
الجاہل المقصر عن درک النظر واختلف العلماء
فی جوازہ فی مسائل الاصول علی ما یأتی واما
جوازہ فی مسائل الفروع فصحیح اھ
تفسیر قرطبی (۲-۲۱۱)

یعنی ځینو علماوو ویلی دی، چه دا آیت تقلید باطلوی
دے آیت پښان دا آیت دے۔ "واذا قیل لهم تعالوا الی
ما انزل اللّٰه الآیة ......... او داحکه چه دعربو جاهلانو
دخپلے ناپوهئ او بیوقوفئ په وجه سره د بعضو څاروو
لکه بحیره، سائبه، وصیله په باره کښی دحرام والی فیصله
کړی وه، او په دے یے دا دلیل وړاندے کړو، چه مونږ
په دے طریقه خپل پلار نیکه موندلی دی، په دے باره
کښی یے د دوئ تابعداری اوکړه، او د اللّٰه پاک حکم
یے پریښودو،
بعضے خلق (لکه کومے ملا او دغه پیشوایان او متبوعین
مترجم) د دے آیت په وجه سره د تقلید بدی بیانوی،

ځکه چه الله تعالیٰ د کفارو د خپل پلار نیکه په باطل او ناجائز کار کښې اتباع ته او په ګناه او کفر کښې د دوئ اقتداء ته بد وئیلی دی - دا په غلط او باطل کښې خو صحیح ده (یعنی په باطل کښې د اتباع او تقلید بدی بیانول) لیکن په حق او صحیح خبره کښې تقلید کول د دین د اصولو نه یو اصل دے۔ او د مسلمانانو د (غلطئ نه دم) هم کیدلو یوه طریقه ده، چه جاهل او کوم سړے چه د اجتهاد لیاقت او قابلیت نه لري هغه پرے عمل کوی۔

او په ص $\frac{۲۱۲}{ج-۲}$ بانده لیکی۔

فرض العامی الذی لا یشتغل باستنباط الأحکام من اصولها لعدم اهلیته فیما لا یعلمه من امر دینه ویحتاج إلیه إن یقصد اعلم من فی زمانه وبلده فیسأله عن نازلته فیمتثل فیها فتواه، لقوله تعالی: فاسئلوا اهل الذکران کنتم لاتعلمون، وعلیه الاجتهاد فی أعلم أهل وقته بالبحث عنه حتی یقع علیه الاتفاق من الأکثر من الناس، وعلی العالم ایضًا فرض ان یقلد عالمًا مثله فی نازلة خفی علیه فیها وجه الدلیل والنظر الخ

تفسیر قرطبی (۲ - ۲۱۲)

عامی سړے چه د اجتهاد قابلیت نه لري په هغه فرض دی
چه د خپلے زمانے او د خپل ښار لوئی عالم په باره کښ
معلومات حاصل کړی، د مسئلے تپوس ترے اوکړی، او
په هغه مسئله کښ د هغه په فتوی باندے عمل اوکړی، د
الله پاك ارشاد دے که تاسو نه پوهیږی نو د علماؤ نه
تپوس اوکړی، او په عالم باندے هم فرض دی، که په یو
مسئله کښ ورته دلیل ښکاره نه شی، نو له ځانه د لوئی
عالم نه تپوس اوکړی، او د هغه تقلید د اوکړی، انتهی مختصراً
کونړ ملا! علامه قرطبی خو په عالم باندے هم تقلید
فرض کنړی، او ته ئے د کلام نه په تقلید باندے رد ثابتوے،
هغه وائی، " من چه می سرایم وطنبوره کونړ ملا چه می سراید "
تقلید په فروعی مسئلو کښ جائز دے، نو قول اهل حق دے
قائل دی. او په عقائدو کښ نا جائز دے، او دا قسمه
آیاتو نه په عقائدو کښ د تقلید په رد کښ دی، ځکه چه
په عقیده کښ تقلید نشته.
اوګوره ابن عطیه ؒ هم دا آیت په عقیدو کښ د تقلید
په رد باندے حمل کوی، د دے آیت په تفسیر کښ
لیکی،
(بل نتبع ماالفینا علیه آباءنا

اولو کان آباءھم لایعقلون شیئًا و لا یھتدون)
وقوة ھذه الألفاظ تعطی ابطال التقلید، واجمعت
الأمة علی ابطاله فی العقائد اھ

محرر الوجیز لابن عطیةؒ (۱-۲۳۸)

یعنی په عقیده کښې د تقلید په ناجائز کیدو د ټول امت
اجماع ده، کونړ ملا د عقیدے په باره کښې نازل شوی
ایاتونه په فروعی مسئلو حمل کوی، دا تحریف معنوی
دے، او تحریف به یهودیانو کوؤ لکه قرآن کریم پرے
شاهد دے۔

کونړ ملا صاحب! علامه قرطبیؒ مالکی عالم دے۔ د
امام مالکؒ تقلید کوی، او ته تقلید ته کفر وائے، نو
څه شرم لرے او که؟ چه د مقلدینو اقوال وړاندے کوے
او هغه هم نیمګړے۔

سنن ترمذی اوګوره، ځائے په ځائے وائی "سألت
محمد بن اسماعیل"، او په عللو کښې د امام بخاریؒ تقلید
کوی۔ نو ستا څه خیال دے؟ د غه شان شاه ولی اللهؒ
په خپل کتاب "الانصاف" کښې امام بخاریؒ او امام
مسلمؒ ته شافعیان، امام ابو داؤدؒ ته حنبلی او امام
ترمذیؒ ته د اسحٰق بن راهویهؒ مقلد وائی، نو ستا

دده حضراتو په باره کښې څه خیال دے؟ لوړ دخدایه اوویریږه، په لږه وړاندے تیره دے زمانه کښې دحافظ ابن حجر عسقلانیؒ نه یا د هغه د استاذ علامه عراقیؒ نه لوئے محدثین شوکانیؒ وو. نن هم د هغوئ په اصول حدیث کښې لیکلې شوی کتابونه په درس کښې داخل دی، او د رجالو دکتابونو نه ئې ټوله دنیا استفاده کوی، او دا حضرات شافعیان وو، اخیر دا ولے؟ داځکه چه د تقلید نه بغیر کارګران دے، کونړملا ته هم تقلید کوے. مره هسے د له ځانه مجتهد جوړ کړیدے. فرق دومره دے چه ته د شوکانی تقلید کوے، دپیرجهنډا تقلید کوے، او مونږه دخیر القرون دخلقو، یعنی دامام ابوحنیفهؒ تقلید کوو. ځکه چه دامام ابوحنیفهؒ دصحابه کرامو سره د ملاقات حافظ ابن حجر وغیره ټول قائل دی. البته په روایت کښې اختلاف کوی. نو مونږه د خیر القرون د مجتهد تقلید کوو، او ته د شر القرون د شوکانی زیدیؒ شیعه تقلید کوے.

کونړملا بیا د "قاضیٔ شوکان مددے" چغے وهی۔ لیکی،

قال الشوکانی فی فتح القدیر وفی هذه الآیة من الذم للمقلدین الخ

کونړملا ما دره ته د شوکانی زیدی شیعه په ځانے دسنیانو

دلوئ معتبر عالم دین ابن عطیہؒ او بل قرطبیؒ حوالہ ذکرکړی
چہ د دے آیت تعلق پہ فروعی مسئلو کښ د تقلید سرہ ندے
بلکہ پہ عقیدو او هغہ هم پہ باطلو عقیدو کښ د تعلق سرہ
دے۔کونړ ملا تہ د شیعہ خبرہ خو اخلے او د سُنیؔ خبرہ
نہ اخلے۔خیر تا تہ گناہ نشتہ، غیر مقلدین هسے هم ځان
تہ شیعہ گان وائی۔ غیر مقلد وحید الزمان وائی،

" واهـــل الحدیث شیعۃ علی رضی اللہ عنہ"

(نزل الابرار ص ۷ ج ۱۰)

یعنی اهل حدیث شیعہ گان دی، او پہ هدیۃ المهدیین
کښ لیکی، " ما شیعہ گان علی هستیم "، یعنی مونږ اهلحدیث
شیعہ گان یو۔ نو کہ کونړ ملا د سنیانو پہ ځائے پہ
شیعہ پسے روان وی، نو داخہ نوے خبرہ ندہ،

ایں خانہ ہمہ آفتاب است

د آیت " ولا تقف ما لیس لک بہ علم " نہ د کونړ ملا
استدلال غلط دے، ځکہ کہ مقلد لہ ځان نہ د کتاب و
سنتؐ خلاف څہ مسئلہ جوړولے، نو بیا خو صحیح دہ،
لیکن مقلد خو د عالم چہ هغہ پہ کتاب و سنت پوهیږی،
اقتداء کوی۔ نو مقلد د دے آیت لاندے راوستل د
کونړ ملا ناپوهی دہ۔

کونړ ملا مخکښ لیکي: "او تقلید په اتفاق د علماؤ سره علم نه دے" ص۱۹. کونړ ملا صاحب دا عالمان مقلدین وو اوکه غیر مقلدین؟ لږ د دوی نوموړ خو به دِ اغستے وے. ولے رجماً بالغیب کوے؟ بله خبره دا چه که مقلد په دغه مسئله پوهیدے نو ولے به بے دیل تقلید کولو، معلومه شوه چه تقلید هغه وخت کوی، چه د دغے مسئلے یا د دغه مسئلے د دلیل علم ورته نه وی، نو دا خو د تقلید اثبات شو، رد نه شو.

کونړ ملا لږ دا هم اوښایه چه دا اتفاق او اجماع کله شوے، او مأخذ ئے څه دے، ځکه چه ستا په نیزد خو د اجماع دپاره دکتاب او سنت نه ماخذ ضروري دے لکه تا په ص۴۸ لیکلی. بل تا په ص۵۵ باندی لیکلی چه د علماؤ قول حجت نه دے، نو دلته ئے څنګه حجت کړے؟ اخیر دا تضاد بیاني ولے کوے؟

کونړ ملا د تفسیر قرطبي حواله ذکر کړیده، په ص۲۰ باندے او بیا ئے پکښې خیانت کړیدے. پوره عبارت ئے ندے ذکر کړے، چه حقیقت ترے معلوم نه شي. دلته ئے بیا "لا تقربوا الصلاۃ" ذکر کړے، او "وانتم سکاریٰ" ئے پریښودے. پوره عبارت دا دے.

التقليد ليس طريقًا للعلم ولا موصلًا له، لا في الأصول ولا في الفروع وهو قول جمهور العقلاء والعلماء خلافًا لما يحكى من جهال الحشوية والثعلبية من أنه طريق إلى معرفة الحق، وأن ذلك هو الواجب وأن النظر والبحث حرام، ص۲۱۲ ج ۲

يعنې تقليد د علم لاره نه ده، نه په اصولو (يعنې عقائدو) کښې او نه په فروعو (فروعی مسئلو) کښې - دا د عامو عقلمندو او عالمانو قول دے - سيوا د بعضو غلطو فرقو نه چه هغوی وائی، چه نه، دا حق طرفته لار ده، او هم صرف دا واجب ده - او (په کتاب وسنت کښې) نظر کول، او (د دلائلو او مسئلو) لټون کول حرام دی - کوثر ملا خط کشيده الفاظ پر مبنی دی، چه په مطلق تقليد ترے رد او کړی - حالانکه دا په هغه چا رد دے، چه هغوی د علم حصول او په کتاب وسنت ځان پوهه کول حرام ګڼړی - او صرف په تقليد اکتفاء کوی - خوکه څوک د بحث او لټون قابليت نه لری، او د علم حصول ناجائز نه ګڼړی، او تقليد کوی، نو دا خلق ترے مراد نه دی، کوثر ملا دلته بيا د علماؤ د قول نه دليل نيسی، او په صفحه ۵۵ باندی ليکی چه د دوئ قول حجت نه دے -

کونړ ملا بیا خپله موروثي وظیفه " ابن قیم مدور ے " شروع کړي
دائي ، ابن قیم دائي چه مقلد په علماؤ کښي نه شماریږي ، صځ
اوله خبره داده چه دابن قیم وینا کوم شرعي حجت د ے - تاخو
عنوان ایښودے وُو " ایاتونه د تقلید په بدئ کښي " اوراوړے
کله د شوکاني قول او کله دابن قیم قول او کله د نورو
غیرمقلدینو قولونه او هغه هم نیمګړي - کونړ ملا د دوئ دا
قولونه ستا په نیزد واقعي ایاتونه دي او تا پرے ایمان
راوړے د ے ؟ عنوان څه لیکے او لا ندے څه ذکر کوے
او دا څکه چه " دروغ گو را حافظه نباشد "
بله دا چه دابن قیم دا قول نیمګړے د ے ، پوره هغه
د قرطبيؒ قول د ے ، او هغه اوس یو څو کرښے مخکښې
تیر شو ، لږ بیا پرے نظر واچوه -
بله دا چه د کونړ ملا په قول کښي تضاد د ے ، دابن قیم
قول دا د ے .
"وان العلم معرفة الحق بدلیله "
او کونړ ملا په خپل زعم کښي حق دابن قیم او شوکاني
په قولونو سره پیژندل غواړي ګویا دابن قیم او
شوکاني قول دلیل د ے -

# دکونړملا په نیز د شوکانی مقام

د شوکانی قول نقل کوی " کوم کتابونه چه مقلدینو په مسئلو کښې لیکلی دی، دا دین نه دے" صنځ۲ مطلب دا شو چه شوکانے څه ته دین اووائی. نو هم هغه به دین وی. کتے هغه به دین نه وی. کونړملا صاحب ا شوکانی له دا اختیار حق الله تعالیٰ ورکړیده اوکه پیغمبر علیه السلام ؟ چه د شوکانی قول دحق معیار دے. ګویا ؏

اذاقالت حذام فصدقوها

فان القول ماقالت حذام

"کبرت کلمة تخرج من افواههم" کونړملا ته خو هم وائے چه څه فتاوی لیکم، او ته د ابن قیم او شوکانی ړوند مقلد ئے. بلکه شوکانی له دخدائے او د رسول مرتبه ورکوے، ستا دا کتاب به د شوکانی په نظر کښې څنګه وی؟ د دین کتاب به وی اوکه نور څه ؟

**تنبیه ۴-** کونړملا په تقلید او اتباع کښې فرق کوی، او د آیت " بل نتبع ماالفینا علیه آباءنا"

نه په تقلید ردکوی، وائی،" دا متضمن دی تردید دتقلید لره،، ص۱۹ کونړملا دلته خو صرف دا تباع ذکر دے،نوکه دتقلید تردید ته آیت متضمن وی، نو اتباع ته هم متضمن شو۔

کونړملا د" ابن تیم مددے،، نه روسخو دا بن قیم قول نقل کوی، چه کومه خبره په دلیل سره ښکاره نه شی هغه علم نه دے، گمان دے او حق پرے نه ثابتیږی ص۲۱

دا سے معلومیږی، چه په کونړملا کښ دا نکارحدیث جراثیم موجود دی، هسے هم په هندوستان کښ چه څومره منکرین حدیث تیرشوی دی، هغوئ اول اهلحدیث (غیرمقلدین) وو. او بیا منکرین حدیث . لکه اسلم جیراجپوری وغیره، او مرزاقادیانی چه په اوّل کښ اهلحدیث وو، دپیغمبری دعوی ئے اوکړه، معلومیږی، چه په کونړملا کښ دغه دپلار رنګه دانکارحدیث جراثیم موجود دی

مونږه دا خبره مخکښ په حواله سره یعنی د" تدریب الراوی،، ص۲۵۱ ج۱ په حواله سره ذکر کړیده، چه کله دحدیث دعلتونو ماهر محدث ته او وئیلے شی چه ته دے حدیث ته ضعیف وائے، په دے ستا سره څه دلیل دے؟ نو هغه ترے هیڅ دلیل نشی قائمولے . لکه صیرفی یواشرفئ ته

کھوتہ اووائی، اوکہ درنہ اووائی چہ دیل څہ دے؟ نو هیڅ دیل پرے نشی ذکر کولے۔ داعلم دے، ټول اهل حق ئے علم گنڼی۔ او دکونړ ملا دوینا مطابق علم نه دے، کونړ ملا صاحب! معلومیږی چہ پټ پټ پوخ منکر حدیث ئے۔ خو هسے ځان دِ پټ کړیدے۔ خو" الاناء یترشح بمافیہ"

کونړ ملا د نواب صدیق حسن خانصاحب عبارت نقل کوی، کونړ ملا صاحب! صدیق حسن خان خو پخپله غیر مقلد دے۔ دده قول اخیر څنګه حجت ګنړے؟ او بل نه خو دعلماؤ قول هسے هم دیل نه ګنړے۔

کونړ ملا صاحب! نواب صاحب د" ترجمان الوهابیه" نوم کتاب مصنف دے۔ په هغے کښې ئے دانګریزو نمک حلالولو ښه پوره پوره حق اداکړیدے، لږ" ترجمان الوهـابیه" اوګوره۔ ددا سے سړی قول ته ولاړاندے کوے۔ چہ وحیدالزمان غیر مقلدوائی چہ صدیق حسن خان به ع " کعبۂ دین مدرے قبلۂ ایمان مدرے

ابن تیم مدرے قاضئ شوکان مدرے " وے

خیر کونړ ملا د صدیق حسن خانصاب په حواله د قاضی عضد قول نقل کړے۔ چہ" مقلد دسره عالم نه دے، صاا او له خبره دا ده، چہ قاضی عضد مالکی عالم دے، او مقلد

دے نو دده قول ئے څنګه نقل کړو، بله دا چه ستا سو په نیزد تقلید شرک دے؟ نو دقاضی عضد تقلید مو ولے اوکړو، ما مخکښې ذکر کړی، چه دحدیث دعلتونو ماهران صرف په شمار شپږ یا اووه کسان دی. (دا د تدریب الراوی په حواله سره مخکښې ذکر شو) او باقی تمام محدثین په دے باره کښې دد ے شپږو اووه کسانو تقلید کوی. نو ایا دوی عالمان دی او که نه؟ او د قرطبی حواله مخکښې تیره شوه، چه عالم به دځانه دلوئ عالم تقلید کوی، نو ته څنګه وائے چه مقلد عالم نه دے؟ کونړ ملا! دکیر فقیر مه جوړیږه، لږ سوچ او فکر خو کوه.

کونړ ملا د زمخشری قول نقل کړیدے،

"إن كان للضلال أم فالتقليد أمه فلاجرم ان الجاهل يؤمه" ص۲۱

زمخشری معتزلی دے، خو کونړ ملا ئے بیا هم تقلید کوی، څکه چه وائی، "اخوند له خو چه پیټی وی، که دخرے او که د سپی وی". کونړ ملا له خو رد پکار دے، د هرچا قول چه وی. یعنی عدم تقلید د معتزلو مذهب دے، او کونړ ملا هم اعتزال خوښوی.

کونړ ملا وړاندے لیکی." اتخذوا أحبارهم ورهبانهم

اربابًا من دون الله'' ص۲۳ یعنی یهودیانو او عیسایانو خپل عالمان د الله تعالی نه علاوه په خدایانو نیولی وُو.

اوله خبره دا ده، چه دغه یهودیانو او عیسایانو عالمانو به د تورات او انجیل په مقابله کښې له ځانه احکام جوړول، او بیا به ئے وے چه دا د خدائے له طرفه دی. او دا کفر دے. او مقلدین د مجتهدینو تقلید کوی، چه د هغوی د دینداری، تقوی او دیانت نه وله دنیا قائله ده، کونړ ملا پخپله هم د دے خبرے اقرار کوی، ګوره د دے خپل کتاب په ص۱۲ باندے لیکی:

" اکثر خلق وائی، چه امام ابوحنیفه تابعی دی، او زمانه د نبی علیه السلام ته نزدی دی، او ډیر عابد وُو او وغیره وغیره، نو مونږه وایو چه څوک د امام ابوحنیفه د فضائلو نه منکر دی الخ ص۱۲

نو مسلمانان په کافرو باندے قیاس کول، ولے کونړ ملا دا جائز کار دے؟ بلکه دا چه مجتهد نه په غلطئ هم یو اجر میلاویږی د بخاری په حواله سره مخکښې تیر شو، ولے د یهودیانو او عیسایانو دغه کسان مجتهدان وُو، او هغوئ ته به هم په دغه غلطو یو اجر میلاویږی؟

دریمه خبره دا ده چه کونړ ملا نه لیکی چه " دا آیت کریمه

اگر که د یهود یانو او نصاراو په رد کښې نازل شوی وی،
لیکن دا اتفاقی قانون دے،

العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص السبب "
اعتبار عام الفاظ لره وی، شان نزول لره نه وی ص۲۲
نو دا او وایه چه دا آیت دے او که حدیث ؟ د علماؤ قول
خو ستا په نیز د دلیل نه دے، لکه په صفحه (۵۵) چه دِ لیکلی دی.
ستا په نیز د خو دلیل صرف قرآن او سنت دے - پکار
وه چه هغه آیت یا حدیث دِ نقل کړے وے چه په هغے
کښې دا صراحت وے،

" العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص السبب "
او که دا دیو امتی قول وی، او د امتی قول منل ستاسو
په نیز د تقلید دے او شرک دے، نو تا ولے دلته شرک
او کړو؟ او تا چه،

" لتتبعن سنن من كان قبلكم " بخاری (۲-۱۰۸۸)
په مقلدینو حمل کوے، نو ته پخپله ترے لاندے راغلے
او کنه؟ بله دا چه ته په امت کښې شامل ئے او کنه؟ که
شامل نه ئے، نو بیا خو ستا سره هډو بحث ته ضرورت
نشته - او که ځان شامل گڼړے، نو تا ولے د دے حدیث
مخالفت او کړو. " اتأمرون الناس بالبر وتنسون انفسكم "

د امام رازی حواله ورکوی - وائی " امام رازی فرمائی ص۱۱"
امام رازی شافعی المذهب دے او مقلد دے، او مقلدیستا
په نیزد نه عالم دے او نه مسلمان، نو بیا په کومه خوله تنه
وائے چه امام رازی فرمائی -

د دے آیت په ذیل کښ د عدی بن حاتم رضی الله تعالی عنه
حدیث نقل کوے، خولین به دِ کتلے وے چه اهل علم حضرات
د دے څه معنی اخلی، شاه ولی رحمه الله په خپل کتاب
"عقد الجید" کښ د ابن حزم د قول جواب ورکولو په سلسله
کښ لیکی،

" وفی من یکون عامیا ویقلد رجلا من الفقهاء بعینه
یری انه یمتنع من مثله الخطأ وأن ما قاله هو
الصواب البتة وأضمر فی قلبه ان لا یترك تقلیده
وان ظهر الدلیل علی خلافه وما ذلك ما رواه
الترمذی عن عدی بن حاتم أنه قال سمعت رسول الله
صلی الله علیه وسلم یقرأ اتخذوا احبارهم ورهبانهم
اربابا من دون الله قال انهم لم یکونوا یعبدونهم
ولکنهم کانوا اذا احلوا لهم شیئًا استحلوه واذا
حرموا شیئًا حرموه اه (عقد الجید ص۲۷)

یعنی د ابن حزم قول د هغه چا په باره کښ صادقیږی.

چه هغه په فقهاءو کښ د چا تقلید کوی، او دا خیال ئے وی چه له ده نه غلطی نه شی کیدے، او ده چه څه ویلی دی هم دغه صحیح دی۔ او دا خبره ئے په زړه کښ وی۔ چه کچرے دده خلاف دلیل میلاؤ شی، نو بیا به ئے هم تقلید نه پریږدم۔ او دا اسے شوه لکه ترمذیؒ د عدی بن حاتم رضی الله عنه نه روایت کړے وائی، ما واوریده چه نبی علیه السلام آیت "اتخذوا احبارهم ورهبانهم اربابًا من دون الله" لوستو نو اوے فرمائیل چه دے خلقو ددوی عبادت نه کولو، خو کړے احبار و رهبان چه به څه ته حلال وے، دوی به ورته حلال وے، او چه څه ته به ئے حرام وے، دوئ به هغے ته حرام وے۔

کوم ملا که یو سړے واقعی داسے کوی، نو هغه دد ے آیت او حدیث مصداق گرځی۔ او که څوک د دلیل قوت نه گوری۔ او په دلیل پسے ځی، نو دا ددی آیت لاندے راوستل ظلم دے۔

گوره په مذهب حنفی کښ څومره داسے مسائل دی، چه د صاحب المذهب د قول په ځائے د صاحبینو بلکه تقریبًا شپاړس ځایه صرف د امام زفرؒ په قول فتوی ورکړے شوے ده دا دلیل دے ددے خبرے، چه مونږ امام د خطاء نه معصوم نه گڼړو۔ او که داسے شی، نو بیا خو دا د بخاری

د حدیث صریح خلاف ورزی شوہ۔

کونړ ملا په ص۲۴ باندے بیا د شوکانی عبارت ذکر کړیدے، عجیبه ده چه کونړ ملا مخکښې وئیلی وُو. چه د تقلید په رد کښې ایاتونه پیش کوُوم. او په خوله ئےکله د "ابن قیم مدرے الخ" او کله د " قاضیؒ شوکان مدرے الخ" چغے دی کونړ ملا لکه ددوئ قول له هم د ایت مرتبه ورکوی، او په ص۲۰ باندے خوئے د شوکانی نه خدائے جوړکړیدے، اعوذ بالله من هذه الخرافة ، چه کنے شوکانی څه نه وین اووائی، نو هم هغه به دین وی. کونړ ملا د خپل ایمان تجدید اوکړه، اوورسره د نکاح هم، کنی اولاد به دِ هم ستا په شان وی۔

کونړ ملا صاحب! لږ د شوکانی حالت خو به دِ کتلے وے، چه "نیل الأوطار" ئے ټول د مقلدینو خصوصًا د حافظ ابن حجرؒ د اقوالو نه ډک دے، د هغه تحقیقات رانقل کوی. او دغه شان " ارشاد الفحول " ئے اوکوره، ټول د مقلد ینو د اقوالو نه ډک دے، که شوکانے پخپله مجتهد وے، او مقلد نه وے، نو د نورو خلقو خصوصًا د مقلد ینو اقوال د را غستلو څه مطلب شو؟ پردی تحقیقاتو باندے ځان مجتهد گڼړل دا داسے دی، لکه په پردی شعر

خپل کسر خیژول ، بلکه پښتانه د یته " په پردو غولو نه‌بزونه
اچول " واٸی ۔

کونړملا په ص۲۵ باندے لیکی ، " محترمو ورونو تقلیدکښ
تاسو څه فائده لیدلی ده ، چه دا سے پری کلك شوی یٔ " الخ هم
دغه خبره مونږه کونړملا ته کوُو ، چه کونړملا صاحب د ابن‌تیم
او شوکانی په خبروکښ تا څه موندلی دی ، چه هر وخت د
" ابن تیمیه مدد ے قاضی شوکان مددے " چغے او نارے سورے دجوړے
کړیدی ، تاله پکار وه ، چه صرف او صرف آیت او یا حدیث
دِ ذکرکولے ، دیو امتی او غیرمعصوم او زیدی شیعه قول
دِ نه ذکرکولے ، ځکه چه ستاپه نیزد دغیرمعصوم او امتی
قول اغستل شرك دے ، نوکونړملا ځانے په ځانے او
قدم په قدم شرك ولے کوے ؟ او ددے دوُو کسانو په‌خولو
ټولو مسلمانانو ته کافر ولے وائے ؟ د عبرت مقام دے ۔
" وسیعلم الذین ظلموا ای منقلب ینقلبون "

## دکونړملا غلطی

کونړملا په ص۲۵ باندے آیت " ام حسبتم ان تدخلوا
الجنة ولم یعلم الله الذین جاهدوا منکم ولم یتخذوا
من دون الله ولا رسوله ولا المومنین ولیجة " نقل‌کړے ،
کونړملا په دے آیت کښ هم لفظی غلطی کړیده او هم معنوی

لفظي غلطي دا چه د سورة توبه آيت ئے د سورة آل عمران په آيت کښې ورد ننه کړيد ے، او دواړو آيتونو نه ئے يو آيت جوړ کړيد ے، د سورة توبه آيت " أمر حسبتم أن تتركوا و لمّا يعلم الله الذين الخ" د ے۔ او معنوي دا چه د وليجة نه دابن تيم پړ رو ند تقليد کښې په تقليد باندے رد کوي۔ هغه وائي" وهم ډکوم ځائے او رب ډکوم ځائے خيژي ؟

ډوليجه ، لفظ چه په کوم آيت کښې د ے هغه په سورة توبه کښې د ے۔ او مطلب ئے دا د ے، چه اے مؤمنانو ستا سو خه خيال د ے، چه تاسو که څنګه چه يئے (يعنې د مؤمنانو او منافقانو يوځائے او يو شان پاتے کيده) هم دغه شان به پريښودے شئ، او هغه کسان چه د الله په لار کښې ئے جهاد کړے وي، او د الله تعالی او د هغه رسول او مؤمنانو نه علاوه بل څوک ئے پټ دوست نه وي نيولی، هغوئ به د هغه خلقو نه جدا نه کړے شي، چا چه نه جهاد کړے وي او نه ئے صرف الله تعالی او د هغه رسول او مؤمنان په دوستئ نيولی وي۔ يعنې د دوئ په مينځ کښې به ضرور فرق کيږي۔

په د ے آيت کښې د منافقانو سره د دوستئ کولو نه منع

ده، "ولیجة" پټ دوست ته وائی، چه د خپل زړه راز ورته ښکاره کوی۔

"ولم یتخذوا ولیجة": ای بطانة من الذین یضادون رسول الله صلی الله علیه وسلم والمؤمنین رضوان الله علیهم اجمعین۔

تفسیر کشاف (۲-۱۷۸)

یعنی دلته د ولیجه نه مراد د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د مؤمنانو دشمنان دی۔

## روند تقلید

آیت د څه په باره کښې دے، او کونړ ملا ترے د ابن قیم په تقلید کښې څه معنی اخلی۔ کونړ ملا! دیته وائی روند تقلید. لکه ته چه د ابن قیم او شوکانی کوے۔ نو دے چه په آیت کښې دِ غلطی هم اوکړه. کونړ ملا تا ته د ولیجے معنی نه ده معلومه نو په دے باندے ستا حاشیه آرائی څه وقعت اومقام نه لری۔ هسے دِ کاغذ ضائع کړیدے۔

کونړ ملا په ص۲۷ حکایت نقل کوی۔ چه یوځل یو مولوی صاحب اوئیلے، چه په هدایه کښې ښی مسئلے شته لیکن خرافات هم پکښې شته۔ نو یل حنفی ملا سپین ګیری په مخ خسپیره ورکړه، چه ته د هدایے پورے خبرے کوی۔ کونړ ملا د حنفی ملا غصه بے ځایه نه وه، ستا

د دغه بیهوده او یا وه کوړ ور لهجه دا سے وه چه دخپیړے لائق وُو، ځکه چه ستا د ے بے هوده ورور دا سے هم وُبیلے شو، چه بنے مسئلے هم شته او ضعیف اقوال هم، نو ټهیک ده، دکتاب الله نه علاوه په هر کتاب کښ بنے او صحیح خبرے هم وی، او ضعیفے هم ـ لکه د حدیثو په کتابونو کښ صحیح حدیث هم وی، او ضعیف هم، د د ینه انکار یا پدے باندے غصه کیدل فضول دی، لیکن خرافات لفظ و ټیل د تهذیب نه بهر دی، خو ستا سو غونډے بد تهذیبو ته دا څه نښکاری.

# کونړملا د تشبیه په معنی هم نه پوهیږی

کونړملا په " ان الهدایة کالقرآن قد نسخت ما صنفوا قبلها فی الشرع من کتب "، باندے اعتراض کوی. اوله خبره داده، چه دا په مدحه کښ د غلو د قبیل نه ده ـ اطراء فی المدح غلط کار دے، دا د یو کس خبره ده. مذهب نه دے، بله دا چه معلومیږی، چه ته هډو د تشبیه په معنی نه پوهیږے. په " زید کالاسد " کښ تشبیه په هر څه

کبن نه ده. او ددے مطلب دا نه دے، چه هدایه واقعی قرآن دے. العیاذ بالله،

## دکونړ ملا اووم دلیل

" فان تنازعتم فی شیئ فردوا إلی الله والرسول ان کنتم تؤمنون بالله والیوم الآخر ذلك خیر واحسن تأویلا " کونړ ملا وائی چه تقلید د الله او رسول نه ماسوی بل چانه وړلونه وائی، ص۲۸ -

کونړ ملا صاحب ! د کلیر فقیر ئے، چه ابن قیم څه اووائی نو ته پرے آمنا وسلمنا وائے. نو تا دا خبره د الله او د رسول نه ماسوی د بل چا نه ولے واغسته ؟ د آیت خلاف دِ پخپله اوکړو، بله دا چه ددے آیت نه دامخکښینئ آیت ئے په نظر رانغلو، اوکه نه له سره دِ هډو قران لوستے نه دے، ددے آیت نه په مخکښینی آیت،

"یاایها الذین آمنوا اطیعوا الله واطیعوا الرسول واولی الأمرمنکم ط (سورة نساء آیت ۵۹)

کبن د" اولی الامر " د اطاعت حکم هم شوید ے، او" اولی الامر" د الله تعالی او رسول نه ماسوی دے. دغه شان آیت"

فاسئلوا اهل الذکر إن کنتم لاتعلمون"

کښې د الله تعالی او رسول نه ماسوی خبره منل دی.

کو نړ ملا صاحب! د دے دواړو آیتونو په مینځکښې څه تضاد نشته، ځکه چه مجتهد اجتهاد هله کوی کله چه په یوه مسئله کښې نص موجود نه وی، او تقلید هم په اجتهادی مسئلو کښې کیږی، نو کله چه په یو مسئله کښې نص موجود وی، نو کتاب الله یا سنت رسول ته به مسئله رد کولے شی- او که چرے په دے دواړو کښې مسئله موجود نه وی، نو بیا رد کتاب الله او سنت رسول ته واجب نه دے۔

علامه آمدیؒ په "الاحکام فی اصول الاحکام" کښې لیکی،

ولقائل ان یقول لا نسلم أن قوله تعالی (فردوه إلى الله والرسول) یدل على الوجوب على ما سبق تقریره، فالرد إلى مذهب الصحابي لا یکون ترکا للواجب وان سلمنا أنه للوجوب و لکن عند امکان الرد وهو ان یکون حکم المختلف فیه مبینًا فی الکتاب أو السنة" وأما بتقدیر أن لا یکون مبینًا فیهما فلا و نحن إنما نقول باتباع مذهب الصحابی مع عدم الظفر بما یدل علی الواقعة من الکتاب والسنة اھ (۴-۲۰۲)

نو څرګنده شوه چه د صحابی مذهب ته هله رجوع کیږی، کله چه اختلافی مسئله په کتاب و سنت کښې موجود نه وی، دغه

شان کله چه مسئله په کتاب وسنت کښې موجوده نوي، نو مجتهد طرفته رجوع کيږي - کونړ ملا صاحب ! لږ خان پوه کړه، او د ابن تيم په وړ ند تقليد پريږده . "فردوه إلى الله والرسول" عام نه دے او نه ئے عام ګڼړے ، دا هغه دے کله چه حکم په دے دواړو کښې موجود وي. او کله چه موجود نه وي، نو بيا به "واتبع سبيل من أناب إلي" او "فاسئلوا اهل الذكر" باندے عمل کيږي، د هر يو آيت خپل خپل محل او مقام دے۔

## دکونړ ملا اتم دليل

" يوم تقلب وجوههم في النار يقولون ياليتنا أطعنا الله وأطعنا الرسول وقالوا ربنا أطعنا سادتنا وكبراءنا فأضلونا السبيلا " ص۲۸

په ص۲۹ ئے د علامه آلوسيؒ قول نقل کړيدے ،

"السادة الولاة والكبراء العلماء الذين لقنوهم الكفر وزينوه لهم" ص۲۹

يعني د سادات نه مراد حاکمان دي، او د کبراء نه هغه عالمان مراد دي چه دوئي ته به ئے د کفر تلقين کولو، او کفر به ئے ورته ښه ښکاره کولو - يعني په دے آيت کښې د کفارو د تابعدارۍ مذمت بيان شويدے، او

مقلدان د مجتهد ینو چه د هغوئ په تقوی او دیانت نړول د بنیا متفقه ده، تقلید کوی۔ د ابن قیم دا قول،

"وهـذا نص فی بطلان التقلید"

دکفارو د تقلید کولو او کفر اختیارولو په باره کښ خو صحیح دے، مګر دا ئمه مجتهدینو په تقلید ئے حمل کول صریح تحریف دے، کونړ ملا د صریح تحریف ارتکاب کوی، قرآن کریم دِ محرف شی، دکونړ ملا پرے څه پرواه نشته، خو چه غلطه نظریه ئے ثابته شی، دادے دکونړ ملا په قران کریم باندے ایمان۔

کونړ ملا صاحب! دا ئمه مجتهدینو تقلید په دے معنی سره کیږی، چه دوئ دکتاب وسنت شارحین ګڼلے کیږی۔ ته دابن قیم په وینا باندے د مجتهدینو اقوال دقرآن کریم متقابل ولے ګڼړے۔

حضرت شاه ولی الله رح په خپل کتاب "عقدالجید" کښ لیکی۔

"فان اقتدینا بواحد منهم فذلك لعلمنا أنه عالم بکتاب الله وسنة رسول الخ صـ

یعنی که مونږه د یو فقیه اقتدا کوو، نو دا صرف ددے وجے چه دکتاب الله او سنت رسول عالم دے۔

کونړملا ! د مجتهد تا بعداری هم په دے وجه کیږی، چه دے عالم دے۔ کنے بیا به یے د عالم او مجتهد په ځایے د بل چا غیر عالم انتخاب کولو، نو د مسئلے دپښتنے دپاره د عالم انتخاب صرف د دے وجے نه دے، او عالم دا قول د قرآن مقابل نه دے۔ بلکه دا هم د قرآن وسنت منل دی په واسطه سره، بغیر د واسطے نه هیڅوک هم په کتاب وسنت با ندے نشی پوهیدلے۔

علامه شاطبیؒ لیکی،

"اذا ثبت ان الحق هو المعتبر دون الرجال فالحق ایضًا لا یعرف دون وسائطهم بل بهم یتوصل الیه وهم الادلاء علی طریقه اھ

اعتصام (۲-۳۱٦)

یعنی کله چه دا خبره ثابته شوه چه اعتبار د حق دے، د خلقو نه، نو حق هم د خلقو د واسطو نه بغیر نه پیژندلے کیږی۔ بلکه هم د خلقو (عالمانو او مجتهدانو) په واسطه حق ته رسیده شی۔ او دوئ د حق بنودونکی دی،

کونړملا ته خو د ابن قیم او شوکانی نه بغیر د تقلید تعریف نشئے پیژندے، او نور خلق منع کوے، معلومیږی د غیرمقلد ینو کره چه واهره پید اکیږی، نو د مور په کیډه

کښې مجتهد جوړ شوے وی، او تقلید نه ئے ضرورت نه وی، نو کونړ ملا د ابن قیم دا جواب ډِخه جواب نه دے۔

## دکونړ ملا خبط

کونړ ملا لیکی، نو دا مقلد که په قرآن او حدیث نپوهیږی، او تابعداری کوی، نو هدایت والا شو، نو بیا مقلد نه شو، او که په قرآن او حدیث نپوهیږی۔ نو بیا دا جاهل دی گمراه دی ذده په خپل اقرار سره، ص۲۹

معلومیږی چه کونړ ملا مخبوط الحواس دے" کما یتخبطه الشیطان من المس،، دکونړ ملا په دے عبارت لږ غور پکار دے۔ وائی که په قرآن وحدیث نه پوهیږی او تابعداری اوکړی نو هدایت والا شو الخ او بیا لیکی که په قرآن وحدیث نه پوهیږی نو بیا جاهل دی گمراه دی۔ عجیبه ده چه په قرآن وحدیث نه پوهیږی نو یو ځائے وائی، په تابعداریٔ مقلد نه شو، او بل ځائے وائی چه جاهل دے گمراه دے۔

کونړ ملا دا خبره دلسے نه ده، بلکه دا سے ده، چه که په قرآن وحدیث پخپله نه پوهیږی او دچا مجتهد تابعداری اوکړی نو هدایت والا شو، او که پخپله هم

نیو هیرې او د بل چا عالم تقلید هم نه کوي، نو جاهل دے گمراه دے۔

د دے مثال داسے دے۔ لکه په صحیح بخاري ص ۱۷۸ ج ۱ باندے د حضرت انس رضی الله عنه روایت نقل کړیدے

او بږد حدیث دے، د دے په اخیر کښ دي،

وأما الکافر أو المنافق فیقول لا أدری کنت أقول ما یقول الناس فیقال لا دریت ولا تلیت ثم یضرب بمطرقة من حدید، (الحدیث)

یعنی کله چه په قبر کښ فرښتے د کافر یا منافق نه تپوس او کړي۔ نو وائي به چه څه نه پیژنم، ما به هم هغه وے، کوم چه به خلقو وے، نو ده ته به اووئیلے شي چه نه پخپله په قرآن پو هیدے، او نه چا پسے تلے، نو بیا به ئے د او سپنے په گروزونو وهي۔ د بخاري په حاشیه په " لا دریت ولا تلیت "، باندې د بخاري د شرح ارشاد الساري للقسطلاني نه د دے مطلب ذکر کړیدے "قوله لا دریت ولا تلیت وأصله تلوت ...... أي لا علمت بنفسك بالاستدلال ولا تلوت القرآن أو المعنی لا اتبعت العلماء بالتقلید فیما یقولون الخ

( حاشیه ۹ ص ۱۷۸ ج ۱ )

یعنی نه پخپله په قرآن پوهید ے، او نه دِ د علماؤ تقلیدکولو.
نوکونړ ملا چه خوک نه پخپله د استدلال او استنباط استعداد
لري، او نه د مجتهد تقلید کوي، نو دهغه هم دا انجام دے
نوکونړ ملا ته هم دے گرزونو ته تیبلل شه، ځکه چه ته نه
مجتهد ئے او نه پخپل زعم کښې تقلید کوے. تقلید خو کوے
خو صرف د ابن قیم او شوکانی. او هغه هم روند تقلید.

## دکونړ ملا نهم دلیل

"اِذ تبرأ الذین اتبعوا من الذین اتبعوا وراُوا العذاب وتقطعت بهم الأسباب"

کونړ ملا تحریف مکوه. دا دکفارو په باره کښې دے، دکفارو
په باره کښې آیتونه په مسلمانانو چسپان کول تحریف دے، او
دا دیهودو طریقه ده.

بله دا چه ته خو وائے چه په تقلید او اتباع کښې فرق دے،
نو دا آیت ستا د زعم خلاف دے. گوره دلته په دے آیت کښې
تقلید نه دے ذکر شوے، بلکه د اتباع ذکر دے، او نه ترے
رد په تقلید کوے، نو ته هم خه پوهیږے، چه په حقیقت
کښې تقلید او اتباع یو شے دے. صرف الفاظ جدا جدا
دی. ع سخن شناس نۀ دلبرا خطا اینجاست

کونړ ملا بیا دا بن قیم مددے اخ" چغے شروع کړے، چه

ابن قیم او ابوعمر بن عبد البر دائی، چه دا سے قسم ایاتونه په قرآن کبن ډیر دی، او علماؤ په دے ایاتونو سره د تقلید په رد استدلال کړیدے الخ ص۳۰

کونړملا صاحب! دا علماء کرام مقلدین وُو او که غیر مقلدین؟ اول دا وضاحت تاله پکار وُو. دویمه خبره دا ده چه اهل حق دا سے قسم ایاتونه په عقائدو کبن د تقلید په رد کبن ذکر کوی، ځکه چه کفارو په عقائدو کبن د خپلو کافرانو مشرانو تابعداری کوله. او د قرآن تابعداری ئے نه کوله او په عقیدو کبن د چا تقلید صحیح او جائز نه دے. ممکن دا خبره تیره شوه. باقی د یو مسلمان مجتهد په فروعی او اجتهادی مسئلو کبن د تقلید هیڅ یو عقلمند انکار نه کوی. شاه ولی الله په عقد الجید کبن لیکی.

"باب تاکید الأخذ بهذه المذاهب الأربعة والتشدید فی ترکها والخروج عنها. اعلم ان فی الأخذ بهذه المذاهب الأربعة مصلحة عظیمة و فی الاعراض عنها کلها مفسدة کبیرة ونحن نبیّن ذلك بوجوه، ص۵۳

یعنی د دے څلورو واړه مذهبونو په اختیارولو کبن ډیرلوی مصلحت دے او لدینه په اعراض او مخ کرځولو

کښې دېر لوئ فساد دے، او دا خبره مونږ په څو ملونو سره واضحه کړه، شاه صاحب ورپسے دا وجوه ذکر کړيدي، چه د مذهب اختيارول ولے ضروري دي، د تفصيل د پاره دا کتاب اوګورئ۔

## دکونړ ملا لسم دليل

" واذا قيل لهم تعالوا الى ما انزل الله والى الرسول رأيت المنافقين يصدون عنك صدودًا" صـ۳۰

کونړ ملا دا هم په عقائدو کښې د تقليد په باره کښې دے، بله دا چه د مسلمانانو د پاره " وإن تنازعتم في شيئ فردوه إلى الله الخ" دا هله دے چه کله په کتاب يا سنت کښې دا اختلافي مسئله موجوده وي۔ کنه بيا رد واجب نه دے۔ بلکه اجماع يا د مجتهد قياس ته به رجوع کولے کيږي۔ مخکښې په دے خبره بحث تير شو۔ کونړ ملا د ابن تيم لمن کلکه نيولے ده، چه ابن تيم ئے هر طرفته ذکاور کړي دے ورپسے په پنځو ستر کوروان وي۔

## يوولسم دليل

" أفلا يتدبرون القرآن ام على قلوب اقفالها" صـ۳۱

کونړ ملا وائی، په د يکښې د مجتهد څه تخصيص نشته، مطلب ئے دا شو، چه په عامي باندے هم استنباط لازمي

دے،کونړ ملا صاحب! دا تکلیف ما لا یطاق دے۔ او پہ دیکښې حرج عظیم دے، معلومیږی چہ قرآن کریم دِ نہ دے ویلے،گوره پہ سورۃ بقرہ کښې اللہ تعالیٰ فرمائی،
"لا یکلف اللہ نفسا الا وسعھا"
اللہ تعالیٰ خولک د هغہ د طاقت نہ زیات نہ مکلف کوی خوکونړ ملا وائی چہ نہ مکلف دے۔ کونړ ملا د قرآن کریم مقابلہ مکوه، او د اللہ تعالیٰ دحکم مخالفت مہ کوه۔

## دولسم دلیل

"قل یا اهل الکتاب تعالوا إلی کلمة سواء بیننا وبینکم أن لا نعبد إلا اللہ ولا نشرك به شیئًا ولا یتخذ بعضنا بعضًا اربابا من دون اللہ ص۳۱
کونړ ملا د" لا یتخذ بعضنا بعضًا اربابًا من دون اللہ" ترجمہ کوی۔" او یو بل بہ حاکمان او شارعان نہ جوړوو سِوی د اللہ نہ"، ص۳۲ کونړملا! ارباب جمع د رب ده او رب پہ معنی د ساتندویہ دے۔ تا دا "حاکمان او شارعان" دکوم لفظ ترجمہ اوکړه۔
کونړ ملا پہ ایاتونو کښې تحریف مکوه، دلتہ د شرک نفی ده۔ چہ د اللہ سره دِ خولک نہ شریکوی، او پہ کفریاتو کښې دِ د چا خبره نہ منی۔

د سیوطیؒ د درمنثور حواله ېې ورکړے ده، کوم ملا علامه سیوطیؒ خو شافعی المذهب دے او مقلد دے، او تقلید ستا په نیز شرک دے، نو دده د قول نه استدلال څنګه کوے؟ دغه شان ېې د علامه آلوسیؒ د تفسیر روح المعانی حواله ورکړیده او آلوسیؒ حنفی المذهب دے، مقلد دے، لږ سوچ اوکړه واۓ څه اوکوے څه؟

کوم ملا داد مخبوط الحواس نښې دی، چه سړے د سلفو په باره کښې بے اعتماده شی، نو هغه هم ستا پشان ګډے وډے واۓ۔

د روح المعانی حواله ېې ورکړیده، مناسب ګڼړم چه ټول عبارت نقل کړم۔ چه داته چه له دے آیت نه څه معنی مراد اخلی دا صحیح ده، او که مونږه چه څه وایو هغه صحیح دی۔

علامه آلوسیؒ لیکی،

(ولا یتخذ بعضنا بعضًا اربابًا من دون الله) ای لا یطیع بعضنا بعضًا فی معصیة الله تعالیٰ۔ قاله ابن جریج۔ ویؤیده ما اخرجه الترمذی وحسنه من حدیث عدی بن حاتم ...... وعن عکرمة ان هذا الاتخاذ هو سجود بعضهم لبعض، وقیل هو مثل اعتقاد الیهود فی عزیر انه ابن الله واعتقاد النصاری فی

المسیح نحو ذلک اھ روح المعانی (۲۰۳-۱۹)

مطلب دا دے، چہ څوک د اللہ تعالیٰ په نافرمانئ کښې دچا اطاعت نه کوی (ځکه چه لا طاعة لمخلوق فی معصیة الخالق) دا خبره ابن جریج کړیده۔ او د عکرمه نه روایت دے، چه د اتخاذ مطلب دا انسانانو یو بل ته سجده نه کول دی، او ویلے شوی دی چه دا لکه دیهودیانو او عیسایانو د حضرت عزیر علیه السلام او حضرت عیسی علیه السلام په باره کښې عقیده ساتلے دی، چه ګنړے دوئی (العیاذ باللہ) د الله تعالیٰ ځامن وو۔

کونړملا صاحب، آیت کریمه د شرک د نفی په باره کښې دے او په باطلو عقیدو کښې دچا د تقلید او اتباع د رد په باره کښې دے، مخکښې دا بحث تیر شویدے، چه په عقیدو کښې تقلید نشته، تقلید صرف په فروعی اجتهادی مسئلو کښې دے۔

## دو یم قسم دلیلونه ص۳۲

کونړملا اوس دو یم قسم دلیلونه وړاندے کوی۔

عن جابر عن النبی صلی اللہ علیه وسلم حین أتاه عمر فقال إنا نسمع احادیث من یهود تعجبنا أفتری ان نکتب بعضها فقال أ متهوکون أنتم کما تهوکت الیهود والنصاری لقد جئتکم بها بیضاء نقیة ولو کان موسی

یحیا ما دسعه إلا اتباعی ؛ ص۳۳

کونړ ملا په دے حاشیه خیژ وی " د یو حق پیغمبر تابعداری پس د راتلو د محمد رسول الله نه حرام ده ، نو دیو پیراو ملا چه د هغه خبره کښ احتمال د خطا او رسا دواړو دے ، تقلید او تابعداری څرنګه جائز شوه چه بلا دلیله د هغه خبره و منلے شی او ص۳۴

مونږ مخکښ ذکر کړی وُو ، چه په غیر مقلدینو کښ دانکار حدیث جراثیم موجود وی ، کونړ ملا د هغه جراثیمو نه مجبوره دے ، او هغه ئے مجبوره کوی - چه دا سے خبرے اوکړی ، چه له محدثینو نه د خلقو اعتماد پورته شی ، علماء جرح وتعدیل په چا جرح او د چا تعدیل کوی ، او د کتاب و سنت نه ورسره بړے هیڅ دلیل نه وی ، او خلق ئے بیا هم خبره منی ، او تقلید ئے کوی ، د غه شان د حدیث د علتونو ما هر یو حدیث ته ضعیف وائی ، او دلیل ورسره هیڅ نوی ، لکه د تدریب الراوی په حواله سره دا خبره مخکښ تیره شوه - کونړ ملا دا غواړی چه دا سلسله ختمه شی ، او د حدیث د دے عظیمے ذخیرے نه خلق لاس اووینځی - معلومیږی کونړ ملا یا خو پوخ منکر حدیث دے ، او یا د دوئی ایجنټ - ځکه چه لوئی لوئی محدثین په دے مسئلو کښ له ځان نه د لویو محدثینو تقلید کوی ،

بلہ خبرہ دادہ چہ کونړ ملا تہ داھم پتہ نشتہ چہ دین موسوی منسوخ دے، او دین محمدی ناسخ دے، د ناسخ پہ موجودگئ کښې پہ منسوخ چرتہ عمل جائز کیدے شی۔ باقی دامت محمد یہ د مجتھدینو تقلید نو داھم د دین اسلام تابعداری دہ۔ او مجتھد تہ د بخاری د حدیث پہ رنړا کښې پہ غلطئ ھم یواجر میلاویږی۔

کونړ ملا قیاس رد اوکړو، او پہ ص۴۵ او ص۵۳ باندے قیاس تہ گمراھی وائی، او بدئ بیانوی، او پہ قیاس کښې ھم خطا شوے، گویا پہ بدئ کښې دِ بدی اوکړہ۔

کونړ ملا مخکښې لیکی۔ "دویم دی کښې اشارہ دہ دی تہ چہ څوک قرآن و سنت باندے اکتفاء نکوی، ھغوئ دیھودو او نصاراؤ پہ شان حیران او مشوش دی پہ خپل دین کښې، او دا یقینی خبرہ دہ، چہ مقلدین څومرہ حیران او پریشان دی ص۳۲۔ کونړ ملا صاحب! پہ ایمان ئے وایہ، دا اشارہ دِ د حدیث د کومو الفاظو نہ را اویستنہ۔ لږ د دے نشاندھی خو بہ دکړے وہ، باقی ستا دا یقین چہ مقلدین حیران او پریشان دی، نو دا دگوزخر نہ زیات اھمیت نہ لری، ھاں! مقلدین پہ دے پریشانہ ضرور دی۔ چہ د غیر مقلدینو پہ وجہ منکرین حدیثو تہ تقویت رسی، د سلفو نہ اعتماد

پورته کیږي، او دخپل مذموم مقاصدو او د بهرنه دپیسو دراتلو دپاره تکه دپهودو په قرآن کښې تحریف ته هم تیاریږي کوثر ملا صاحب، د مقلدینو دا پریشانی ستنا د پاره ده، چه دیو دوُو پیسو د پاره د دوزخ او رلمونے کیږي، ایمان په دوه پیسے خرڅوے۔

## دویم دلیل

" أتی عمر بن الخطاب رجل فقال یا امیر المؤمنین انا لما فتحنا المدائن اصبت کتابا فیه کلام معجب قال أمن کتاب الله قلت لا فدعا بالدرة فجعل یضربه بها الخ ص۲۴

کوثر ملا ستا دے اثر نه په استدلال د تقلید په رد کښې هله صحیح وے، که دا موند لے شوے کتاب د مسلمانانو په ائمه مجتهدینو کښې دچا کتاب وے۔ دخدائے ظالمه، ته دغیر مسلمو کتاب دائمه مجتهدینو دکتابونو سره سموے یعنی کفر د اسلام سره برابروے۔ قیاس دِ اوکړو، او قیاس ته نه بد وائے۔ او قیاس دِ هم غلط اوکړو۔ ځکه چه له خدایه دِ څه یره ترهه نه کیږي۔ کوثر ملا په دے روایت باندے حاشیه خیژوي۔ وائي " واوُره لږ سوچ اوکړه، چه صحابه کرامو د قرآن وحدیث په مقابله کښې هیڅ کتاب له اعتبار نه ورکولو، او گوره عمر ته چه دا سړی ئے وهلی دی پدی

خبره چه یو کتاب د ملا نه ئے توجه کړی وه ام صـ۳۵
اوله خبره داده چه کونړ ملا دا ملا مسلمان ؤو او که
کافر؟ بله داچه که د قرآن و حدیث نه علاوه بل د هیڅ
یو ملا اګر که مسلمان وی، کتاب ته توجه ورکول حرام شی.
نو د اصول حدیث او جرح و تعدیل د ا تقول کتابونه دِ په اوبو
لاهو کړه. دغه شان ته چه د ابن قیم او شوکانی کتاب ته توجه
کوے، یا خوځکه ستا دی کتاب ته توجه اوکړي. نو ستا او دغه
سړی په څه حکم وی. نه او دغه سړے دواړه په دوزخ د
وهلو قابل دی او که نه؟ فتدبر.

کونړ ملا مخکښ لیکی" او بیا فرمائیلی دی، چه عوامی امتونه په
تقلید د ملایانو تباه شوی دی ام صـ۳۶
کونړ ملا صاحب که پټا کښ واقعی درتۍ برابر ایمان وی،
نو اووایه چه دا خط کشیده الفاظ د حضرت عمر رضی الله عنه
د کومو الفاظو ترجمه ده. او که تا د ځانه جوړ کړی وی. او ده
هم دغه شان، نو کونړ ملا دا تحریف دے، تحریف د یهودو
کار ؤو. او هم د دی تحریف په وجه تباه شوی دی، نو ته
دِ هم د خپل آخرت فکر کوه. " من تشبه بقوم فهو منهم"
کونړ ملا مخکښ لیکی، چه مقلدین وائی، چه مونږ په
قرآن و حدیث نه پوهیږو صـ۳۶ کونړ ملا دا دِ هم له ځانه

دروغ او وے او په دروغژن سړی د خدائے لعنت وریږی، مقلدین الحمد لله هم په قرآن پوهیږی، او هم په حدیثو باندے والحمد لله علی ذلك،

کونړملا خپل علم ته دومره مه غره کیږه، د ابن حجر شافعی د فتح الباری نه بغیر ستا مشران هم یو قدم مخکښ نشی اغستے، کونړملا که بښکه دِ خار ښنتیږی نو موږ تیار یو۔

کونړملا لیکی، چه په هدایه کښ احادیث اکثر موضوع او ضعیف اوبے سنده دی ص۳۶۔ کونړملا دا ضعیف ورته په حدیث کښ وښیلی شوی۔ او که چا غیر معصوم امتی ورته وئیلی دی، ستا په نیزد خو د علماؤ قول حجت نه دے۔ او د ضعیفو روایتونو نه ډیر کم کتابونه خالی دی، که د تفسیر کتابونه اوګورے او که د حدیثو او که د تاریخ کتابونه۔ په ټولو کښ ضعیف روایات شته، بلکه د حدیثو په بعضے کتابونو کښ موضوع روایات هم شته. سنن دارقطنی را واخله نو د ضعیفو روایتونو په شمارلو به ستړے شے۔ ابن ماجه سره د دے چه موضوع روایات پکښ دی خو بیا هم په صحاح سته کښ شماریږی۔ خو سره د دے بیا هم ستا غوندے هیڅ یو عقلمند په دے کتابونو خط تنسیخ نه راکاږی، او دردی په ټوکری کښ ئے نه اچوی، مګر ایں کار از تو آید و مردان چنیں کنند ۔

کونړ ملا په ص۳۷ باندے لیکی۔ چه مقلدین په مسئلو باندے دفقهی کتابونو حوالے ورکوی۔ کونړ ملا، کوم کتاب چه په مذهب کښی معتبر وی، او مسئلے ئے په ادله اربعه باندے بناوی، د هغے حواله ورکول د کتاب وسنت نه روګرداتی نه ګڼلے کیږی بلکه دا د دلا ئلو اتباع ده، لږ د خپلو مشرانو مولوی نذیرحسین دهلوی، چه ته ئے دکتاب "معیارالحق" حوالے هم ورکوے، فتاوی نذیریه اوګوره چه د احنافو د کتابونو دحوالو نه ډکه ده، که دا ګناه وی نو ځ

این گناهیست که در شهر شما نیز کنند

لږه خپله ملن اوګوره،

په ص۳۸ باندے د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه روایت نقل کوی۔

لا یقلدن أحدکم دینه رجلا فان آمن آمن وان کفر کفر (الحدیث)

کونړ ملا که لږ دِ ددی روایت په الفاظو غور کړیوے، او کتلے دِ وے ورته، نو ددے نه به دِ خلقوله دهوکه نه ورکوله، دا روایت په عقائدو کښی د تقلید سره متعلق دے، په اجتهادی مسئلو کښی د تقلید سره متعلق نه دے، ځکه چه د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه پخپله داسے مسئلے شته، چه په

اجتهاد مبنی دی اودایو دوه نه دی - چه درته ئے ذکرکړم نو لا محاله ستا د ذکرکړی روایت تعلق د عقائدو سره دے ، داجتهادی مسئلو سره نه دے ، په اجتهادی مسئلو کښی تقلید دے لاندینی حدیث نه هم معلومیږی -

"أن رسول الله صلی الله علیه وسلم لما اراد أن یبعث معاذا إلی الیمن قال کیف تقضی إذا عرض لك قضاء قال اقضی بکتاب الله تعالی قال فان لم تجد فی کتاب الله قال فبسنة رسول الله صلی الله علیه وسلم قال فان لم تجد فی سنة رسول الله صلی الله علیه وسلم ولا فی کتاب الله قال اجتهد برأئی ولا آلو فضرب رسول الله صلی الله علیه وسلم صدره فقال الحمد لله الذی وفق رسول رسول الله صلی الله علیه وسلم لما یرضی رسول الله"

(رواه ابوداود باب اجتهاد الرأی فی القضاء ص ۱۴۹ ج ۲)

(طبع ایچ ایم سعید)

یعنی کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت معاذ رضی الله عنه یمن ته لیږلو نو ورته ئے اوفرمائیل چه کله تاته څه مسئله درپیښه شی ، نو په څه به فیصله کوے ؟ هغه ورته په جواب کښی اووئیل چه په کتاب الله باندے ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل که چرے په کتاب الله

کښې ئے او نہ موم نو بیا ؟ نو هغه اوویل چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سنت مطابق به فیصله کوم ۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته او فرمائیل چه که د رسول الله صلی الله علیه وسلم په سنتو کښې نه وی، او نه په کتاب الله کښې نو بیا؟ نو هغوئ اووے چه څه به اجتهاد کوم، او پخپله رائی به فیصله کوم، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د حضرت معاذ سینه اوټپوله، او اوئے فرمائیل چه تمام تعریفونه هغه الله لره دی چا چه دخپل رسول صلی الله علیه وسلم استاذی لره دا سے کار توفیق او توان ورکړو، چه د الله رسول ئے خوښوی

کوره په دے حدیث کښې د اجتهاد کولو او په رائے باندے د فیصلے کولو اجازت دے، او دیمن خلق به ئے مني او تقلید به ئے کوی، کنے بیا د لیرلو ضرورت څه شو؟ که د کونړ ملا غوندے عقلمند خبره او منلے شی نو په ډیرو احادیثو کښې به تضاد پیدا شی۔

## دکونړ ملا خیانت

کونړ ملا د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه د غه حدیث نیمګړے ذکر کړو، او بیائے په لا تقربوا الصلاة باندے عمل اوکړو، د پاره د دی چه تقلید ثابت نشی، د دی حدیث وړاندینی الفاظ داسی دی،

"فان كان مقلداً لا محالة فليقلد الميت ويترك الحي فان الحي لا تؤمن عليه الفتنة اهـ

سنن كبرىٰ (۱۰-۱۱۶)

## څلورم دلیل

د حضرت علی رضی الله عنه قول،
" اياك والاستنان بالرجال"

یعنی ځان ساته د سړو د سنتونه صـ۳۹ کونړ ملا د اثر به هم په عقائدو کښې په تقلید باندے حمل کیږی، کنے بیا به د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د دے قول سره به څه کوے؟

"عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين تمسكوا بها وعضوا عليها بالنواجذ" (الحديث)

(رواه ابوداود باب لزوم السنة ج۲ ص۲۷۹ طبع ایچ ایم سعید)

یعنی تاسو ځما او د خلفاء راشدینو سنت کلک اونیسئ، یعنی چه پریږئ نه یې دئ۔ کونړ ملا صاحب، پیغمبر علیه السلام خو د خلفاء راشدینو په سنتو هم د عمل کولو حکم ورکوی، ولے دا خلفاء راشدین پیغمبران وُو، ولے دا سړی نه وُو؟ عقل دِ نصیب شه، که د حضرت علیؓ قول په عقائدو کښې د تقلید نه په منع باندے او د پیغمبر علیه السلام قول په اجتهادی مسئلو کښې په تقلید کولو باندے حمل شی،

نو د پیغمبر علیه السلام او د صحابي په قولونو کښې به تضاد راتلي، لیکن ستاهغه مثال دے، چه وائي " اخوندله خوچه پټ وي، که دخرے اوکه دسپیٔ وي". ته ترے په تقلید باندې ردکوے، اګرکه د پیغمبر علیه السلام دقول سره متضاد شي.

**پنځم دلیل** امام طحاوی په شرح معاني الآثار کښې روایت کړےدے روایت دے.

" باب من أحرم بحجة وطاف لها قبل ان يقف بعرفة أن عروة قال لابن عباس اضللت الناس يا ابن عباس قال وماذاك ياعروة قال تفتي الناس أنهم إذا طافوا بالبيت فقد حلوا، وكان ابوبكر وعمر يجيئان ملبين بالحج فلا يزالان محرمين إلى يوم النحر قال ابن عباس بهذا ضللتم أحدثكم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم وتحدثوني عن ابي بكر وعمر، ص۳۹

یعني عروه رح حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ته اوویل چه تاخو خلق ګمراه کړل، نو حضرت ابن عباس رض اووے چه اے عروه په څه شي باندے؟ نو عروه رح ورته اووے، چه ته خلقوته فتوی ورکوے په جواز دحج تمتع او حال دا دے چه ابوبکر او عمر حج تمتع نه کوله نو ابن عباس رض

اوفرمائیل، په دے خبره تاسو گمراه شوئے چه څه در ته د محمد رسول الله خبرے بیانووم، او تاسو د ابو بکر او عمر خبرے پیش کوئ. کونړ ملا مخکښې لیکی" نو هر کله چه د ابو بکر او عمر رضی الله عنهما قول او فعل د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم قول او فعل په مقابله کښې نه دے مقبول، نو څلور امامان خو روستو طبقه والا دی. انتهی بلفظ کونړ ملا صنه

# کونړ ملا خلق د شیخینو نه بدگمانه کوی

کونړ ملا هسے خلق د حضرت ابو بکر صدیق او حضرت فاروق اعظم رضی الله عنهما نه بدگمانه کوی، چه گنے دوی په د پیغمبر علیه السلام د قول او فعل نه خلاف کار کولو، او د دے نشاندهی حضرت ابن عباس رض اوکړه.

کونړ ملا ستا په دے هغوانو به شیعه گان خوخوشحاله شی، خو اهل السنة والجماعة په دا سے خبرو نفرین وائی، کونړ ملا معلومیږی، چه د زړه د سترگو پشان ړ د سر سترگے هم ړندے شوی دی. د شرح معانی الآثار نه دے د سر خبره راوا غسته، او نوره ړ پریښوده. او بیا په دے

خپل ذکر کړی روایت کښ دِ هم قطع وبرید اوکړو، چه د
شیخینو فضیلت ښکاره نشی، او خلق تر ے ښه بدګمانه شی،
په دے روایت کښ آخری الفاظ دا دی "فقال عروة اُن
ابا بکر وعمر کانا اعلم برسول الله صلی الله علیه وسلم منك"
(شرح معانی الآثار باب من احرم بحجة وطاف لها قبل ان یقف
بعرفة ص ۳۹۸ ج ۱۰)

یعنی حضرت عروهؒ ورته اووے چه حضرت ابوبکر او حضرت
عمر ستا نه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په باره کښی زیات
پوهیدل، کومو ملا داباب ډیر اوږد دے، ځکه چه ټول
م دلته نقل کړیو ے، او ستا دا جهالت م خلقو ته الم نشرح
کړیو ے۔ خو بیا هم دا یو ښو خبرے بیکم، چه لوستونکو ته
حقیقت معلوم شی، اصل خبره داده، چه د حضرت ابن
عباس رضی الله عنهما خیال داوُو، چه کله څوک د حج احرام
اوتړی، او طواف اوکړی، نو حلال شو، که سوق هدی
ئے کړی وی اوکنه ؟ او د حضراتو شیخینو مذهب داوُو،
چه ترڅو ئے وقوف عرفه نوی کړی۔ هسے په طواف سره
نه حلا لیږی۔ او امام طحاویؒ په دلائلو سره د شیخینو
مذهب له ترجیح ورکړیده۔ او نن صبا هم ټوله دنیا په
دی طریقه باندی حج کوی۔ او حضرت ابن عباسؓ چه

دغه نه استدلال کوی، امام طحاویؒ دغه مدلل جوابونه دشیخینو له طرفه ورکړیدی ، دزیات تفصیل دپاره د طحاوی دا قول باب کتل پکار دی۔

کونړ ملا دلته نه حضرت ابوبکرؓ دپیغمبر علیه السلام دقول اوفعل خلاف کړیدے او نه حضرت عمرؓ۔ هسے په بغض شیخینو کښی مبتلا ئے۔ اوقیاس د اوکړو، اوقیاس ته دِ پخپله په ص۲۵ گمراهی وئیلی ده۔ نو دخپل قول مطابق گمراه شوے او هم دشیخینو په بغض کښی مبتلا شوے، هسے لاړے اواوخوړے او ډوب شوے۔ ع

نه خدای ملا نه وصال صنم

## شپږم دلیل

" قال ابن عمر لجابر بن زید انك من فقهاء البصرة فلاتفت إلا بقرآن ناطق او سنة ماضیة به فانك إن فعلت ذلك هلكت وأهلكت،، ص۱۲

کونړ ملا مونږ هم دا وایو چه په قرآن کریم کښی صراحتًا حکم موجود وی، او یا په احادیثو کښی صحیح صریح اوغیر معارض دلیل موجود وی، نو استنباط او اجتهاد ته ضرورت نشته لیکن که په دی دواړو کښی نه وی، لکه د حضرت معاذ رضی الله عنه په حدیث کښی دپیغمبر علیه السلام دا صراحت "فان لم تجد" تیر

شو ، نو بیا به مجتهد ته دالله تعالی دحکم "
فاسئلوا أهل الذکر إن کنتم لاتعلمون "
په وجه سره رجوع کیږی. نوکونړ ملا ، دا اثر د تقلید په
ردکښ نه دے ، او د "قرآن ناطق " او " سنة ماضية" الفاظ
څمونږ په دے خبره شاهد عدل دی ۔

کونړ ملا ! مونږ پرے ښه سوچ کړیدے ، خو تا پرے
سوچ نه دے کړے ، او په پښتو سترګو دِ نقل کړے ، او غلط
مراد دِ ترے اغستے ، کونړ ملا مونږ دشامی نه قرآن
نه دے جوړ کړے ، دا خو ته ئے چه شوکانی زیدی شیعه
له دخدائے مرتبه ورکوے ، چه هغه څه ته دین او وائی ، نو
هغه به دین وی ، کنے نه ۔ لږ ه خپله ملن اوګوره ۔ ع
ہم الزام ان کو دیتے تھے قصور اپنا نکل آیا ۔

کونړ ملا په ص۴۲ لیکی ، چه دلائل دشرع دوه دی ۔ قرآن او
سنت او نوکونړ ملا دا ته بیا دابن قیم او شوکانی زیدی
شیعه او خو یز منداد اقوال ولے ذکر کوے ؟ ولے دا هم په
کتاب و سنت کښی داخل دی څه ؟

کونړ ملا مخکښی لیکی ، " اجماع او قیاس مستقل دلیل ندی
د قرآن وحدیث نه راوتلی دی ۔ ص۴۲

## دکونړ ملا تضاد

کونړ ملا دلته وائی چه اجماع او قیاس دقرآن وحدیث نه راوتلی دی صـ۴۲ - او په صـ۴۵ باندے لیکی " نو څوک چه دقیاسونو او آراء پسی روان دی نو هغه به گمراه کیږی - کونړ ملا ولے؟ څوک چه دقرآن او حدیث نه په راوتلی حکم باندے عمل کوی نو داگمراهی ده؟ ولے دقرآن اوحدیث نه گمراهی ثابتیږی العیاذ بالله، دغه شان په صـ۵۳ باندے ږ لیکلی دی، "تابعینو علماؤ او تبع تابعینو علماء دتقلید رد صراحةً کړی او دتقلید او قیاس بدی بیانوی اهـ کونړ ملا، کوم شے چه دقرآن وحدیث نه راوتلے وی ولے د هغے بدی بیانول جائز دی؟ نه خوهم ځان نه مفتی وائے ځکه چه دخپلے فتاوے " فتاوی الدین الخالص" باربار ذکر کوے، نو ستا پدی باره کښی څه فتوی ده: دقرآن وحدیث نه راوتلی شی ته دبدو وئیلو څه حکم دے؟ او دیته گمراهی وئیل او یا داوئیل چه دے پسے په تلو سړے گمراه کیږی، دده څه حکم دے؟ بینوا توجروا -

بله خبره داده، چه کونړ ملا وائی، چه قیاس او اجماع مستقل دلیل نه دے - نو کله چه یو شے دقرآن وحدیث نه راوتلے وی - او هغے ته څوک مستقل دلیل

نه وائی، نو کونړ ملا د هغه حکم هم او نه یه - چه داسے سړے

مسلمان دے کنه؟

بله داچه کونړ ملا دا چاو ټیلی دی، چه په قرآن و حدیث

صرف څلور واړه امامان پوهیږی، نور بیړے هیڅوک

نه پوهیږی - کونړ ملا دروغ مه وایه د دے هیڅوک

قائل نه دی، کچرے داسے وے نو بیا به د قرآن کریم او

حدیث درس ورکولو ته هډو چا توجه نه کوله -

هاں! موږ د دوئی د اجتهاد قائل وُو، او موږ ره څه

تول دنیا ئے قائله ده، خو معلومیږی چه ته د اجتهاد

د معنی او شرطونو نه خبر نه ئے - داخو نه ئے چه بس هر

وخت په ژبان حال څه چه په ژبان قال سره لګیا ئے - ع

کعبۂ دین مدرے قبلۂ ایمان مدرے

ابن قیم مدرے قاضی شوکان مدرے

## دکونړ ملا اووم دلیل

یو سائل ابن عمر رض ته او وئیل ته وئے حج تمتع جائز ګڼړی

او ستا پلار به تربینه منع کوله، نو ابن عمر رض او وئیل چه

که چیری زما پلار د ترے منع کړی وی او محمد رسول الله

صلی الله علیه وسلم کړی وی، نو د محمد رسول الله د خبری

اتباع به کولے شی او که زما د پلار؟، نو سائل او وئیل

چه بلکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حکم او عمل تابعداری به کولے شی الخ کونړ ملا مخکین وائی، اوګوره صحابه کرامو ته چه څرنګ د عمرؓ قول پریښودی. سره ددے چه هغه محدث او ملهم انسان دے، نو باقی مجتهدین خو د عمر رضی الله عنه نه ډیر لاندی درجے والا دی، ملخص

## دکونړملا بدګمانی

کونړ ملا په دی بدګمانی کښی وریت پریت دے، چه ګنے ائمه مجتهدین د پیغمبر علیه السلام د دین په مقابله کښی یو متوازی او نوے دین پیش کوی، حاشا و کلا،

د ائمه مجتهدینو خبره صرف په دی حیثیت سره اغستے شی، چه دوی د قرآن و سنت شارحین دی، که اجتهاد ئے صحیح وی، نو منل ئے پکار دی. اوکه معلوم شی چه غلطی ئے کړیده، یا د صحیح صریح غیر معارض نص په مقابله کښی ئے صرف رائے پیش کړیده. نو بیائے د قول اغستو هیڅوک قائل نه دی.

باقی د حضرت عمرؓ په باره کښی د عبد الله بن عمرؓ الفاظ خو به دِ کتلی وے، هغه وائی " أرأيت إن كان أبي نهى عنه"، کچرے زما پلار ترے منع کړیوی، او س داکښل پکار دی، چه حضرت عمرؓ واقعی د حج تمتع نه

منع کړیده، نو امام ترمذیؒ هم ددے وهم دازالے دپاره ورپسے جوخت د ابن عباس رضی الله عنه حدیث ذکرکړو،

"عن ابن عباس قال تمتع رسول الله صلی الله علیه وسلم وابوبکر وعمر وعثمان واول ما نهی عنه معاویة"، او (۱-۱۶۹)

اوکله چه د حضرت عمر رضی الله عنه نه تمتع کول ثابت دی، او منع تر ے ثابته نه ده، لکه د ابن عمرؓ الفاظ،

"أرأیت إن کان أبی نهی عنه"

هم پدے دلالت کوی، نو بیا نه د حضرت عمر رضی الله عنه د قول پر ے بنود ل راغله، او نه پر ے ستا قیاس کول صحیح شو، سره ددے چه ته قیاس ته ګمراهی وائے، خو بیا د هم قیاس اوکړو، او هغه هم پوچ اوختو۔

## ګونګړ ملا ته نصیحت

ګونګړ ملا - دبهر دامداد دحلالو دپاره کم ازکم دصحابه کرامو په باره کښې خوخلق مه بدګمانه کوه۔ آخرت به د ے تباه شی۔

## دګونګړ ملا اتم دلیل

حدیث د ابن عمر دی چه مسلم ۱/۳۰۵ راوړی دی

"قال ابن عمر فبقول رسول الله صلی الله علیه وسلم أحق أن تأخذ او بقول ابن عباس إن کنت صادقاً" ص۴۳

## دا اُردو متل دے "ایک تیر دو شکار"

کونړ ملا دخپل کتاب په ص۳۹ باندې په دې مسئله اول حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضی الله عنهما بدنام کړل، چه ګنې هغوئ دپیغمبر علیه السلام دقول نه خلاف قول کړیدے، او د ابن عباس رضی الله عنه قول درسول الله صلی الله علیه وسلم دقول مطابق دے، او دلته هم دهغه ابن عباس رض هم هغه قول درسول الله صلی الله علیه وسلم دقول خلاف ګرځوی چه ګنې حضرت ابن عباس رض دپیغمبر علیه السلام خلاف کول۔ کونړ ملا په یوه مسئله دوه صحابه کرام مجروحه کړل۔ او شیعه ګان ئے خوشحال کړل۔

| دشوکانی په باره کښې راځی، "فیه شیئ من التشیع" | عجیبه خبره |
|---|---|

او دکونړ ملا پیشان تقول غیرمقلدین ئے په پښتو

سترګو تقلید کوی، او مولوی وحید الزمان صاحب وائی،
"ماشیعه ګان علیٰ مستیم" یعنی غیر مقلدین ټول شیعه ګان
دی، نو کونړ ملا د حضرت عمر رضی الله عنه په مجروح کولو
نور شیعه ګان هم خوشحاله کړی، او د خپل زړه تسلی هم او کړی
نو څه د تعجب خبره نه ده - که د صحابه کرامو نوموړ نه اخلی نو
دا تقیه ده - او شیعه ګان تقیه کوی - د دے مسئلے په باره
کښ بحث مخکښ تیر شو -

باقی په دے حدیث ورپسے د کونړ ملا تبصره نو هغه فضول
ده، ځکه چه د قیاس بنیاد ئے او غورزیدو، نو قیاس ئے
پخپله باطل شو۔

## د کونړ ملا نهم دلیل

عن ابی هریرة رضی الله عنه
قال قال رسول الله
صلی الله علیه وسلم برهة بکتاب الله وبرهة
بسنة رسول الله صلی الله علیه وسلم ثم یعملون
بالرأی فاذا فعلوا ذلك فقد ضلوا، وسنده حسن ص۲۵
دی روایت الفاظ اوګورئ، او د کونړ ملا ترجمه اوګورئ.
کونړ ملا ترجمه کوی،

"چه دا امت به څه موده په قرآن او حدیث عمل
کوی، بیا به په قیاسونو او رأی باندی عمل شروع

کړي، نو کله چه دا کار او کړي نو یقیناً ګمراه شول، حالانکه ترجمه دا سے نه ده بلکه دا سے ده،

چه دا امت به څه موده په قرآن کریم عمل کوي او څه زمانه به په حدیث عمل کوي الخ

له دینه خو دا معلومیږي چه څه موده به صرف په قرآن کریم عمل کوي فقط. یعنې په حدیث به عمل نه وي، او څه موده به صرف په حدیث عمل کوي، یعنې په قرآن کریم به عمل نه وي۔ د روایت د الفاظو نه خو تقسیم معلومیږي نو کوټ ملا دا خو ستا د مشرانو رونړو منکرین حدیثو دیل شو، بله دا چه د روایت الفاظ دي " هذه الأمة " څه استثنا، ترے نشته، نو ته په دي امت کښې شامل ئے او که نه؟ که ئے نو بیا خو د دي پیشن ګویئ مصداق نه هم ګرځے، او که په دي امت کښې ځان نه حسابوے، او ځان چرته د یهودو او نصاراؤ نه شمارے، نو بیا ستا سره بحث فضول دے۔

کوټ ملا تا لیکلی، " وسنده حسن " د دي حدیث سند حسن دے، دا حسن ورته چا ویلی؟ دلته د تقلید ولے او کړو، او که له ځانه دے ویلی وي نو ته د دے میدان سړے نه ئے۔

## ګمراهي

کونړ ملا وائي "نو څوک چه دقياس نو او آراء پسے روان دی هغه به ګمراه کیږی،، ص۴۵ ، اوکونړ ملا په هغه تکیا دے قیاس کوی. نو دخپل قول مطابق ګمراه شو. بل په ص۴۲ باندے ئے ليکلی، چه اجماع اوقياس دقرآن اوحديث نه راوتلی دی" او دقرآن وحديث نه راوتلی شی نه ګمراهي ويل پخپله ګمراهي بلکه کفر دے. نو کونړ ملا په خپل قول د خيره هم ګمراه شو او هم کافر. خسرالدنيا (ځکه چه نکاح ئے ختم شو) والآخرة (يعني جهنم)

## دکونړملاالسم دیل

حديث دعمر بن الخطاب دے.

قال عمر اياكم واصحاب الرأى فانهم اعداء السنن اعيتهم الاحاديث ان يحفظوها فقالوابالرأى فضلوا واضلوا، ص۴۶

کونړ ملا تاخو مخکښ د حضرت عمر رضی الله عنه په باره کښ دا تاثر ورکړے، چه ګنے دپيغمبر عليه السلام دقول نه خلاف کارئے کړے، اګرچه دا تاثر هم باطل دے بله داچه دا خبره هله ده، کله چه په کتاب الله يا سنت نبوی کښ حکم صراحتًا موجود وی، نو قياس طرفته

رجوع کول دمو په مخکښ دیوه بیٹکاره کول دی، اود دی
هیخوک قائل نه دی۔ لیکن که په کتاب وسنت کښ صراحتًا
حکم موجود نه وی، نو بیا به د حضرت معاذ رضی اللّٰہ عنہ
د حدیث مطابق عمل کیږی، لکه مخکښ دا حدیث تیر شو،
بله داچه د حضرت عمر رضی اللّٰہ عنه په خپله رائے با ندے
فیصلے خه کمے نه دی۔ نو لازمًا به تر ے هم د غه مراد اغستے
شی، لکه مونږ وچه وایو

## دکونړ ملایوُولسم دلیل

د عبد اللّٰہ بن مسعود رضی اللّٰہ عنه حدیث

"أتـرأ کم و علماءکم یذهبون ویتخذ الناس
رؤسًا جهالًا یقیسون الأمور برأیهم" ص۲۶

کونړ ملا د د ے اولنے مصداق خو ته معلومیږ ے، چه
نه د صحابه کرام پریښودہ او نه د ائمه مجتهدین، اوچه
جاهل سړ ے څوک مشرکړی، نو د هغه به هم دغه
کار وی۔ او ائمه مجتهد ینو ته لا تر اوسه چا جاهلان
نه دی ویلی، دا د ے په ائمه مجتهد ینو باندے طنز
د ے، لیکن خیر "وسیعلم الذین ظلموا أیّ منقلب ینقلبون"
کونړ ملا! ائمه مجتهدینو ته به بدو ویلو به دنیا کښ
خو به څه مالی فائده حاصله کړ ے، او غیر مقلدین

ئے حاصلوی هم۔ خو د آخرت فکر پکار دے۔

## دکونړ ملا دولسم دلیل

د حضرت معاذ رضی الله عنه حدیث

"اما العالم فان اهتدی فلا تقلدوه دینکم وان افتتن فلا تقطعوا منه ایاسکم" ص۴۷

کونړ ملا وائی، یعنی د عالم تقلید مه کوئ الخ۔ کونړ ملا دا په عقیدوکښې د تقلید منع ده، په اجتهادی اوفروعی مسئلوکښې نه، ځکه چه د حضرت معاذ رضی الله عنه حدیث مخکښې تیر شو، او دا په اجتهادی مسئلوکښې د تقلید په جواز باندې مضبوط دلیل دے، اوکه مطلقاً د تقلید منع ترے مراد واخستے شی، نوکونړ ملا، د اصول حدیث او د جرح و تعدیل دکتا بونو نه به خلق لاس اوونیځی۔

## دکونړ ملا دریم قسم دلیلونه

په رد د تقلید کښې او هغه دلیلونه اجماع دامت دی۔ ص۴۸

## اوّل دلیل

ترڅلورمے صدئ پورے د تقلید کړئ کښې څوك نه وُو نښتی، دا د تقلید کړئ په څلورمه

صدئ کښې خلقو ته رایځ کړه، ص۴۷ کونړ ملا دلته وائی چه تقلید په څلورمه صدئ کښې شروع شو، او په ص۴۹ وائي بیکي چه تقلید په ۲۸۲ھ کښې پیدا شوې دې ص۴۹ او حواله ئې ورکړه ده دجے پوری دکتاب "حقیقة الفقه" دجے پوری دا کتاب د دروغو انسائیکلو پیډیا ده، په دی به چرته بیا بحث اوکړو هغه وائی " دروغ گورا حافظه نباشد " چه دروغژن سړی حافظه نه وی۔ په ص۴۸ لیکی چه تقلید په څلورمه صدئ کښې شروع شو، او دلته لیکی چه په ۲۸۲ھ کښې شروع شو۔

کونړ ملا په درے او څلورو کښې څه فرق وی اوکه یو شے دے؟ دا خو دکونړ ملا تضاد بیانی شوه۔ بله دا چه کونړ ملا تا خو لږ مخکښې لیکلی "که څوک د اجماع دعوی کوی، نو د اجماع دپاره مأخذ به ضرور بیانوی" ص۴۸، او په ص۴۲ دلیکلی چه قیاس او اجماع د قرآن و حدیث نه راوتلی دی۔ یعنی د اجماع مأخذ هم قرآن وحدیث دے۔ نو تا له پکار وو، چه د قرآن و حدیث نه دِ د اجماع دلیل وړاندے کړے وے، نو تا خو په اوّل سر کښې د خپل قول خلاف اوکړو،

"ویل للمطففین الذین اذا اکتالوا علی الناس یستوفون و اذا کالوهم أو وزنوهم یخسرون"

کونړ ملا دا خو د شعیب علیه السلام د قوم عادت

دُو، تہ کلہ دیہودیانو عادت خپلوے اوکلہ دشعیب علیہ السلام دقوم، آخر داولے ؟

بل تا لیکلی چہ دصحابہ کرامو اجماع حجت قطعی دہ، او دعلماؤ اجماع ظنی دہ۔ صـــ۴۸ ، تا پہ صـــ۴۲ لیکلی چہ دلائل د شرع دوہ دی۔ کتاب اللہ او سنت نبوی، اجماع او قیاس مستقل دلیل نہ دے۔ نوستا پہ نیزد اجماع غیرمستقل دلیل دے، نو تہ غیرمستقل دلیل ولے پیش کوے؟ بلہ داچہ پہ اجماع دِدقطعی او ظنی حکم لگولے دے، کلہ قطعی او کلہ ظنی، دادِ کتاب و سنت نہ لکولے، ولے چرتہ یو آیت یا حدیث دلسے شتہ چہ پہ ھغے کښی وی چہ دصحابہ کرامو اجماع قطعی دہ او د نورو علماؤ اجماع ظنی دہ۔ کہ داسے آیت یا حدیث وی نو دا آیت پہ کوم سورت کښں دے، او داحدیث پہ کوم کتاب کښں دے، اوکہ نہ وی نو داتا خوھم تقلید اوکړو، او صرف دلتہ نہ پہ مخہ دابن تیم اوشوکانی تقلید کوے، نو کہ ځہ دا اووایم چہ

گر درکفر ہم صادق نۂ زنار را رسوا مکن

نوغلطہ بہ نہ وی۔

کونہ ملا صاحب مونږ مخکښں هم لیکلی، چہ تقلید لہ پخوا راسے راروان دے، دحضرت معاذ رضی اللہ عنہ

حدیث د تقلید پوخ دلیل دے۔ بل شاه ولی الله رحمه الله
په خپل کتاب عقد الجید کښې لیکي،
" لأن الناس لم یزالوا من زمن الصحابة إلی أن
ظهرت المذاهب الأربعة یقلدون من اتفق من
العلماء من غیر نکیر من احد یعتبر انکاره ولوکان
ذلك باطلا لأنکروه " صفحه
یعنی خلق به د صحابه کرامو د زمانے نه تر مذاهب اربعه
د ظاهریدو پورے د چا عالم تقلید کولو۔ او په دے چا
داسے سړی نکیر او رد نه دے کړے، چه د هغه د نکیر
اعتبار وی، او که چرے تقلید باطل وے، نو ضرور به
پرے چا نکیر او رد کړیوے۔
نو کونړ ملا ستا د اجماع دعویٰ اول خو بے مأخذه
ده، نو معتبره نه ده۔ بلکه دا چه اتفاقی هم نه ده، د شاه
صاحبؒ بیان یو ځل بیا اوګوره چه سترګے دِ او غړیږی
خو چه څوک په زور خپلې سترګی بندکړی، نو هغه به
څه او وینی۔

## د کونړ ملا دویم دلیل اجماعی ص۲۹

دابن تیمیهؒ
عبارت
ئے نقل کړیدے، او له خبرداده چه کونړ د خپلے وینا

مطابق د اجماع مأخذ بیان نه کړو ، بله داچه دابن تیمیهؒ
خبره د تقلید خلاف نه ده - د هغوئ د کلام خلاصه داده
چه کله د یو امام قول د حدیث نبوی نه خلاف وی، نو
دغه قول به د حدیث په مقابله کښې پرېښودے کیږی
او لدینه هیڅوک انکار نه کوی - کله چه د امام قول د صحیح
صریح غیر معارض حدیث نه مخالف وی نو د ا قول په پرېښودو
کیږی، او حدیث به اغستے کیږی، ځکه چه د امام قول د پیغمبر
د قول په مقابله کښې اغستل د امام نه پیغمبر جوړول دی
او د اسے کس د حضرت عدی بن حاتم رضی الله عنه د حدیث
مصداق کرځی - مثلاً په فقه حنفی کښې د اسے څو مره مسئلے
دی، چه په هغے کښې د امام قول که د دلیل په اعتبار سره
کمزورے وی، پرېښودے شوید ے - او د صاحبینو او یا
د امام زفر قول که د دلیل په اعتبار سره مضبوط وی، اغستے
شوید ے - او پکار هم د اسے ده - ځکه چه اعتبار د دلیل
د قوت دے ، د شخصیت نه - کنې بیا خو د ا شخصیت پرستی
شوه - اعاذنا الله منه ، نو کوم که څوک د اسے کوی،
نو غلطه کوی - له ځانه د روغ خو مه جوړوه ، چه تقول
مقلدین هسے بدنامو ے -

## دریم دلیل ص۵۲

د شاه ولی الله رحمه الله قول۔

"وقد صح اجماع الصحابة کلهم اولهم عن آخرهم واجماع التابعین اولهم عن آخرهم واجماع تبع التابعین اولهم وآخرهم علی الامتناع والمنع عن أن یقصد احد إلی قول انسان منهم أو ممن قبله فیأخذ کله اه از عقد الجید

کونړ ملا صاحب! د شاه صاحبؒ او ابن تیمیهؒ د قول مفاد هم یو دے، داخه نوے خبره نه ده۔ مونږ هم داوایو چه که د چا قول د صحیح صریح او غیر معارض حدیث نه مخالف وی۔ نو هغه قول د هرچا چه وی، هغه به پریښودے شی، او صحیح حدیث به اغستے شی۔

کونړ ملا د شوکانی حواله ورکړیده۔

" اهل القرون الثلاثة" لم یکونوا مقلدین" ص۲۲

اوله خبره داده چه شوکانی غیر مقلد دے، او دعدم تقلید مدعی دے، نو د هغه قول څنګه پیش کوے، بل زیدی شیعه دے،

دویمه داچه داخبره د تاریخ په رڼا کښ غلطه ده، ځکه د شاه صاحب د عقد الجید په حواله سره داخبره تیره شوه، چه تقلید د صحابه کرامو د زمانے نه شروع وو،

او دچا معتبر سړی نه پرے انکار ثابت نه دے،

کونړ ملا لیکی،

"اکثر خلق وائی ولی امی بد تقلید نه کوی۔ نوځه به کوی؟ امی باندے فرض دی چه د لوئی عالم پسے اوګرځی او د قرآن وحدیث متعلق ترے تپوس اوکړی" ص۱۳

کونړ ملا! عقل دِ نصیب شه، هم دغه تقلید دے، نوځه نه دی۔ ځکه چه امی نه خو د قرآن په ترجمه پوهیږی او نه د حدیث په معنی پوهیږی۔ خو چه څه ورته عالم اووائی، په هغے عمل کوی، اوس دا د عالم کار دے چه مسئله ورته معلومه وی او صحیح مسئله ورته بنائی، اوکه مسئله ورته معلومه نوی او له ځانه ورته څه بنائی، ځان هم غرقوی او هغه امی سړے هم۔ نکه څنګه چه کونړ ملا د تقلید په باره کښی په دروغو ځان ډوب کړو، او خلق هم ډوبول غواړی۔

کونړ ملا! ته وایئے چه "لوی عالم پسے ګرځی" امی سړه پخپله څه معیار نشته، چه دچا د علم زیا تے کیے پرے وتلی، اخیر نو دے به څرنګه پیژنی چه دا فلانکے سړے لوئی عالم دے؟ ددی وضاحت دا اونکړو، او دا ځکه چه که وضاحت دِ کړیوے، نو تقلید به ترے ثابت شوے وے

ځکه چه دا امی سړے به د نورو خلقو په وینا سره چه فلانکے سړے لوئ عالم دے هغه ته لوئ عالم وائی۔ او ظاهره خبره ده، چه د دغه خلقو سره په دے خبره څه دلیل شرعی نشته، ځکه چه ته وائے چه د دلائل د شرع دوه دی، ص۴۲ نو نه ورسره څه آیت شته او نه حدیث، او نه اجماع او نه قیاس، او بیائے هم دا سړے خبره منی، نو دا عین تقلید شو۔ ګډ انتسع الخرق علی الراقع

کونړ ملا مخکښې وائی" صحابه کرامو او تابعینو کښې هم امیان وُو، هغوئ د چا تقلید کړی دی هغه وښایئ، ص۵۳

کونړ ملا صاحب، د شاه ولی الله رحمه الله د قول په اعتبار سره تقلید د صحابه کرامو د زمانے راسے بلا نکیره جاری او ساری وُو۔ څه یو کس دوه وے، نو سړی به درته نوم اغستے وے، د لته خو ټول امت تقلید کوی۔ هاں! تاله پکار دی، چه په دغه زمانو کښې دیو غیر مقلد او لامذهب نشاندهی اوکړے، چه فلانکے غیر مقلد او لامذهب وُو، او فلانکے فلانکے۔ ته پخپله ذمه دلیل او ثبوت د بل په ذمه مه اچوه۔ امی صحابی به د عالم صحابی تقلید کولو۔ او امی تابعی به د عالم تابعی۔

کونړ ملا د ابن القیم د عبارت ترجمه کوی، لږ د خیانت

نمونه ئے اوګورئ۔

" وکذلك ائمة التابعین وتابعوهم یصرحون بذم القیاس والنهی عنه" ص۵۳

دتابعینو علماء او دتبع تابعینو علماء دتقلید رد صراحتاً کړی، او دتقلید او قیاس بدی بیانه کړی، ص۵۳

کونړملا داخط کشیده الفاظ دابن قیم دکومو الفاظو ترجمه ده، ګوره کونړملا صاحب، تحریف مه کوه، دا د یهودو کار دے۔

کونړملا تاخو په ص۴۲ باندے لیکلی چه اجماع او قیاس دقرآن وحدیث نه راوتلی، نو دقیاس مأخذ قرآن وحدیث شو ستا دقول مطابق، نو دقرآن وحدیث نه دراوتلی شی بدی بیا نول څه حکم لری؟ بینوا بالکتاب توجروا یوم الحساب۔

کونړملا داعتصام شاطبی حواله ورکړیده، خو پدی نه پوهیږی چه داده په حق کښ ده یا دده خلاف ده، په دی کښ دی،

" فالحاصل أن تحکم الرجال من غیر الثقات إلی کونهم وسائل للحکم الشرعی المطلوب شرعًا ضلال" ص۵۴

مطلب دا دے چه علماء او مجتهدین صرف د شرعی حکم د معلومولو
د پاره وسائل او ذرائع دی، او مطلوب صرف حکم شرعی دے،
چه د دوئی په وجه سره معلوم شی۔ دا کسان پخپله مطلوب
نه دی۔ او دا ظاهره خبره ده، چه څوک دیو عالم تقلید
کوی، نو مقصد ئے صرف شرعی مسئله معلومول وی، صرف
د هغه کس ئے مراد نه وی، نو کونړ ملا معلومیږی چه تا
ئے ترجمه هم صرف لدی وجے نه پریښی ده، چه عبارت
ستا خلاف وو، او د تقلید اثبات تړے کید و، تا هسے
په خلقو د رعب اچولو د پاره خو ذکر کړو، ترجمه دِ ئے
او نکړه۔

مونږ د شاطبی د اعتصام حواله مخکښ ذکر کړیده، چه
حق بغیر د خلقو نه نه پیژندے شی،

کونړ ملا د ابن حزم حواله ورکړیده، اوّله خبره دا ده
چه شوکانے او ابن حزم پخپله غیر مقلدین دی، او د
عدم تقلید ملعیان دی، نو کونړ ملا د دوئی خبره په
نور چا څه حجت نه ده، ځکه چه مدعیان دی۔

بله دا چه بهتره به داوی، چه د ابن حزم جواب د شاه
ولی الله په ژبه د حجة الله البالغه نه ذکر کړو، نو دا به
ښه وی، شاه صاحب په حجة الله البالغه کښ لیکی۔

ومما يناسب هذا المقام التنبيه على مسائل ضلت فيها بواديها الأفهام (كفهم كونړ ملا والشوكانی ۱۲ راقم الحروف غفرله) وزلت الأقدام وطغت الأقلام (كقدم كونړ ملا وقلمه ۱۲ راقم الحروف غفرله) منها ان هذه المذاهب الأربعة المدونة المحررة قد اجتمعت الأمة أو من يعتد به منها على جواز تقليدها إلى يومنا هذا وفى ذلك من المصالح مالا يخفى لا سيما فى هذه الايام التى تصرت فيها الهمم جدا واشربت النفوس الهوى واعجب كل ذى رأى برأيه وما ذهب اليه ابن حزم حيث قال التقليد حرام ....
...... انما يتم فيمن له ضرب من الاجتهاد ولو فى مسئلة واحدة الخ (ص ۱۵۴-۱۵۵ / ج ۱۰)

يعنى د ابن حزم دا خبره د مجتهد د پاره ده دامی دپاره نه ده۔ شاه صاحبؒ وائی، چه د مذاهب اربعه په تقليد باندے د امت اجماع ده، او په دیکښ ډیرے فائدے دی۔ اوکونړ ملا وائی چه نه په دیکښ نقصانونه دی بله داچه شاه صاحبؒ وائی چه په تقليد باندی د امت اجماع ده، اوکونړ ملا په ص۲۲ باندی ليکی چه اجماع اوقياس د قرآن وحديث نه راوتلی دی۔ نو

کونړ ملا د قرآن او حدیث نه د راوتلی حکم خلاف ورزي
کول او هغې ته نقصان ده شئ وئیل څه حکم لري؟ بینوا توجروا
بل شاه صاحب وائي چه تقلید زمونږ د زمانې پورې
جاري ساري وُو. نو دا خبره معلومه شوه چه متحده
هندوستان کښې د تقلید خلاف د انګریز په اشاره شروع
شو.
په غیر مقلدیت کښې دومره ترقي اوشوه چه مرزا قادیاني
پکښې د نبوت دعوی اوکړه، او اسلم جې پوري دیکښې دَ
حدیثو نه انکار شروع کړو. دادی د غیر مقلدیت فضائل
او دا ټول دِ کونړ ملا ته مبارک وی.
کونړ ملا مخکښې لیکی " نو په اجماع سره ثابته شوه چه
تقلید نشته دین کښې، دا روستو پیدا شوی دی ص۵
کونړ ملا دلته د اجماع دعوی کړیده، او په ص۴۸ لیکی
چه څوک د اجماع دعوی لری په یوه مسئله کښې نو د اجماع
د پاره څه ماخذ به ضرور بیانوی، هسې د اجماع دعوی
صحیح نه ده ص۴۸. او په ص۴۲ ئې وئیلی چه دا اجماع
د قرآن وحدیث نه راوتلی ده، او کونړ ملا په دے ټول
بحث کښې د اجماع د پاره نه آیت پیش کړو او نه
حدیث. نو د کونړ ملا د خپل قول مطابق دا دعوی

باطله شوه چه تقلید نشته ،، او د کونړ خر نه ئے زیات حیثیت نشته ۔

# د کونړ ملا څلورم قسم دلیلونه [۵۵]

کونړ ملا د اسے ګوهر افشانی کوی لیکی " دعلماؤ اقوال دلیل نشی کیدلی ، صرف تائید د مسئلے پرے کیږی ص۵۵
کونړ ملا شاید د تائید په معنیٰ هم نه پوهیږی ، ځکه چه لکه څرنګ چه په دلیل سره مسئله ثابتیږی ، دغه رنګ په تائید سره هم ثابتیږی ، او تائید په لغت کښی د ثابتولو په معنی هم راځی ۔ مصباح اللغات کښی دی " اُیده تائیدًا و اُیده موایدة ۔ قوی کرنا ، ثابت کرنا ص۳۵ مسئلے ته قوت په دلیل سره میلاویږی ، او تائید هم د قوی کولو په معنیٰ راځی نو دلیل او تائید یوه معنی ورکوی ۔ کونړ ملا عقل دِ نصیب شه ، د عالم قول کله چه په ادله اربعه باندے بناوی ، نو دغه قول تائید کیدے شی ۔ او دا لدی وجی نه نه چه ګنی دا د فلانی قول دے ، بلکه په دی وجه سره چه استناد ئے دلیل ته دے ۔ بله دا چه کله دلیل نشی

جوړیدے او تائید د دلیل هم مقصد دے، نو بیانته ولے
د علماؤ اقوال راحج کوے، او بیاد دا دومره صفحے ولے
مسے تورے کړیدی، خپل وخت دِ هم ضائع کړیدے او
کاغذ هم، او د "خسر الدنیا والآخرة" مصداق اوګرځیدے۔

کونړ ملا لیکی" لیکن په دے مقام د علماؤ اقوال ډیر
قوی او عجیب تائید دی ص۵۵، کونړ ملا تائید خو په دلیل
سره کیږی، او کله چه د علماؤ اقوال دلیل نشی جوړیدے،
نو تائید به څنګه اوکړی۔

خفته را خفته کے کند بیدار

کونړ ملا لیکی" اوس د علماؤ اقوال په رد د تقلید
کښی راوړم ص۵۵۔ کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، رد په دلیل
شرعی سره کیږی۔ او ته وائے چه د علماؤ اقوال دلیل نشی جوړیدے
نو د تقلید رد به پرے څنګه اوکړے؟

کونړ ملا وائی" تقلید نه په عالم شته او نه په امی باندے
ص۵۵، ګویا د آیت کریمه" فاسئلوا اهل الذکر" نه
خالص انکار شو۔ کونړ ملا! امی خو د سره په دلیل
هم نه پوهیږی نه، خو چه عالم ورته څه اووائی هغه
منی۔ نو دا تقلید دے۔ او ته نمر د ګوتے نه پناه کوے

---- - - - - - -

## دکونړملا اوّل دلیل ص۵۶

قال ابن عباس.......

"ما من أحد إلا وهو مأخوذ من كلامه ومردود عليه إلا رسول الله صلى الله عليه وسلم ص۵۶،

کونړملا په دیکښې دچا اختلاف دے، داحیثیت دصاحب گنبد حضراء علیه السلام دے، چه دهغه هرهرقول مأخوذ دے، په امتیانوکښې داسے څوک نشته، چه دهغه هرقول اغستے شوے وی، دهغه صرف هغه قول اغستے کیږی، چه دادله اربعه نه په یودلیل سره بنا وی. نو کونړملا دد ے دتقلید درد سره څه تعلق دے؟

دد ے خوصفا مطلب دادے چه دمجتهد کوم قول په دلیل سره مضبوط وی. هغه به اغستے شی، کنی پریښودے به شی. او په مذاهب اربعه کښې دد ےیو دوه نه بیشماره مثالونه دی، چه که دصاحب مذهب قول د دلیل په اعتبارسره کمزورے وی، نوهغه پریښودلے کیږی، اوچه دچاقول مضبوط وی په دلیل سره هغه اغستلے کیږی.

باقی کونړملا ستادا بدگمانی چه "مقلدین ددی دور دخپل امام یوه خبره هم نه ضائع کوی، ص۵۶. نو

دا ستاد عناد او تعصب مرض دے ، الله تعالیٰ دِ دے
مرض نه شفا درکړی، چه هسے اوتے بوتے نه وایئے. آمین

## دکونړ ملا دوېم دلیل ص۵۵

وقال عبد الله بن المعتز " لافرق بين البهيمة تنقاد وانسان يقلد ،، ص۵۵

کونړ ملا تا خواوس په ص۵۵ یاندے وے چه دعلماؤ اقوال دلیل نشي جوړیدے، او د لته د عبد الله بن المعتز قول ته دلیل وائے. داولے ؟ دا ځکه چه،

" دروغ گو را حافظه نباشد "

عجیبه ده چه کونړ ملا دیو انسان قول خومنی، او دلیل نه دے، او بیا ورته هم دلیل وائي، او د الله تعالیٰ قول " فاسئلوا اهل الذکر " چه قوی دلیل دے د تقلید دپاره، هغه نه مني. لیکن ځان ته بیا هم اهل حدیث وائي. دا څومره غټ جرأت دے.

## دریم دلیل

دلته ئے بیا دیو عالم قول ته دلیل اووے، او دا سے ئے په دے ټول بحث کښ کړیدی. څه په دکوم کوم نشاندهي کووم لوستونکی دِ ورته ښه سوچ اوکړی. چه کونړ ملا وائي څه اوکوی څه ؟ او دا سے کول دچا نښه ده ؟ بیال

راجع بيان "
"قال سفيان بن عويينه (کونړ ملا داسې ليکلې، صحيح "سفيان بن عيينه" دې) اضطجع ربيعة مقنعا وبكى فقيل ما يبكيك؟ فقال رياء ظاهر و شهوة خفية والناس عند علماءهم كالصبيان في حجور امهاتهم ما نهوهم انتهوا و ما أمروهم به ائتمروا" ص۵۷
کونړ ملا ئې داسې ترجمه کوي "
سفيان فرمائي چه ربيعه رضي الله عنه يو ځل سر ټيټ کړو، او تکيه ئې اولګوله او ژړل ئې، چا تپوس اوکړو چا ولې ژاړې؟ نو هغه اوويل چه رياء عامه شوه، او شهوت خفيه - او خلق د علماؤ پسې داسې روان شول، لکه ما شوم چه د مور پسې روان وي، علماء چه ورته څه وائي هغه مني او د څه نه چه منع کوي منع کيږي. او د دليل څه تپوس نشته الخ
کونړ ملا عقل دِ نصيب شه، په ترجمه کښې دِ هم خپل عادت ښکاره کړو - " رياء ظاهر وشهوة خفية " د "يبكي" فاعل دې، يعني خپله رياکاري او خپل پټه خواهشونه ئې ژړوي - يعني مونږ ه خومره په ريا کښې اخته يو، بل هغه وائي چه خلق د عالمانو په مخکښې داسې دي،

لکه یچې د مور په غیږ کښې چه څه ورته وائی هغه منی، او
چه د څه نه ئې منع کوی، نو منع کیږی، نو کونړ ملا د
عالمانو خبره خو منل پکار دی - دکونړ دا خیال دے، چه
خلق دِ د عالمانو نه منی، بلکه د جاهلانو دِ منی.

کونړ ملا په ایمان ئې وایه دا الفاظ یعنی" د دلیل تپوس نشته"
دِ دکوموالفاظو ترجمه اوکړه ؟ ولے دا تحریف نه دے ؟

کونړ ملا مخکښې لیکی" ربیعه دا شکایت کړی دی د مقلدینو
نه، ص۵ - کونړ ملا لږ به دِ کتلے وے. چه ربیعه څوک
دے او په کوم سنه کښې وُو ؟ بله دا چه دا دکوم ځائے
نه ثابته شوه چه دا د مقلدینو نه شکایت دے.

## دکونړ ملا تضاد

کونړ ملا په چغو چغو لګیا دے
کله وائی چه تقلید د څلورمے صدئ
نه روستو شروع شوید ے، او کله وائی چه په ۲۸۲ سنه
کښې شروع شوید ے، او د لته وائی چه ربیعه د مقلدینو
نه شکایت کوی ص۵ - که ربیعه د مقلدینو نه شکایت
کوی، نو بیا خود کونړ ملا مخکینئ چغے د کوزخرحیثیت
هم نه لری، بلکه له دینه معلومیږی چه تقلید په دویمه
صدئ کښې جاری و ساری وُو، لکه شاه ولی الله رحمه الله
وائی چه تقلید د صحابه کرامو د زمانے راسے شروع دے.

ځکه چه ربیعه د ښلورمے صدئ نه روستو نه دے تیر شوے.

کوم ملا عقل د نصیب شه، دا ربیعه صحابي نه دے، د ربیعه نوم صحابي نه د سفیان بن عیینه سماع نشته دا ربیعه بن عبدالرحمٰن المعروف بربیعة الرائی دے. دده په باره کښې ابن سعد وائي چه په سنه ۱۳۶ھ کښې وفات شوے دے، ابن حبان وائي چه په سنه ۱۳۳ھ کښې وفات شوید ے، او باجي (فی رجال البخاري) کښې وائي چه په سنه ۱۴۲ھ کښې وفات شوید ے. د تفصیل د پاره تهذیب التهذیب (۲-۲۵۹) طبع حیدرآباد دکن اوګوره. بهرحال دے د دویمے صدئ سړے دے. او د امام مالک رحمه الله شیخ دے. نو که دے د مقلدینو نه شکایت کوی، نو کوم ملا ستا د ښلورمے صدئ او د دریمے صدئ د دعوے څه حیثیت پاتے شو. دا دے په ځان پخپله ګواهی اوکړه چه مخکښې م څه ویلي وُو، غلط وُو. بلکه دا چه د اخر په ربیعه الرأی مشهور دے. او نه د رائی دښمن ئے، نو دده قول د ځنګه نقل کړو.

**ښلورم دلیل** "وقال ایوب السختیاني رحمه الله لیس تعرف خطأ معلمك حتی

تجالس غیره، ص۵۷

کوٹر ملا نه خو والیٔ چه دلیل د شرع دوه دی، کتاب الله
اوسنت نبوی ص۴۲ نو دایوب سختیانی رحمه الله دا قول
ستا په خیال آیت دے اوکه حدیث؟ چه ته ورته دلیل
وایے. بله داچه په دیکښې د تقلید د رد څه دی؟ هاں
ستا دهوکه پرے ختمیږی، ځکه چه ته وائے چه تقلید د
څلورمے صدئ نه روستو شروع شوے دے، او ایوب سختیانی
په سنه ۱۳۱ کښې وفات شوید ے، اوګوره تهذیب التهذیب
(۱-۳۹۸) نو معلومه شوه، چه ستا داخبره چه تقلید
د څلورمے صدئ نه روستو شروع شوید ے سوفیصد غلطه
ده. بله داچه دایوب سختیانیؒ د قول مطلب دادے
چه په اخذ حدیث کښې په یو شیخ اعتماد ندے پکار،
بلکه د مختلفو شیوخو نه حدیث اغستل پکار دی، او
دخپل استاذ غلطی سړی ته هله معلومه شی، چه د بیو
بل استاذ سره کینی، لکه داخبره څه پټه پناه نه ده، دغه
مطلب دانه دے چه کنے دیو کس تقلید مه کوه. اوکه
بالفرض دا سے شی نو صرف تقلید شخصی به ترے مراد
شی، مطلق تقلید بیا هم ثابت دے. وهوالمراد

## پنځم دلیل

قال قتادة ان ابن سيرين حدث رجلاً بحديث النبي صلى الله عليه وسلم فقال الرجل قال فلان كذا وكذا فقال ابن سيرين احدثك عن رسول الله صلى الله عليه وسلم و تقول قال فلان كذا ص۵۸

کونړ ملا، کله چه د پیغمبر علیه السلام صحیح صریح او غیر معارض حدیث موجود وی، او دهغې په مقابله کښې څوک خپله رائے پیش کوی، نو دهغه هم دغه جواب کوم چه ابن سیرین رحمه الله اوکړو، په دے څونړ هم ایمان دے۔

## شپږم دلیل

"قال ابوحنيفة اذا صح الحديث نهو مذهبي" ص۵۸

کونړ ملا خبره هم دغه ده، چه که چاته صحیح صریح او غیر معارض حدیث میلاؤ شي۔ او د امام یا د هرچا چه وی قول د دغه حدیث مخالف وی، نو حدیث به اغستلے کیږی، او دغه قول به پریښود لے کیږی۔

نو کونړ ملا په دیکښې د تقلید رد له کومه ځایه راغلو بلکه داده چه دے حدیث ته به صحیح څوک وائی۔آیات یا حدیث اوکه څوک امتی؟ اوکه امتی ورته صحیح وائی

نو د هغه خبره مثل خو بیا تقلید شو . نو د تقلید رد له کومه راغے .

وقال ایضًا " لا یحل لأحد أن یأخذ بقولنا مالم یعلم من أین أخذ نا؟ ،، ص۵۸

کونړ ملا، د عالم د حده پورے خو دا صحیح ده، خو امی به دا څنګه معلوموی؟ بله دا چه په ایمان ئے وایه که د یو حدیث په باره کښ یو محدث اووائی چه دا معلول دے او د علت په ښوولو باندے قادرهم نه ئي ، بیا ئے هم خلق د ا خبره منی اوکنه ؟ سره د دے چه د علت د مأخذ پته پخپله معلل ته هم نه لږی ، نو کونړ ملا ته به ئے څه معلوم کړے ؟ او د غه حکم هم د دے قول ،

" حرام علی من لم یعرف دلیلی أن یفتی بکلامی" ص۵۹ دے ځکه چه د دلیل معلومول د عالم کار دے . د امی کار نه دے بله دا چه د دے دواړو قولونو نه د تقلید منع نه ثابتیږی بلکه تقلید ترے ثابتیږی . ځکه چه " لا یحل لأحد أن یأخذ بقولنا مالم یعلم من أین اخذ ناه ،، او " حرام علی من لم یعرف دلیلی أن یفتی بکلامی ،، مطلب دا شو، چه که څوک ځما د قول دلیل او پیژنی ، نو هغه ځما قول اخستے شی او فتوی پرے ورکولے شی ، نو عالم به ئے

دلیل او پیژنی او امی به ئے د عالم نه او تپوسی، نوکوم ملا داخوعین اثبات تقلید شو، د تقلید رد نو ے څنګه نه کوے؟

وفی روایة " فاننا بشر نقول القول الیوم ونرجع عنه غداً اوفی روایة ویحك یعقوب لا تکتب کل ماتسمع منی فانی قد أری الرأی الیوم واترکه غداً وأری الرأی غداً وأترکه بعد غدٍ "، صـ ۵۹

کوم ملا دا دے حما د طبیعت خبره اوکړه، که چرے په دی باندی عمل شوے وے، نو نن به څومره کتابونه د کمزورو روایتونو او جرح وتعدیل نه پاک وے۔ اوګوره که یو محدث دخپل ذاتی عناد او تعصب په وجه سره دچا په باره کښ څه ویلی وی، نو شاګردانو ئے هغه هم لیکلی دی۔ لکه کتاب الجرح والتعدیل اوګوره، ابن أبی حاتم دخپل پلار نه تپوس کوی، او چه هغه څه اووائی دے هغه لیکی، مثلاً د امام بخاریؒ په باره کښ ئے هم اولیکل چه ابوزرعه او ابوحاتم امام بخاری پریښودے وُو. ګویا د دوئ په نیزد د امام بخاریؒ غوندی هستی هم متروکه وه، دغه شان عقیلی ته اوګوره، چه د امام بخاریؒ د استاذ علی بن المدینی په باره کښ څه وائی؟ ترد ے

چہ امام ذہبیؒ ورتہ پہ میزان کښې وائی،
" امالك عقل يا عقيلی فيمن تتكلم "
عقیلی تہ دومرہ عقل ہم نہ لری، داتہ دچا پہ بارہ کښې
لګیا ئے؟ غرض داچہ دجرح وتعدیل پہ کتابونو کښې
پہ مشکلہ بہ داسے څوك وی چہ هغہ دچا دحملے نہ بچ
پاتے شوے وی، او داځکہ چہ یو محدث بہ کلہ پہ غصہ
کښې دچاپہ بارہ کښې څہ سخته جملہ ویلی وی، یا بہ ئے د
څہ ذاتی عناد او تعصب پہ بنا، باندے څہ ویلی وی، او
شاګردانو ئے دا هرڅہ راجمع کړیدی؛ اوکتابونہ ئے تری
ولاړ کړی دی، او اوس چہ څوك دجرح وتعدیل داکتابونہ
ګوری، نو پہ سرئے دهرد شی. چہ یا اللہ دا څہ دی؟
دوئ خو هډو دسرہ څوك معاف کړے نہ دے۔
نوکونړ ملا، کہ دامام ابوحنیفہؒ پہ دے قول عمل
شوے وے، نو صرف فقہی کتابونہ بلکہ دجرح و
تعدیل داکتابونہ بہم دداسے متضاد روایتونو نہ پاك وے
لیکن افسوس ؎

تجری الرياح بما لا تشتهی السفن

نوکونړ ملا! دا صورت حال صرف دفقہی پہ کتابونو
کښې نہ دے۔ بلکہ دجرح وتعدیل پہ کتابونو کښې ہم دے،

یو محدث "یو راوی ته وائی " دجال من الدجاجلة " بل به وائی " امیرالمومنین فی الحدیث "، یو به وائی چه ثقة دے بل به وائی "ایصلی هو" ولے مو نږ هم کوی ؟ یو ځائے به وائی ثقة، بل ځائے به وائی ضعیف ، یو ځائے به وائی "وثق" بل ځائے به وائی " مجمع علی ضعفه" سړے حیران پاتے شی ، دا صورتحال په مجمع الزوائد کښې ډیر زیات دے ما د مجمع الزوائد دغه قول راویان چه جرحه پرے شویده یائے توثیق شویدے ، راجمع کړیدی ، او نوم م ورله "الرائد لرجال مجمع الزوائد" ایښے ۔ صرف مسوده ده ۔ دیو راوی په باره کښې کله څو څو قولونه راجمع شی ۔

الغرض ! دا به ډیره ښه وے که دامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله په دے قول عمل شوے وے ، والله هو الموفق

## دامام صاحب بل قول

" إذا قلت قولاً یخالف کتاب الله وخبرالرسول صلی الله علیه وسلم فاترکوا قولی "، ص۵۹

کوثر ملا صاحب ، په دیکښې هم څه اختلاف نشته ، په کوم قول چه دادله اربعه نه څه دلیل نه وی ۔ دهغے اغستل شخصیت پرستی ده ، او کوم قول چه د دلیل مطابق وی ، د هغے اغستل جائز دی ۔ باقی دکوثر ملا دا خبره چه "دهر ے

مسئلے دپاره دقرآن وحدیث څخه دلیل پیدا کول منع ، نو
خان پوهے کړه چه داهل السنة والجماعة په نیزد دلائل څلور
دی ، (۱) کتاب الله (۲) سنت نبوی (۳) اجماع (۴) قیاس
او هم دغه ترتیب دے ددلائلو په منځ کښې .
بله دا چه دا تعارض خو صرف عالم پیژندلے شی . امی
خو پرے نه رسی ، هغه به خامخا تقلید کوی .

## اووم دلیل

دامام مالکؒ قول او اتم دلیل دامام
شافعیؒ قول دا دواړه دامام ابوحنیفهؒ
دقول هم معنی دی ، او په دیکښې څه اختلاف نشته ،
چه دپیغمبر علیه السلام صحیح قول نه دچا قول خلاف وی نو
هغه به پریښودلے کیږی ، او دپیغمبر علیه السلام قول
به اغستلے کیږی . او دا هله چه واقعی مخالفت موجود
وی او دامام قول بے دلیله وی .

## نهم دلیل

"قال الامام احمد بن حنبل" لا
تقلدنی ولا تقلد مالکا ولا شافعی
ولا الأوزاعی والثوری وخذ من حیث أخذو" [ص ۹۶]
کو نرملا دا دهغه چا په حق کښې دے چه ددوئ هومره
علم لری نو بیا خو صحیح ده ، خو چه دچا دومره علم
نه وی . یا بالکل امی وی ، نو هغه به څه کوی ؟ او ولے

کوم ملا ته د دے ائمه کرامو هومره علم لرے ؟ دا خو د حدیث د فن امامان وُو، او دوئ چه څه وئیلی هغه ته هم مُنے اومونږه هم، ز دوئ د قول خولوئ لوئ محدثین تقلید کوی۔ نو ته خو دومره علم ته لرے۔ بلکه د دوئ په خبرو هم نه پوهیږے۔ چرته یو څو ټکی به دِ ایزده کړی وی، او ځان د امام مالك، اوزاعی او سفیان ثوری رحمهم الله په شان ګڼرے۔ هغه وائی "چیندخه د لوتې سرته اوختنه نو وے ئے کشمیر م اولیدو"

د امام احمد رحمه الله دا قول،

"رأی الأوزاعی ورأی مالك ورأی ابی حنیفة کله رأی وهو عندی سواء وانما الحجة فی الآثار"

یا دا قول،

من رد حدیث رسول الله صلی الله علیه وسلم فهو علی شفا هلکة" ص ۶۲

بالکل اتفاقی خبره ده۔ څه د اختلاف ګنجائش ترے نشته، اوّل دلیل کتاب الله دے، دویم دلیل سنتِ نبوی دے، دریم دلیل اجماع د امت ده، او که دا نوی نو بیا به د مجتهد قیاس او رائی اغستلے کیږی۔ لکه څرنګه چه د حضرت معاذ رضی الله عنه په حدیث

کښې تفصیل تیر شو، خو څه وایم چه لدینه د تقلید ځنګه رد او شو۔

او د امام احمدؒ دا قول،

"خذوا علمکم من حیث أخذه الأئمة ولا تقنعوا بالتقليد فان ذلك عمى فى البصيرة" ص۶۳

هم د مخکینی قول پشان دے۔ په دیکښې د تقلیدؒ منع نه ده۔ بلکه د علمی ترقئ تحریض دے، چه د علم هغه مقام ته اورسئ کوم ته چه دا امامان رسیدلی وُو۔ چه د تقلید نه خلاص شئ۔ او دا خبره بالکل صحیح هم ده او سنه هم ده۔ خو کوم ملا په ایمان ئے اووایه چه په دے موجوده دور کښې دے امامانو هومره علم والا څوک دے شته، دا سے څوک شته چه په لکونو خو بیرې ده بلکه چه یو پنځه سوه احادیث ورته یادوی، او د ناسخ او منسوخ علم ورته حاصل وی۔ لېږ سوچ اوکړه۔ هغه دا اُردو متل دے "یه منه اور مسور کی دال" موږ هم وایو چه که په چاکښې د اجتهاد شرائط موجود وی، هغه له تقلید جائز نه دے کوم ملا یکی،

" وقال علی القاری فی شرح عین العلم " ومن المعلوم أن الله سبحانه وتعالى ما كلف أحدًا أن يكون

حنفیًا اوشافعیًا اوحنبلیًا بل کلفهم ان یعملوا بالسنة » ص۶۳

## کونړ ملا او دیهودو طریقه

یهودیانو به هم لفظی تحریف

کوڅو او هم معنوی - کونړ ملا د ملاعلی قاری ؒ په دی عبارت کښې دواړه طریقے خپلے کړیدی ، لفظی تحریف ئے داکړیدے ، چه پوره عبارت ئے نه دے نقل کړے ، ځکه چه په پوره عبارت نقل کولو کښې د یهودو طریقه د لاسه وتله - او دا دده خوښه نه وه ، پوره عبارت دا سے دے ،

"من تبع عالما لقی سالما ، ومن المعلوم أن الله سبحانه وتعالی ما کلف أحدًا أن یکون حنفیًا اومالکیًا اوشافعیًا او حنبلیًا بل کلفهم أن یعملوا بالکتاب والسنة ، إن کانوا علماء وأن یقلدوا العلماء إذا کانوا من الجهلاء اھ شرح عین العلم (۱۲۴۶)

کونړ ملا دا خط کشیده عبارت پریښے دے ځکه چه بیا ئے دهوکه نبکاره کیده - بل ئے معنوی تحریف هم کړے دے ، ځکه چه دعبارت نه تقلید ثابتیږی ، او کونړ ملا ترے په تقلید باندے ردکوی ،

ع۔ چہ دلاور است دزدے کہ بکف چراغ دارد

دریم ئے دھوکہ کړیدہ ، د صفحے نمبر ئے هم غلط ورکړید ے ، او جلد نمبر ئے هم نہ دے بیکلے ، د دے د پارہ چہ څوک ئے او نہ مومی ، خو دھوکہ چر تہ پټیږی ، دغہ شان د امام شعرانیؒ قول ،

" والمذهب الواحد بلا شك لا يحتوى على كل احاديث الشريعة إلا أن قال ( کونړ د اسے نقل کړے ، او صحیح "إلى أن قال" دے ، واللہ اعلم ۱۲ راقم الحروف ) صاحبه اذا صح الحديث فهو مذهبی الخ ص۶۳

په دیکښ هم څه اختلاف نشته ، خود تقلید رد ترے نه کیږی بلکه اثبات ترے کیږی ، ځکه چه "إلى أن قال صاحبه" د مذهب په اثبات دلالت کوی . د " صاحبه " نه مراد صاحب المذهب دے ، بله دا چه دا صحیح به ورته څوك وائی ، ولے دا تقلید نه شو . نو ظالمه د تقلید رد په تقلید کوے .

کونړ ملا لیکی ،

وقال شاه ولی الله ( کونړ ملا دلته هم دروغ او وے ځکه چه دا د شاه ولی اللهؒ قول نه دے . بلکه د شیخ عزالدین عبدالسلام شافعی المذهب قول دے

شاہ صاحب د دہ یو قول مخکښې ذکر کړو، او دلته ئے بل قول نقل کوی، شاہ صاحبؒ لیکی "وقال لم یزل الناس الخ صیبہ ۱۵۵ ج ۱ کوښړ ملا ترے" قال "کټ کړو، چه شاہ صاحب ته ئے په دروغه منسوب کړی ۱۲ راقم الحروف غفرلہ)

فی حجۃ اللہ البالغۃ " لم یزل الناس یسئلون من اتفق من العلماء من غیر تقیید لمذھب والنکار علی أحد من السائلین إلی ان ظھرت المذاھب و متعصبوھا من المقلدین الخ صـ ۶۴

کوښړ ملا د شیخ ابن عبد السلامؒ د قول نه زیات نه زیات د تقلید شخصی نفی کیږی (اگرچه دا قول هم د تاریخ په رڼا کښې صحیح نه دے) د مطلق تقلید نفی ترے نه کیږی. اودغه شان د ابوشامۃ قول،

"ینبغی لمن اشتغل بالفقه أن لا یقتصر علی مذھب امام"

هم دا معنی لری، چه د یو امام په فقه دِ قناعت نه کوی، نو د مطلق تقلید نفی ترے او نشوه. اصل خبره داده، چه شاہ صاحب د ابن حزم د قول چه تقلید حرام دے، جواب ورکوی، او وائی چه دا د هغه ځا په باره کښې دے، چه د امام قول ورته د حدیث نه مخالف معلوم

شی، او بیا هم د امام قول اخلی او حدیث پریږدی.
نو دا سے تقلید حرام دے. او په دیکښ هیڅ اختلاف
نشته. په کونړ ملا کښ که واقعی د رتی برابر خه دیانت
وے. نو د شاه صاحب پوره قول به ئے نقل کړیوے.
مونږ د حجة الله نه د شاه صاحب دا قول مخکښ هم
نقل کړے، او س ئے بیا نقل کوُوم چه دکونړ ملا دیانت
لوستونکو ته معلوم شی.
" ومما یناسب هذا المقام التنبیه علی مسائل ضلت
فی بوادیها الأفهام (کفهم کونړ ملا) وزلت الأقدام وطغت الأقلام
(کقدم کونړ ملا وقلمه) منها ان هذه المذاهب الأربعة
المدونة قد اجتمعت الامة أو من یعتد به منها
علی جواز تقلیدها إلی یومنا هذا وفی ذلك من
المصالح مالا یخفی لا سیما فی هذه الأیام الخ صـ۱۵۴ جـ۱۰
کوره کونړ ملا د شیخ ابن عبد السلام کوم عبارت چه نقل
کړیدے، هغه په صـ۱۵۵ باندے راځی. او دا عبارت په
صـ۱۵۴ باندے دے. کونړ ملا دا پریښودو، او صـ۱۵۵ ته
ئے ټوپ اوهلو. یا خو کونړ ملا په ښئ سترګه ړوند
دے، ځکه صـ۱۵۴ ورته نه ښکاری، او صـ۱۵۵ ورته ښکاری
او یا ئے د خپل نفس امارة بالسوء تقلید کړیدے.

کوڼړ ملا اولے داخه په آیت یا حدیث کښی راغلی دی چه ص۱۵۴ ته مذکوره صرف ص۱۵۵ ته ذکوره، دغه عبارت راواخله او د شاه صاحب رح دا عبارت مه راخله؟ یا دا ستا دنفس اماره فیصله ده؟ ولے انصاف او دیانت دې نوم دے؟ فالی الله المشتکی۔

کوڼړ ملا دابن قیم دا قول،

" بل لا یصح للعامی مذهب ولو تمذهب به فالعامی لامذهب له الخ ص۶۴

نقل کړیدے او په ص۶٦ دابن عابدین دا قول نقل کوی،

" واما الأمی فلا مذهب له بل مذهبه مذهب مفتیه " اه

اوهم دادا ابن قیم د قول جواب شو، چه دامی مذهب د مفتی فتوی ده، یعنی د غیر مقلد ینو عوندے لامذهبه نه دے، دابن قیم قول په غیر مقلدینو باندے ښه چسپان کیږی، چه دوئ تقول لا مذهبه دی، څه مذهب نه لری په مقلدینو باندے نه، ځکه چه د مفتی قول ددوئ مذهب دے۔

کوڼړ ملا د حبیب الله قندهاری قول پیش کړیدے خود غه هم هغه دابن قیم نغمه ده۔ نور څه نه دی۔

باقی کونږ ملا چه داوائی چه " امی دِ د سلفو په شان شی الخ
ص٦٧ نو د شاه ولی الله رح د عقد الجید په حواله سره دا
خبره تیره شوه، چه تقلید د صحابه کرامو د دور نه
شروع دے. او کونږ ملا چه وائی. چه امی به دلوئ
عالم نه تپوس کوی، نو امی خو په دبیل نه پوهیږی،
چه عالم ور ته څه اوښائی، په هغې عمل کوی، او دا عین
تقلید دے. مجتهد چه ور ته څه ښائی. دغه دشریعت
حکم دے، لکه شاه ولی الله رح په عقد الجید کښې لیکلی،
" وإذا تحقق عندك ما بيناه علمت أن كل حكم
يتكلم فيه المجتهد باجتهاده منسوب إلى
صاحب الشرع "، ص٥٠
کونږ ملا اوس که نه ور ته عمل بروایة الراوی وائے
ص٦٧، او که تقلید. شے یو دے صرف دا صطلاح فرق
دے. ولا مناقشة فی الاصطلاح.

دابن قیم قول:

ومن هنا...... تبين الفرق بين تقليد العالم فی
كل ما قال و بين الاستعانة بفهمه و الاستضاء
بنور علمه الخ ص٦٨

یعنی یو سړے دیو عالم تقلید کوی، او یو سړے دیو

عالم د فهم نه مدد اخلی، او د هغه د علم د رڼا نه رڼا اخلی (ګویا پخپله ړوند دے ۱۲ راقم الحروف) نو ابن قیم وائی، چه په دے دواړو کښې فرق دے، حالانکه په دواړو کښې هیڅ فرق نشته، دواړه ړانده دی۔ او د مجتهد د علم د رڼا محتاجه دی، نو فرق له کومه ځایه راغلو۔

کوڼ ملا د اعتصام شاطبی یو اوږد عبارت نقل کړیدے۔ ترجمه ئے ورله نه ده کړی، چه عام خلق ئے په حقیقت پوهٔ نشی۔ او وائی چه دا عبارت عجیب سوچ غواړی ص۶۹ ځه د امام شاطبی د دے عبارت خلاصه را نقل کوم، او کوڼ ملا دِ پرے سره د خپلو ملګرو سوچ اوکړی۔

" کله چه د شریعت د یو عالم تقلید اوشی او خلق ئے حکم اومنی۔ نو دا صرف د دے وجے نه چه دے د شریعت عالم دے، او د شریعت مطابق حکم کوی څه دبلے وجے نه د ده تقلید نه کوی، او دا عالم په حقیقت کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د الله تعالیٰ حکم رسوونکے دے، د عالم تقلید صرف د هغه د عالم کیدو په وجه سره کیږی، په

څه بله وجه سره نه۔ او کله چه مقلد ته پته اولګی
چه دے عالم دشریعت د دے امانت په رسولو کښی
غلطی کړیده، یا دا امانت رسول ئے پریښودی دی،
یا دشریعت نه په څه بله وجه اوو ختے دے۔ نو بیا
دِ ددغه عالم په تقلید اصرار نکوی، ځکه چه هرانسان
لره خطا شته، نو ددغه عالم قول پریښودل پکار
دی۔ او کچرے څوك بیا هم ددغه عالم په تقلید
با ندے ټینګ وی نو دا د شریعت نه مخالفت شو۔
تقریبًا دا د اعتصام دعبارت خلاصه ده۔ نو کوم ملا
په دیکښی د تقلید رد نشته د ړوند تقلید رد دے پکښی،
او ړوند تقلید او ړنده اتباع په شریعت کښی مذموم دی.
او دحضرت عدی بن حاتم رضی الله عنه دحدیث مصداق
ګرځی، لکه د شاه ولی الله رح په حواله سره مخکښی هم داخبره
تیره شوه۔
دابن جوزی قول د تلبیس ابلیس نه ص۶۹۔ لږ د تلبیس
ابلیس نوم کتاب حیثیت خو به دِ معلوم کړے وے،
دا خو د موضوع روایتونو نه ډك دے، یو عالم دګے
کتاب د حدیثو تخریج کړیدے، ما سره موجود دے،
که هغه څوك اوګوری، نو حیران به شی۔ چه دا هغه

ابن جوزی دے چہ پہ روایاتو کښی یاخو دومره تشدد کوی، چہ د صحیح مسلم روایت هم پہ موضوعاتو کښی ذکر کوی، او پخپله ئے دا حال دے چہ کتاب ئے د موضوع احادیثو نہ خولہ پخولہ ډک دے۔ دغہ شان حال ئے پہ زاد المسیر کښی هم دے، او "الوفا" کښی هم۔ بل ابن جوزی پخپله حنبلی المذهب دے، کہ تقلید ناجائز وے نو پخپله ولے کوی، داخو د " أتأمرون الناس بالبر و تنسون أنفسكم " مصداق جوړیده شو۔

بلہ داچہ شیطان خو پخپله غیر مقلد دے، هغہ خو خلق غیر مقلدیت تہ راړوی، هغہ پخپله تقلید نہ دکړے (مخکښی داخبره تیره شوے، چہ د تقلید او اتباع مفهوم یو دے) نو نور هم غیر مقلدین جوړوی، گویا ؎

ہم تو ڈوبے ہیں صنم تم کو بھی لے ڈوبینگے

کونړ ملا لیکی " اکثر خلق وائی چہ امام ابوحنیفہ تابعی دی او زمانہ د نبی علیه السلام تہ نزدی دی، او ډیر عابد ؤو او وغیره وغیره نو مونږه وایو چہ څوک د امام ابوحنیفہ د فضائلو نہ منکر دے ......... بیاخو پہ اتفاق د مسلمانانو سره اویس قرنی او سعید بن

المسیب او حسن بصری د امام صاحب نه غوره دی، بیا
خو پکار دی چه د هغوی تقلید دِ او کړے شی، ځکه
کوم ملا نه دا هم پته نشته چه د یو عالم تقلید کله کیږی؟
شاه ولی الله په عقد الجید کښ لیکی،
"وإذا تعين الأعتماد على اقاويل السلف فلابد ان يكون
اقوالهم التي يعتمد عليها مروية بالاسناد الصحيح
اومدونة فى كتب مشهورة وان يكون مخدومة بان
يبّين الراجح من محتملاتها و تخصص عمومها فى
بعض المواضع ويقيد مطلقها فى بعض المواضع
ويجمع المختلف فيها ويبين علل احكامها وإلا لم
يصح الاعتماد عليها وليس مذهب فى هذه الازمنة
المتأخرة بهذه الصفة إلا هذه المذاهب الأربعة
اللهم إلا مذهب الامامية والزيدية وهم اهل
البدعة لايجوز الاعتماد على اقاويلهم، وثانيًا
قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اتبعوا سواد
الأعظم ولما اندرست المذاهب الأربعة الحقة
إلا هذه الأربعة كان اتباعها اتباعًا للسواد الأعظم
والخروج عنها خروجًا عن السواد الأعظم اه
ص ٥٥-٥٦

یعنی کله چه دا خبره متعینه شوه چه د سلفو په اقوالو په اعتماد کیبږی۔ نو دا ضروری دی چه د دوئ اقوال په صحیح سند سره روایت کړے شوی وی، یا په مشهورو کتابونو کښې جمع کړے شوی وی، او دا هم ضروری ده چه دد غه اقوالو په محتملاتو کښې راجح قول ښکاره کړے شوے وی، او په بعضے ځایونو کښې د عموم تخصیص هم شوے وی، او په بعضے ځایونو کښې د مطلق تقیید هم شوے وی، او که اقوال مختلف وی نو د هغے جمع او تطبیق هم شوے وی، او ددے د احکامو علل هم بیان شوے وی کښې بیا پرے اعتماد صحیح نه دے۔ او په دے آخری زمانه کښې سیوا د مذاهب اربعه نه بل مذهب په دی صفت سره موصوف نشته۔ هان! سیوا د امامیه او زیدیه د مذهبونو نه، خو دا خلق چونکه بدعتیان دی، ددی وجے نه د دوئ په قول اعتماد جائز نه دے۔

دویمه خبره دا چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی چه تاسو د سواد اعظم (لوئ جماعت) تابعداری کوئ، او کله چه د دے څلورو مذهبونو نه علاوه نور صحیح مذهبونه ختم شول، نو د دے څلورو واړو مذهبونو تابعداری د سواد اعظم تابعداری ده۔ او له دینه وتل د سواد اعظم

نه وتلی دی . لکه کونړ ملا چه وتے دے .

نو کونړ ملا عقل ډِ نصیب شه . دا بنا چه دکوم حضراتو

نوموته اغستی دی ، ولے د دوی مذهبونه په دے ډول

موجود دی ؟ اوکه ستوی نو ځان خو ډِ د سواد اعظم

نه ایستلے دے نورخلق مه اوباسه .

محترمو لوستونکو ! کونړ ملا ! پخپله خو د شاه ولی اللهؒ

د قول مطابق د سواد اعظم نه وتلے دے ، تا سو هم اوباسی

ګویا دے هم دغه بزبان حال وائی ، ع

ہم تو ڈوبے ہیں صنم تمکو بھی لے ڈوبیں گے

لهذا خپل دوست د دښمن او پیژنئ .

# اوس کونړ ملا د تقلید نقصانات بیانوی ص۲۷

کونړ ملا وائی چه په تقلید کښ نقصانونه دی ، او امام

الهند حضرت شاه ولی الله رحمه الله په خپل کتاب عقد الجید

کښ لیکی ، چه په تقلید کښ ډیر غټ مصلحت دے ، او

د تقلید په پریښودو کښ ډیر غټ فساد دے . مناسب

دادی، چه اوّل دشاه صاحب رحمه الله قول د تقليد د
فائدو په باره کښ ذکرکړم، چه خلقو ته معلومه شی- چه
کوم ملا ځومره د تلبيس ابليس نه کار اغستے، دشاه صاحبؒ
دکتاب نيمګړی عبارتونه نقل کوی او خلقو له دا دهوکه
درکوی، چه ګنے شاه صاحبؒ هم د تقليد مخالف دے ع

چه دلاور است دزدے که بکف چراغ دارد

شاه صاحبؒ په عقد الجيد کښ ليکی-

باب تاكيد الأخذ بهذه المذاهب الأربعة والتشديد في تركها والخروج عنها- اعلم أن في الأخذ بهذه المذاهب الأربعة مصلحة عظيمة وفي الاعراض عنها كلها مفسدة كبيرة ونحن نبين ذلك بوجوه،
احدها أن الأمة اجمعت على أن يعتمدوا على السلف في معرفة الشريعة فالتابعون اعتمدوا في ذلك على الصحابة وتبع التابعين اعتمدوا على التابعين وهكذا في كل طبقة اعتمد العلماء على من قبلهم والعقل يدل على حسن ذلك، لأن الشريعة لايعرف إلا بالنقل، والاستنباط والنقل لا يستقيم إلا بان يأخذ كل طبقة عمن قبلها بالاتصال ولابد في الاستنباط أن يعرف مذاهب المتقدمين لئلا

يخرج من اقوالهم نبخرق الاجماع، و يبني عليها
ويستعين فى ذلك بمن سبقه، لان جميع الصناعات
كالصرف والنحو و الطب والشعر والحدادة والنجارة
والصباغة، لم يتيسر لأحد إلا بملازمة اهلها وغير
ذلك نادر بعيد لم يقع وان كان جائزًا فى العقل،
وإذا تعين الاعتماد على اقاويل السلف فلا بد
من أن يكون اقوالهم التى يعتمد عليها مروية
بالأسناد الصحيح أومدونة فى كتب مشهورة و
ان يكون مخدومة بأن يبين الراجح من محتملاتها
و تخصص عمومها فى بعض المواضع و تقييد مطلقها
فى بعض المواضع ويجمع المختلف فيها ويبين علل
احكامها وإلا لم يصح الاعتماد عليها وليس مذهب
فى هذه الأزمنة المتأخرة بهذه الصفة إلا هذه
المذاهب الأربعة، اللهم إلاّ مذهب الأمامية و
الزيدية وهم اهل البدعة لا يجوز الاعتماد على
اقاويلهم ـ

وثانيا قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اتبعوا سواد
الأعظم و لما اندرست مذاهب الحقة إلا هذه
الأربعة كان اتباعها اتباعًا للسواد الأعظم والخروج

عنها خروجًا عن السواد الأعظم۔
وثالثها أن الزمان لما طال و بعُد العهد وضيعت الأمانات لم يجز أن يعتمد على اقوال العلماء السوء من القضاة الجورة والمفتين التابعين لأهوائهم حتى ينسبوا ما يقولون إلى بعض من اشتهر من السلف بالصدق والديانة والأمانة اما صريحًا او دلالة وحفظ قوله ذلك ولا على قول من لا ندري هل جمع شروط الاجتهاد اولا فاذا رأينا العلماء المحققين فى حفظ مذاهب السلف عسى أن يصدقوا فى تخريجاتهم على اقوالهم واستنباطهم من الكتاب والسنة، واما إذا لم نر منهم فهيهات وهذا المعنى الذى اشار اليه عمر بن الخطاب رضى الله عنه حيث قال: يهدم الاسلام جدال المنافق بالكتاب، وابن مسعود حيث قال: من كان متبعًا فليتبع من مضى اهـ (عقد الجيد از صـ۵۳ تا صـ۵۸)

شاه صاحبؒ لیکی چه دا باب په مذاهب أربعه باندے دعمل کولو دتاکید او ددے په پریښودو اوله دینه دوتلو د سخت ممانعت په باره کښی دے - په دی پوهے شه (کوښه ملا! عقل دِ نصیب شه ته هم ځان پوهٔ کړه)

چه ددی مذهبونو په اختیارولو کښې ډیر لوئی مصلحت دے او ډیره لویه فائده ده، او لدینه په مخ گرځولو او پریښودو کښې ډیر غټ نقصان دے، او داخبره به موږ په دلائلو سره واضحه او ظاهره کړو،

اوّل داچه ټول امت په دے خبره اجماع کړیده چه دشریعت د پیژندلو په باره کښې به په سلفو باندی اعتماد کولے شی، لکه څرنګه چه تابعینو په صحابه کرامو، او تبع تابعینو په تابعینو باندے اعتماد کړے وو، دغه شان د هرے یوے طبقے عالمانو په مخکینو تیرو شوو عالمانو باندے اعتماد کړیدے، او عقل هم دی خبرے ته بنه وائی، ځکه چه شریعت د نقل او استنباط نه بغیر نه معلومیږی، او نقل په هیڅ بل یو صورت کښې درست او صحیح نشی پاتے کیدے، سیوا ددینه چه هره طبقه دمخکینئ طبقے نه په متصل سند سره واخلی، او په استنباط کښې دمتقدمینو د مذهب پیژندل ضروری دی، دپاره ددے چه نه ددوی د قولونو نه بهر اوځی، او نه د اجماع خلاف اوکړی، او دا هم ضروری دی، چه د متقدمینو د مذهب په بنیاد باندے دخپل مذهب بنیاد کیږدی. (شاه ولی الله رح

بل ځائے لیکلی چه امام ابوحنیفهؒ د خپل مذهب بنیاد د حضرت ابراهیم نخعیؒ په مذهب با ندے ایښو دے دے ۱۲ راقم الحروف) او د استنباط په مسئله کښ دِ د متقدمینو نه امداد ولغلی، ځکه چه هرڅومره فنون چه دی، لکه علم الصرف شو، یا نحو یا طب یا شعر یا اینګری (آهنګری) یا ترکانړی یا رنګسازی، دا هیڅ یا ترهغے نه دی ایزده کړی، ترڅو چه ے د دے فنونو د ماهرینو سره بنه کافی وخت نه وی اړولے او د هغه شاګردی ئے نوی کړی، او بغیر د شاګردئ نه د دې فنونو حاصیدل ناشونی خبره ده، دا سے چرے نه ده شوے اګرکه عقلاً دا ممکن دی، خو شوی نه دی (او کونړ ملا وائی چه هرچاله الله تعالی عقل ورکړید ے، ځان پوهه کولے شی او د تقلید ضرورت نشته، کونړ ملا په ایمان ئے وایه، چه ترڅو دِ نحومیر یا دا سے بله څه رساله نوه و یُیلے نومبتدا خبر دِ پیژندہ، چه مبتدا څه بلا ده او خبر څه شے دے؟ کونړ ملا دیده باید ع

گر نبیند بروز شب پره چشم
چشمه آفتاب راچه گناه ۱۲ راقم الحروف)

او کله چه دا خبره او منلے شوه، چه د سلفو په اقوالو به اعتماد کیږی، او س د سلفو هغه اقوال چه په هغے به اعتماد

کیږی. د هغې د پاره دا ضروري دي چه په صحیح سند سره روایت کړے شوی وی، یا په مشهورو کتابونو کښې لیکلے شوی وی، او دا هم ضروري دی چه په د غه نقلونو باندے کارشوے وی، دا سے چه په دے اقوالو کښې کوم قول راجح وی. د هغې وضاحت شوی وی، او په بعضو ځایونو کښې د دے د عموماتو تخصیص شوے وی، او په بعضے ځایونو کښې ئے مطلق مقید شوے وی. (الغرض چه د ترجیح الراجح او تقیید مطلق عمل پرے شوی وی) او دد ی دحکمونو علتونه ښوولے شوے وی. که دا سے نه وی، نو بیا په دی اقوالو اعتماد صحیح نه دے، او په دی اخیری زمانو کښې په دی صفت سره متصف سیوا د مذاهب اربعه نه بل یو مذهب نشته. هاں دامامیه او زیدیه مذهب کیدے شی، خو دوئ چونکه بد عتیان دی، نو د دوئ په اقوالو باندے اعتماد جائز نه دے. (شوکانی هم زیدی شیعه وے او کونړ ملا ئے په پښتو ستړګو په اقوالو باندے اعتماد کوی. تر دے چه شوکانی او وائی چه دا کتاب د شریعت دے نو دوئ ئے منی، او که او وائی چه نه دے نو دوئ هم وائی نه دے، لکه کونړ ملا په صنځ لیکلی، نو بس دیته وائی پړوند تقلید چه کونړ ملا ئے کوی)

دویم: دا چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه تاسو د سواد اعظم (لویٔ جماعت) تابعداری کوئ. او د دی مذاهب اربعه نه علاوه نور چه څومره رښتینی مذهبونه وو هغه ختم شوی دی، نو د دے مذاهب اربعه اتباع د سواد اعظم اتباع ده، او له دینه وتل (لکه کوم ملا او هغه ملګری چه وتلی دی) سواد اعظم نه وتل دی.

دریم: دا چه ډیره اوږده زمانه تیره شوه د خیر القرون نه خلق ډیر لرے وتل، او امانتونه ضائع شول، نو دا جائز نه دی، چه د ظالمانو قاضیانو او د هغه مفتیانو چه هغوئ د خپل خواهش تابع وی د هغوئ په قول دِ اعتماد اوکړے شی، دوئ خپل قولونه صراحتًا یا دلالةً په سلفو کښ هغه چا ته منسوب کوی، چه مشهور وی، د پاره د دے چه د دوئ دا قول په داسے چل محفوظ پاتے شی، په داسے خلقو اعتماد جائز نه دے، او د هغه چا په قول هم اعتماد جائز نه دے، د چا په باره کښ چه مونږ ته دا معلوم نوی، چه آیا په ده کښ د اجتهاد شرائط موجود وُو او کنه؟ او س که مونږ او وینو چه دا محققین علماء دی، او د سلفو په طریقه باندے روان دی نو دوئ که د سلفو د اقوالو نه تخریجات (مسئلے را ویستل) کوی، او د قرآن و سنت نه استنباط کوی، نو د دوئ تصدیق

کیدے شي، او که چرے داسے نه وی، نو بیا چرے هم ددوئ تصدیق نشي کیدے، او هم دی خبرے ته حضرت عمر رضی الله عنه په خپل دے قول کښې اشاره کړیده، او ویلی ئے دی چه د قرآن مجید سره دمنافق جھګړه د اسلام دیوالونه نړوی، او حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ویلی دی که څوک تقلید او اتباع کوی نو د سلفو تقلید او اتباع دِ کوی۔ اھ

محترمو لوستونکو تاسو د تقلید د فائدے په باره کښې دشاه صاحبؒ خبرے واوریدے، چه د دی مذاهب اربعه نه په وتلو کښې غټ نقصان دے، او د سواد اعظم نه وتل دی۔ او کونړملا وائی، چه نه په تقلید کښې نقصانات دی۔ راځئ چه اوس د کونړملا د ذکر کړو نقصانونو جاج واخلو، چه د کونړملا په دی خبرو کښې څومره صداقت دے؟

## د کونړملا اول نقصان

کونړملا وائی چه په تقلید سره عقل ضائع کیږی ص۲ کونړملا ماخولا تر او سه دالامعلومه په دنیا کښې دچا دعقلمندئ نه دی اوریدلی، البته ددی خلاف شته۔ څومره مقلدین دی، چه د دنیا د هغوئ علوموته محتاجه ده، د شاه ولی اللهؒ په نیز د څو د

صحاح ستہ مؤلفین هم مقلدین دی۔ د صحیح بخاری غټ شارحین اوکوره تهول مقلدین دی۔ مثلاً کرمانیؒ شافعی دے۔ ابن حجر عسقلانیؒ شافعی دے، دده فتح الباری نه دنیا محتاجه ده، ارشاد الساری والا شافعی دے، عمدة القاری والا حنفی دے، لامع الدراری والا حنفی دے، دغه شان د صحیح مسلم شارحین، لکه ابیؒ او نووی وغیره تهول مقلدین دی،

کونړ ملا دا فهرست ډیر اوږد دے، دلته د ذکر کولو نه دے، چه ستا دا دروغ خلقو ته الم نشرح شی۔ چه مقلدین زیات عقلمند دی، اوکه دا شتر بے مهاره غیر مقلدین؟ بهرحال کونړ ملا دا خبره هم ستا د بی عقلئ دلیل دے او هم د تاریخ نه د جهل۔

## د کونړ ملا دویم نقصان

" أفلا یتدبرون القرآن أم علی قلوب أقفالها "

کونړ ملا وائی، چه ولے دا حکم مونږ ته نه دے شوے صرف مجتهد ینو ته شوی ص۲۷ کونړ ملا که د مقلدینو دا دعوی دے، چه په قرآن صرف او صرف مجتهد غور او فکر کوی۔ نور خوك نه، نو بیا به تا و ئیلے

موږ ته خو وایو چه کونړ ملا را ته هم په دے "واتبع سبیل من اناب الیّ" او "فاسئلوا اهل الذکر" باندې غور اوکړه، خو ته ورته نه تیار یږے۔ خو د مقلدینو دسره دا دعوی نه ده، هاں دومره خبره ده، چه د اجتهاد او استنباط لیاقت په هرچا کښې نه وی، د صحابه کرامو تعداد څومره وُو۔ او په هغوئ کښې د مجتهدینو تعداد څومره وُو؟ هریو مجتهد نه وُو، سره د دے چه ټولو د پیغمبر علیه السلام نه اخذ کړیدے۔ کوره په جرحه و تعدیل یا علل حدیث کښې د هر محدث قول معتبر نه وی۔ بلکه څو کسان دی، چه د هغوئ قول خلق اخلی۔ اګر چه د محدثینو تعداد بے شماره دے۔ د غه شان په قرآنِ کریم پوهیدل او د استنباط اهل کیدل دواړه جدا جدا خبرے دی۔ خو کونړ ملا په دے خبره پوهیدو له عقل پکار دے۔ او په دی باره کښې ستاسو سُدم ته شین دے۔

## دکونړملادریم نقصان

کونړ ملا وائي په تقلید کښې د انسان

نه حق پټ پاتے کیږی ص ۴۷۔ کونړ ملا په ځان نو خلق قیاس کوی۔ پخپله نزے د شوکانی او ابن قیم په ړوند

تقلید کښې حق پټ پاتې دے، نو په نورو هم دا بدګماني کوي، حالانکه ؏

کار پاکان را قیاس از خود مګیر
ګرچه ماند در نوشتن شیر و شیر

کونړ ملا مخکښې لیکي "یوه مسئله په حق وي لکن مقلد به هغه نه مني، ځکه د ده امام پرے قول نه دے کړے بلکه هغه خبره به ده ته معلومه هم نوي ـ ص۲۲

کونړ ملا دا د هم دروغ اووے، او په ځان د قیاس اوکړو، ځکه چه که مسئله د صحیح صریح غیر معارض حدیث نه ثابته وي، نو هغے د نه منلو سوال نه پیدا کیږي، او نه د آیت "فاسئلوا أهل الذکر" نه صفا منکرے.

مخکښې لیکي "زما یو خاص ملګري چه امي دي دیو ملا نه تپوس اوکړو، چه په مانځه کښې اوږې پټول ضروري دي هغه اوویل جائز دي. ځکه عورت نه دے، زما ملګري ورته اوویل چه ولی حدیث د بخاری اومسلم او مشکاة (۱-۷۲) کښې خوراځي (ولیس علی عاتقه منه شيئ) نبي علیه السلام فرمائي چه یو کس د مونځ نکوي په داسے حال کښې چه اوږے ښکاره وي. نو ملا اوویل چه دا خو ما ته نه دي معلوم ص۲۳ ـ

## دکونړ ملا په یوځائے کښ څو دهوکے؛

دغیر مقلدینو اکثر دا عادت دے ، چه له ځانه د دروغو مثالونه جوړوی. کونړ ملا هم کیدیشی چه په دی خپل پدری میراث باندی ئے عمل کړے وی، څو ځایه ئے پکښ دهوکه کړیده،

(۱) اوّل داچه سائل ته ئے امیّ اووے ،او امیّ هغه ته وائی، چه په هیڅ نه پوهیږی، نه په لفظی ترجمه پوهیږی او نه لوستلے شی، که دا سړے واقعی امیّ وے، نو ده ته دبخاری او مسلم او بیا دمشکاة دصفحے ورته څنګه پته اولګیده؟

(۲) دویمه داچه تا لیکلی چه ملا ورته اووئیل چه جائز دی نو دهغه جواب دحدیث موافق دے ، نو تا پرے څنګه دا حاشیه اوخیژوله چه هغه اووے چه ماته دا ندی معلوم؟

(۳) دریم داچه تا اوستادی خاص ملګری په سوال کښ دهوکه کړیده ، ځکه چه "لیس علی عاتقه منه شیٔ" په هغه صورت کښ دے، چه کله صرف یو څادر وی، او هغه ئے له ځانه چاپیره کړے وی، دا د پړتوګ سره متعلق نه دے. ولے کونړ ملا ته که چرته په یو پړتوګ کښ مونځ کوے ، نو هغے یوه پینځه په اوږو باندے را اچوے؟ فتدبر

کونړ ملا که ته دا سے کوے نو دا خو به یوه عجیبه تماشه

وی۔ چہ کونړ ملا صرف پرتوګ اغوستے وی، قمیص ئے نہ وی اغوستے، مونږ کوی، او د پرتوګ څہ حصہ ئے پہ اوږو اچولی وی، شاباسے کونړ ملا، ع

ایں کار از تو آید ومرداں چنیں کنند

(۴) خلورمہ داچہ کونړ ملا پہ اوږو باندے د اچولو وجہ نہ دہ ذکر کړے، او د مشکاۃ ھم پہ دغہ صفحہ ھم پہ دغہ الفاظو "لیس علی عاتقہ منہ شیٔ" باندی یوولسم نمبر حاشیہ دہ، او پہ دیکښ ددی وجہ ذکر کړیدہ، چہ کہ څادر دځان نہ چاپیر کړی، او څہ حصہ ئے پہ اوږو نہ وی نو دځادر د خوځیدو ویرہ دہ، او د بربنډیدو ویرہ دہ، کورہ پہ دی حاشیہ کښ دی۔

"ھو عدم الاشتمال المذکور فانہ علی تقدیر عدمہ لا یأمن أن یکشف عورتہ" الخ

نو کونړ ملا پہ یو ځائے خلور دھوکے کړیدی، او داځکہ چہ د عقل کے دے۔ ع

ہم الزام انکو دیتے تھے قصور اپنا نکل آیا

کونړ ملا پہ تلبیس ابلیس کښ ښہ مړندے دے۔

## دکونړ ملا خلورم نقصان ع کونړ ملا دائے

په تقلید کښې انسان د نبي علیه السلام د اتباع نه محرومه شي صـ۴۳ ، کونړ ملا اوس په دې خپل دریم نمبر نقصان کښې داغلور دهوکې چه دې اوکړې، ولې دا په حدیث کښې راغلي چه همیشه دروغ وایه او دهوکې منه پېرې کوه، فاضعم ماشئت۔

کونړ ملا لیکي چه په تقلید کښې انسان د نبي علیه السلام د اتباع نه محروم شي ،..... ځکه چه مقلد په یو خبره عمل کوي صـ۴۳ ، د کونړ ملا په نیزد په یوه خبره عمل کول د اتباع نه خلاف ده۔ یو الله منل، یو دین منل، یو قرآن منل، ټولې یوه یوه خبره ده، گویا د کونړ ملا په نیزد په یوه خبره ټینګیدل د اتباع نه خلاف دي۔ بلکه دوه دوه خبرې منل او درې درې خبرې منل اتباع ده۔ باقي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د صحیح صریح او غیر معارض حدیث په مقابله کښې د چا خبره منل، نو دا خبره یو څو کرته ذکر شوه، چه دا جائز نه ده۔

## د کونړ ملا پنځم نقصان :

کونړ ملا لیکي چه د تقلید په وجه په لسمه یا شلمه حصه د دین عمل کیږي

محکه چه دیو امام سره خو ټول حق نه وی ص۲۶۰۔۲۶۱۔
کونړملا لیږ دا اووایه چه دا حکم د څنګه او لیږ ولوچه
په لسمه یا شلمه حصه د دین عمل کیږی؟ اوّل خو به
د دا وئیلی وی، چه د دین دومره حصے دی۔ حصے به د
متعین کړی وی، بیا به د په مثال سره په لسمه عمل
ښوولے وے، چه ګوره دا د دین لسمه حصه ده، دوئ
په دی لسمه حصه عمل کوی۔ او دا نهه حصے د دین پریږی
دا نهه حصے به دے بیان کړیوی۔ او دغه شان به د شل
حصے ښوولے وے، چه دا د دین شل حصے دی، مقلدین
په دی شلمه حصه عمل کوی، او دا نولس حصے پریږدی
دا نولس حصے به د متعین کړیوے، خو کونړملا هسے
رجمًا بالغیب کوی۔ او په مخه ځی۔
بله دا چه کونړملا وائی، "په لسمه یا شلمه حصه؟
نو په دے کښې هم شک شو، چه په لسمه حصه عمل کیږی
او که په شلمه؟ د شک وجه به د خوولے وے۔
بله دا چه په جرح وتعدیل کښې او علل حدیث کښې
د محدثینو تقلید کیږی۔ او هرڅوک ئے کوی۔ نو د دے
حساب به د هم ګوولے وے چه دا د دین په څومره حصه
عمل شو؟

کونړ ملا لیکي "مثلاً د امام ابو حنیفه سره نه ولـه ذخیره د حدیثو خو نه وه، ځکه هغه وخت کښې کتابونه نه وُو صـ۲۷ - کونړ ملا دکتابونو نه که صحاح سته مراد وي، نو دا واقعي چه نه وُو - او بیا د امام ابو حنیفهؒ څه خصوصیت دے، دد غه زمانے د هیچا سره دا نه وُو. خو دهرعالم خپلے خپلے جمع کړے ذخیري موجود وے کونړ ملا ستا دد ے عبارت نه دا انکار حدیث بدبوراځي ځکه چه ستا مشران رونړه منکرین حدیث هم دا وائي، چه حدیث په خیر القرون کښې نه وُو مدون شوے، دا روستنو خلقو له ځانه جوړ کړیدي - او صحاح سته والا چونکه اکثر عجمیان دي، نو ستا دا رونړه دیته عجمي سازش وائي - الغرض ستا دا خبره ستا په جهالت او دعقل په نقصان باندي دلالت کوي - ځکه چه د تدوین حدیث مسئلے ته تري نقصان رسي -

## دکونړ ملا شپږم نقصان :-

کونړ ملا وائي چه د تقلید په وجه سره په تحریف کښې واقع کیږي صـ۴۷ - کونړ ملا تحریف خو ستا سو پدري جائیداد دے، په دیکښې خو ستا سو سره

نشی شریک کید ے، نور پر بر ده، لږ دے خپلو تحریفونو ته دِ نظر اوکړه، ستا د تحریفونو څو نمونے مخکښں تیرے شوی دی، اولا راځی به۔

دملا علی قاری په عبارت کښں دِ تحریف حق ادا کړ یدے او په اوبږه دخادر راچو لو په مسئله کښں دِ معنوی تحریف کړے۔

کونړ ملا د مشکاة شریف دحدیث حواله ورکړ یده۔ یکی حدیث کښں راځی لکه مشکاة (۱- ۲۵۵) چه نبی علیه السلام فرمائی چه کله حیوان پردی فصل کښں فساد اوکړی، نو که دشپے ئے دا کار اوکړو نو دحیوان مالك په ذمه دار وی، او که دورځے ئے اوکړو، نو د فصل مالك به ذمه دار وی، احناف وائی چه داسی نه ده د شپی وی که دورځے ضمان نشته په مالك دحیوان باندے صکځ

کونړ ملا دعقل خو دکے دے، خو دستی کو نظو دجوړ هم نه لږی، یا دِ له قصده ځان ړوند کړ ید ے، تا دهذا ئے کومه مسئله چه راغستی ده۔ هم ورسره ورپسے دلیل د بخاری او مسلم وغیره موجود دے.

د هدائے پوره عبارت داسے دے،

"ولو انفلتت الدابة فأصابت مالا او آدمیًا

لیلا او نهارًا لا ضمان علی صاحبها لقوله علیه السلام
" جرح العجماء جبار ۱م هدایه اخیرین باب جنایة
البهیمة (۴ - ۶۱۱) طبع مجتبائی ۔

یعنی که څاروے او تښتنیدو ، او د چا مال ئے نقصان
کړو یائے څوك اوچقولو ، د ورځے وی او که د شپے نو د
څاروی په مالك باندے تاوان نشته ، او دلیل ئے د
پیغمبر علیه السلام دا حدیث دے ، د حضرت ابوهریره
رضی الله عنه نه روایت دے ، پیغمبر علیه السلام فرمائیلی ،
" العجماء جبار ، والبئر جبار والمعدن جبار
وفی الرکاز الخمس "
دا حدیث په صحیح بخاری کښ په ۱۴۹۹ نمبر باندے ، په
صحیح مسلم کښ په ۱۷۱۰ نمبر باندے ، ترمذی کښ
په ۶۴۲ نمبر باندے دے ، دغه شان دا حدیث په
نسائی ، ابن ماجه ، مسند احمد کښ هم دے . او امام محمدؒ
په خپل کتاب الآثار کښ هم ذکر کړیدے ۔
کو نو ملا کله چه څاروے او تښتی او نقصان اوکړی
نو مالك ته ئے نسبت نشی کیدے . هاں ! که د څاروی
مالك ورسره وی ۔ او څاروے نقصان اوکړی ، نو د دے
تفصیل په هدایه کښ وړاندے تیر شوے دے ۔

بلہ دا چہ د پیغمبر علیہ السلام دا فرمان " العجماء جبار"
مطلق دے۔ څہ قید پکښ نشتہ۔ او کہ دا سے او نشی نو
بیا بہ د مشکاۃ دد غہ حدیث چہ تا ذکر کړیدے، او د بخاری
او مسلم وغیرہ ددی حدیث پہ مینځکښ تعارض راشی،
کوږ ملا تا دلتہ د بخاری او مسلم حدیث پریښے دے
او احناف پہ دواړو حدیثونو عمل کوی۔ او د دواړو د
پارہ جدا جدا محمل لټوی۔ چہ تعارض رانشی۔
بلہ دا چہ تا چہ دا ترجمہ کړیدہ" او کہ دور څے نے او کړونو
د فصل خاوند بہ ذمہ داروی ص۲۴۲ دا د حدیث د کومو الفاظو
ترجمہ دہ؟ او د فصل د خاوند خو نقصان اوشو، نو ذمہ داری
بہ پرے چالہ راځی؟ کوږ ملا یرہ پہ ایمان نے او وایہ چہ
تحریف نہ کوے او کہ مقلدین؟ مړہ لږ خپل گریوان کښی
خو او گورہ، ع اتنا نہ بڑھا پاکیٔ دامن کی حکایت

## دکوږ ملا اووم نقصان

کوږ ملا لیکی چہ د تقلید پہ وجہ
سرے دحق پریښودونکی جوړیږی ص۲۶۵ کوږ ملا پہ دے
خپل شپږم نمبر نقصان کښی حدیث " العجماء جبارٌ" تا
پریښودو، کہ مونږ؟ ولے دا حدیث حق نہ دے۔ او
تا ترے سترگے پټے نہ کړے؟ کښی تا بہ اعتراض نہ وے

کړے ۔کونړ ملا د تقریر ترمذی د عبارت حواله ورکړیده.
او دا حواله دغه شان ټول لا مذهبه ذکر کوی ۔او د دغه
پوهیدو په وجه سره غلط اعتراض کوی ۔ عبارت دادے،

"فالحاصل أن مسئلة الخیار من مهمات المسائل
وخالف فیه ابو حنیفة الجمهور ........ وکذلك
قال شیخنا بترجیح مذهبه وقال . والحق والانصاف
أن الترجیح للشافعی فی هذه المسئلة ونحن مقلدون
یجب علینا تقلید امامنا ابی حنیفة" ص۵ ۔

د کونړ ملا دا خیال دے، چه د لته صاحب تقریر د نصوصو
په مقابله کښې تقلید له ترجیح ورکړیده، خود کونړ ملا
دا خیال غلط دے ، ځکه چه که کونړ ملا دا بحث د سره
کتلے وے ، یا څوك دا ټول بحث اوکوری، نو په دی باره
کښې به ورته حقیقت معلوم شی، چه د امام ابوحنیفه رح
استدلال هم د حدیث نه دے،

" المتبایعان بالخیار مالم یتفرقا "

او امام شافعی رح هم د دی حدیث نه استدلال کوی، اختلاف
په دیکښې دے، چه د تفرق نه مراد تفرق بالأقوال دے
لکه امام ابوحنیفه رح چه وائی ۔ اوکه تفرق بالابدان دے
لکه امام شافعی رح چه وائی ، نو د امام ابوحنیفه رح مذهب

څه په قیاس باندے مبنی نه دے، بلکه هم په دې حدیث باندې بناء دے۔ اختلاف د " ما لم یتفرقا " په معنی کښی دے، اوګوره د کونړ ملا د دې ذکرکړی عبارت نه مخکښی عبارت دے۔

" نحن لا نرتکب خلا فا الحدیث بل نخالف قیاس الشافعی وقیاسه لیس بحجة علینا "

بل په دې عبارت " وقال الحق والا نصاف الخ " د قال فاعل شاه ولی الله رح دے۔ نو د عبارت مطلب داشو، چه شاه صاحب اګرچه داوائی خو مونږه د شاه صاحب مقلدین نه یُو، د دامام ابوحنیفه مقلدین یو ، او دا عبارت بالکل صحیح او د تیرشوی پوره بحث سره موافق دے۔ والله هوالموفق

کونړملا د لته د حق نه اعراض نشته بلکه دامسئله په حدیث باندې بناء ده۔ تاله پکار دی چه د تعصب اوعداوت پټئ د سترګو نه پرا نیزے، او دا بحث مکمل اوګورے او ورسره د امام طحاوی شرح معانی الاثار اوګورے، نو سترګے به دِ رڼړاشی۔

## دکونړملا اتم نقصان

کونړ ملا وائی، چه د تقلید په وجه سړی په تنګئ کښی واقع کیږی، د...... دین کښی د یر خصتونه دی لکن د تقلید د هغه فراخئ مقلد محرومه شی، مثلاً جمع

بین الصلاتین شته بعضی مقلدین ترے محروم دی۔

جواب :- کوټملا که ستا غرض د عرفات او مزدلفه په موقع جمع وی، نو هغه مونږ هم کوو۔ او که ستا غرض جمع بین الصلاتین من غیر خوف ولا مطر وی، لکه دا بن عباس رضی الله عنهما په روایت کښې چه دی، نو ددی حدیث په باره کښې امام ترمذیؒ د کتاب العلل په سر کښې لیکی، چه په دی حدیث باندی د هیچا عمل نشته، او وائی ما ددی علت ذکر کړیدے۔

(۲) کوټملا لیکی، دا رنګه د طواف مونځ هر وخت کیږی بعضی مقلدین تری محروم دی۔ ص۲۶

جواب :- کوټملا د غلط بیانۍ نه کار مه اخله۔ مقلدین هم د طواف مونځ کوی، خو په اوقات مکروهه کښې نه۔ عجیبه ده چه په مکروهه اوقاتو کښې د مانځه نه د منع صحیح احادیث وارد دی۔ خو غیر مقلدین پرے غوږ هم نه کروی۔

مثلاً

(۱) عن ابن عباس قال شهد عندی رجال مرضیون وأرضاهم عندی عمر ان النبی صلی الله علیه وسلم نهی عن الصلاة بعد الصبح حتی تشرق الشمس وبعد العصر حتی تغرب اھ صحیح بخاری (۱-۸۲) باب الصلاة بعد الفجر حتی ترتفع الشمس

(۲) عن ابن عمر قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا تحروا بصلاتکم طلوع الشمس ولا غروبها قال وحدثنی ابن عمر قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم إذا طلع حاجب الشمس فأخروا الصلاة حتی ترتفع وإذا غاب حاجب الشمس فأخروا الصلاة حتی تغیب اھ بخاری (۱-۸۲)

(۳) عن أبی هریرة أن رسول الله صلی الله علیه وسلم نهی عن بیعتین وعن لبستین وعن صلاتین نهی عن الصلاة بعد الفجر حتی تطلع الشمس وبعد العصر حتی تغرب الشمس الخ بخاری (۱-۸۲)

(۴) عن ابن عمر ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لا یتحری أحدکم فیصلی عند طلوع الشمس ولا عند غروبها اھ بخاری (۱-۸۲)

(۵) ابوسعید الخدری یقول سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول لا صلاة بعد الصبح حتی ترتفع الشمس ولا صلاة بعد العصر حتی تغیب الشمس اھ بخاری (۱-۸۲)

په دی حدیثونو کښې د نمر د راختو او د نمر د پریوتو په وخت کښې او د سحر د مانځهٔ نه روستو د نمر د راختو پورې او د مازیګر د مانځهٔ نه روستو د نمر د پریوتو پورې د

مانځه نه منع شویده، له دے وجے نه مونږ وایو که څوک په دی اوقاتو کښې د طواف نه فارغ شی نو د طواف مونځ دِ په دی وخت کښې نه کوی، بلکه څرنګه چه په دی حدیث کښې دی "فأخروا الصلاة"، مونځ دروستو اوکړی، نو کونړ ملا دا په حدیث باندی عمل دے محرومه کیدل نه دی۔ خو چونکه دا حدیث ستادرائے نه خلاف دی ځکه هډو ورته ګورے هم نه۔

(۳) کونړ ملا لیکی" دا رنګه وتر په یو رکعت شته، دارنګه پنځه او اوه او نهه هم شته۔ او بعضی مقلدین تری محروم دی صـ۷۶

جواب :۔ کونړ ملا په دیکښې ستا خپل عمل څه دے؟ ګوره تاسو د حضرت عائشے رضی الله عنها د حدیث چه په هغے کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د تهجدو د مانځه ذکر دے۔

"ما کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یزید فی رمضان ولا فی غیره علی احدی عشرة رکعة یصلی اربعًا فلا تسئل عن حسنهن و طولهن ثم یصلی اربعًا فلا تسأل عن حسنهن وطولهن ثم یصلی ثلاثا الخ بخاری (۱-۱۵۴)

او ناسو ترے اته رکعته تراویح مراداخلئ۔ داحدیث امام بخاریؒ دتهجدو په ابوابوکښ ذکر کړیدے۔ اوتاسو وائے چه نه په رمضان کښ ترے تراویح مراد دی۔ دا بحث په خپل ځائے دے چه ستاسو استدلال د دینه صحیح دے او کنه؟ اوس ته خپل نقصان ته اوګوره، ته وائے چه وتر یو رکعت شته نو بیا خو پکار دی چه تراویح دولس رکعته شي، ته وائے چه وتر پنځه هم شته۔ نو دیوولسو نه چه پنځه لرے کړے نو شپږ پاتے شو۔ نو پکار دی چه تاسو کله تراویح شپږ رکعته هم اوکړئ۔ ته وائے چه وتر اوه رکعته شته، نو دیوولسو نه چه اوه لرے کړے، نو څلور رکعته پاتے شو، نو پکار دی چه تاسو څلور رکعته تراویح هم اوکړئ ۔ ته وائے چه وتر نهه رکعته هم شته، نو دیوولسو نه چه نهه لرے شي، نو دوه پاتے شو، نو پکار دی چه تاسو دوه رکعته تراویح هم اوکړئ، یاخو ددی حدیث نه استدلال مه کوئ، چه تراویح ترے مراد دی، او یا بیا کله دولس رکعته کله شپږ رکعته کله څلور رکعته او کله دوه کوئ۔ هله به مو په دی حدیث باندی عمل صحیح شي، والا نه، بل په دی حدیث کښ څلور څلور رکعته په یو دکولو ذکر

دے۔ او تا سو هم تراویح دوه دوه رکعته کوئ، نو عمل مو سراسر د دې حدیث خلاف دے، او په حدیث باندې د عمل نه محرومه یئ۔

(۳) کونړ ملا لیکي " وتر په سورلۍ جائز دي، بعضي مقلدین وائي چه ندي جائز ص۲۶"

کونړ ملا مسئله اختلافي ده، دواړه طرفته دلائل شته۔ موږ په دیکښې سختي نه کوؤ، کونړ ملا دا ږ ولې او نه ویل چه د غیر مقلدینو په نیز د سفر شرعي مقدار درې میله دے۔ او س که څوك ( ټکه په کلو او بانډو کښې) د درې میله په فاصله او دس ماتی له لاړ شي، نو هم به روژه خوري، یعني د ځان سره به په لوښي کښې خوراك اوړي۔ او هم د قصر کوي۔ کوره د غیر مقلدینو اختر دے، او مقلدین ترے محرومه دي۔

## د کونړ ملا نهم نقصان

کونړ ملا لیکي " د تقلید په وجه سړی د تحقیق نه محرومه کیږي. ص۲۶

کونړ ملا! ماخو تر اوسه ستاڅه تحقیق او نه لیده و . . د ځه ابن قیم مدرے قاضي شوکان مدرے چیغې وهې . کله د ابن قیم په لمن پورے ځاګلے او کله د شوکاني په ښځې پورے، که دا تحقیق وي . نو دا به تا

ته مبارک شی۔ کونړ ملا لږ تاریخ او کوره چه د مقلدینو د محققینو اندازه در ته او لګی۔ صرف یو حافظ ابن حجر عسقلانی چه شافعی المذهب دے۔ ته او کوره، چه ستاشو ګانے تړے هم خوشه چینی کوی، او امیر صنعانی دِ هم۔ بلکه ټول خلق۔ که څه عقل لرے نو دا یو مثال در لره کافی دے۔ ځکه چه د پښتو متل دے "عاقل له اشاره او کم عقل له کوتک"

## دکونړ ملا لسم نقصان

کونړ ملا لیکی، چه د تقلید په وجه سړی په بدعت کښی واقع کیږی ځکه چه ډیر خلق تقلید فرض او واجب ګڼړی ص۶ کونړ ملا که تقلید ته واجب وئیل بدعت دے، نو دا بدعت ستاسو شیخ الکل مولوی نذیرحسین صاحب هم کړیدے، هغه په معیار الحق کښی لیکی "قسم اوّل واجب ہے اور وہ مطلق تقلید ہے۔ ص۵"

ع این گناهیست که در شهر شما نیز کنند

او شاه ولی الله رح ورته هم واجب وائی، نو بیا تاله د شاه صاحب رح اقوال نقل کول جائز نه دی، ځکه چه ستا د قول مطابق هغه هم په بدعت کښی واقع شو، والأمر لیس کذلك،

کونړ ملا مخکښی لیکی "تقلید په څلورمه صدئ کښی پیدا

کونړملا تا خو د ایوب سختیانیؒ په باره کښې مخکښې وئیلی چه هغه د مقلدینو نه دا ګڼلے کوی. او حال دا دے چه ایوب سختیانیؒ د دویمې صدئ سړے دے. نو ستا د وینا مطابق خو په دویمه صدئ کښې تقلید نه وُو، نو ګله څنګه اوشوه. هسے کونړ ملا د چرته پیشن ګوئ خونه وه، چه د دویمې صدئ سړے د څلورمے صدئ د خلقو نه ګله اوکړی، فتفکرو تدبر.

بل د شاه صاحبؒ حواله تیره شوه چه تقلید د صحابه کرامو په زمانه کښې هم وُو.

## د کونړملا یوولسم نقصان:-

کونړملا لیکی "که تاسو فکر اوکړئ، نو احادیث نبوی د فقه د استعمار لاندې راغلی دی. کوم حدیث چه د فقهی سره سمون خوری هغه منی الخ ص۷۶. کونړملا په فقه کښې دادله اربعه نه ثابت احکام ذکروی، او فقه دادله اربعه د شرحے حیثیت لری، ځان له څه مستقل حیثیت ئے نه دے، چه ته ئے د حدیث مقابل ګڼړی، دا ستا غلط فهمی یا کج فهمی ده، نور څه نه دی، هاں اوس مخکښې تیر شو چه تاوئیلی چه د طواف مونځ په هر وخت کښې جائز دے ګویا په اوقات مکروهه کښې هم جائز دے. او د بخاری

د غه خلور حديثونه چه سنا د رائ موافق نه و، نو هلوه
د ورته اوهم نه کاته - ثلہ
این کار از تو آید و مردان چنین کنند

## دکونړ ملا دولسم نقصان :-

کونړ ملا ليکی " د تقليد په وجه تعصب او ضد په خلقو کښی عام شی ے" کونړ ملا د بخاری دغه خلور حديثونه چه په اوقات مکروهه کښی د مانځه نه پکښی ممانعت دے، د تعصب په وجه مونږ پريښودو او که نه؟ ديده بايد

کونړ ملا مخکښی ليکی " ديو غير مقلد وژل د سلو کافرو د وژلو نه بهتر دی ے" - کونړ ملا خبره داده چه غير مقلدين په خلقو کښی اختلاف او انتشار پيدا کوی، تر دی چه رفع اليدين نه کولو والا ته کافر وائی، نو د شر او فساد خورولو والا په باره کښی په حديث شريف کښی راځی،

" عن عرفجة قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول أنه سيكون هنات وهنات فمن أراد أن يفرق أمر هذه الأمة وهي جميع فاضربوه

بالسيف كائنا من كان، رواه مسلم۔

وعنه قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم من أتاكم وأمركم جميع على رجل واحد يريد ان يشق عصاكم او يفرق جماعتكم فاقتلوه، رواه مسلم اه مشكوٰة شريف كتاب الأمارة (ص۳۲۰)

د دى علاقے ټول خلق د امام ابوحنيفهؒ په تقليد باندى جمع وُو۔ غير مقلدين راغله او په دوئ كښې ئے انتشار پيدا كړو، نو كونړ ملا كه دا سے څوك تا سوره كوى، نو دا خو په حديث باندى عمل شو۔ نه په حديث باندى په عمل ولے خفه كيږے؟ البته تر اوسه دا سے شوى نده۔ او دا سے غازيان لا پيدا شوى نه دى۔ كيد يشي چه طالبان په كونړ كښې دا غزا اوكړى۔ والله هو الموفق۔

## دكونړ ملا ديار لسم نقصان:۔

كونړ ملا ليكى، د تقليد په وجه په امت كښې تفرقے او دلے جوړے شوے ځكه كونړ ملا، كه دلے د تقليد په وجه سره جوړيد ے. نو بيا په غير مقلد ينو كښې خو پكار

وه چه صرف یوه ډله وے او بس- خو په غیرمقلدینو کنی څومره ډلی دی- (۱) څوک ځان ته اهلحدیث وائی- (۲) څوک ځان ته سلفی وائی- (۳) څوک ځان ته محمدی وائی ( دا نسبت محمدجوناګړهی ته دے)
(۴) څوک ځان ته غرباء اهلحدیث وائی، (۵) څوک ځان ته حزبُ الله وائی (۶) څوک ځان ته جماعة غیر المسلمین وائی ( ددی ډلے مسعود صاحب مخکښی په غرباء اهلحدیث کښی وُو، بیا ورله امارت خوند ورکړو، ځان له ئے نوی ډله جماعة غیرالمسلمین جوړه کړه، او ددی امیر جوړ شو) اوس جماعة غیرالمسلمین هم دوه ډلے شو، ابو جابر دامانوی پکښی ځانله خپل باتینګړ خرخوی- او دا ټول یو بل ته ګمراه وائی، اود وژلو قابل ئے ګڼړی- دغرباء اهلحدیث د امام بیعت چه کوم غیر مقلدینو نه دے کړے، دغرباو په نیزد دهغوئی نکاح وغیره صحیح نه دے- او ټول ګویا ثابت النسب نه شو- نوکونړ ملا لړ دخپل کورخبر خو به دِ اغستے وے۔
کونړ ملا لیکی- یو بدعتی ملا امام بخاری ته مبتدع ویلو صححے- کونړ ملا امام بخاری ته مبتدع وئیل

په اسمان تُسکل دی، او څوک چه په اسمان توکی، نو هم د هغه په مخ به راپرېوزی، که یو سړے بکواس اوکړی نو هغه ټولو ته منسوب کول سراسر بے انصافی ده۔

## دکونړملا څوارلسم نقصان :-

کونړملا لیکی" تقلید دانسان بصیرت او عقلمندی ختموی، ص۸۔ کونړ ملا داستا سو وظیفه ده۔ دمقلدینو دبصیرت او عقلمندئ دا حال دے، چه ددوئ په بعضے کتابونو چه ترڅو دے مازغه نه وی شنه شوی۔ لکه شرح جامی دعبدالرحمٰن جامی حنفی، کافیه دابن حاجب مالکی۔ سلم العلوم او مسلم الثبوت دمحب الله بهاری حنفی، شرح مواقف دمیر سید شریف حنفی، اوشرح مقاصد دتفتازانی شافعی، او تحریر دابن همام حنفی، داسے نور ډیرشے کتابونه دی۔ نو پوهیږی پرے هم نه، هغه به کوم خروی چه دی کسانوته بے عقله او بے بصیرته اووائی۔ سیوا دهغه کس نه چه هغه ځنبله د بصیرت او عقل نه عاری وی۔

کونړملا وائی تقلید علم ندی، بلکه بے علمی ده ص۸۔ دا هم دکونړ ملا بے علمی او بے بصیرتی ده، ابن الصلاح

شافعي دے، ابن کثیر شافعي دے، سیوطی شافعي دے، زین الدین عراقي شافعي دے، ابن حجر شافعي دے، سخاوي شافعي دے، ابن عبد السلام شافعي دے، ابن تیمیه حنبلي دے۔ د دوئ نیکه چه د منتقی الأخبار مؤلف دے حنبلي دے، ابن قدامه حنبلي دے، ابن رجب حنبلي دے، ابن عبد الهادي حنبلي دے، یحیٰ بن معین امام الجرح والتعدیل حنفي دے، یحیٰ بن سعید القطان حنفي دے، عبد الله بن مبارک حنفي دے، ابن همام حنفي دے۔ دا سے بے شماره کسان دي، چه په ذکرکولو به ئے څوڅو جلده کتاب جوړ شي۔ دا ټول مقلدین دي، دوئ ته بے علمه، صرف جاهل او بے علمه سړے وئیلے شي، دا انسان بچے ورته بے علمه نشي وئیلے۔

## د کونړ ملا پنځلسم نقصان:۔

کونړ ملا لیکي۔ تقلید سړي کساني کوي او سستوي ئے ص۴۸ کونړ ملا موږ خوچرته په تقلید کښ دا ندي لیدلي، حال که چرته ته ئے سست کړے ئے نو دا ستا ذاتي تجربه وي۔ دا ضروري نه ده چه په نورو هم دا سے

اوشی۔ ع؎ کار پاکان را قیاس از خود مگیر

## دکوڼر ملا پنځم قسم عقلی دلیلونه ص۸

کوڼر ملا، تا خو په صفحه ۴۲ لیکلی چه دلائل دشرع دوه دی، کتاب الله او سنت نبوی۔ اوس عقلی خبرو ته دے دلیل په کوم دلیل سره اووے؟ یا داستا خپله خوښه ده، چه ته څه ته دلیل اووائے هغه به دلیل وی۔

کوڼر ملا وائی صحیح عقل هم یو عظیم دلیل دے ص۸ کوڼر ملا دا قول دِ هم د ص۴۲ د تصریح نه خلاف دے۔ کوڼر ملا په خبرو کښې دِ تضاد دے، او دا حقیقت دے، چه صحیح عقل د الله پاک لوئ نعمت دے، چه چا له ئے ورکړی، نو هغه بیا ستا په شان متضاد خبرے نکوی۔ او د "یتخبطه الشیطان من المس" کیفیت پرے نه طاری کیږی۔

## دکوڼر ملا اول تپوس ؎۔

کوڼر ملا وائی چه ته د امام نوولے خبرے منی کہ بعضے ئ

ص۷۸ - کونړ ملا مونږ هغه خبر ے منو چه دادله اربعه نه په یو دلیل سره ثابتے وی - باقی د امام صاحبؒ داقول،

" لا یحل لأحد أن یاخذ بقولنا مالم یعلم من أین أخذ ناه "، ص۷۹ -

نوکونړ ملا دا دمجتهد دپاره کید یشی - دمقلد دپاره نه - اوکه دا سے شی، نو بیا به تا ته هم کرانه شی - مخکښی د تدریب الراوی په حواله سره تیر شو، چه کله معلل نه په خپله هم دعلت پته نه لګی - او څه دلیل پر ے نشی قائم ولے او بیا هم وائی چه داحدایث معلول دے، لکه صیرفی چه یو سکے نه کوټه اووائی - او څه دلیل پر ے نشی پیش کولے، نوکونړ ملا که دا سے شی - نو ته به دلته دغه علت څه او پیژنے ؟ چه د سره په ظاهر کښی وجود نه لری. بیا پکار ده چه د دی معلل محدث داقول وانه غستے شی - ځکه چه علت معلوم ولو ے مشکل دی - مونږ صرف د دلیل تابع یو د شخصیت نه -

# دکونړ ملا دویم تپوس :-

" المجتهد یخطئ ویصیب "، کونړ ملا وائی، په دے سره ستا تهول دین په شک کښی شو، ص۷۹ کونړ ملا تا ته دبخاری

هغه حدیث چه مخکښې په حواله سره تیر شو، چه مجتهد که غلطي اوکړي نو په هغې ورته هم ثواب میلا ویږي. که دا سے وے، لکه کوم ملا چه وائي. نو بیا به د مجتهد ټول دین په شک کښې وُو، خو دکوم ملا پشان یو عقلمند هم دا سے د عقل خبره نه ده کړي، هغه حدیث دا دے۔

"عن عمرو بن العاص أنه سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: إذا حكم الحاكم فاجتهد فأصاب فله اجران وإن حكم فأخطأ فله اجر". رواه البخاري ومسلم وابوداؤد والنسائي وابن ماجة واحمد. كذا في نصب الراية على هامش الهداية (۴-۱۳۵) طبع جديد

دلته پیغمبر علیه السلام دا سے نه دی فرمائیلي چه د خطا په صورت کښې به ئے ټول دین په شک کښې شي۔

دغه شان د حضرت معاذ رضی الله عنه حدیث،

"عن معاذ أن رسول الله صلى الله عليه وسلم لما بعثه إلى اليمن، قال له كيف تقضي إذا عرض لك قضاء؟ قال اقضي بكتاب الله قال فان لم تجد في كتاب الله؟ قال فبسنة رسول الله، قال فإن لم تجد في سنة رسول الله ولا في كتاب الله؟ قال اجتهد رأيي ولا آلو، فضرب رسول الله صلى الله عليه وسلم

صدره وقال الحمد لله الذی وفق رسول رسول الله لما یرضی رسوله اه رواه ابوداؤد والترمذی۔

نصب الرایه طبع جدید (۴-۱۳۵)

کونړملا، اوګوره دلته حضرت معاذ رضی الله عنه پیغمبر علیه السلام ته وائی، چه څه به اجتهاد کوم۔ او مجتهد په باره کښې "یخطئ ویصیب"، ظاهره خبره ده، خو بیا ورته هم پیغمبر علیه السلام دا او نه فرمائیل چه د اجتهاد په صورت کښې خوستا ټول دین په شک کښې شو۔ بلکه د خوشحالئ اظهار ئې پرے اوکړو، کونړ ملا ته دا رجما بالغیب ولے کوے؟ او د پیغمبر علیه السلام نه زیات هوښیار ولے جوړیږې؟ لږ خپل عاقبت ته فکر اوکړه۔ پیغمبر علیه السلام ورته دا هم اونه فرمائیل چه څوک ستا په اجتهاد عمل کوی، دهغه ټول دین په شک کښې شو۔

دکونړملا ددی تقریر نه معلومیږی، چه د اجتهاد منکر دے۔ او اجتهاد د حضرت معاذ رضی الله عنه ددی حدیث نه ثابت دے، نو دا د حدیث نه انکار شو۔

## دکونړملادریم تپوس:-

کونړملا وائی، چه بغیر د تقلید نه په دین باندی عمل

کیدیشی ص۸۰۔ او موږ وایو چه هرګز نشي کیدے۔
په څو وجوهو سره،

(۱) د قرآن کریم د قراءتو نو په باره کښې د قاریانو تقلید کول، ځکه چه موږ براه راست د پیغمبر علیه السلام نه خو قرآن کریم نه دے اوریدلے

(۲) د قرآن کریم په معنی باندې پوهیدل، په دې باره کښې د مفسرینو تقلید کول۔

(۳) قرآن کریم د الله تعالیٰ آخری کتاب ګڼل۔ او په دیکښې د سلفو تقلید کول، ځکه چه موږ د نزول په وخت کښې نه وو۔

(۴) د حدیثو په باره کښې د محدثینو تقلید کول، چه دا واقعي د پیغمبر علیه السلام حدیث دے۔

(۵) د محدثینو تقلید کول د حدیث د صحیح کیدو یا ضعیف کیدو په باره کښې ځکه چه موږ نه د صحیح او ضعیف تر منځه پته نه لګی۔ تر څو چه مونږ د محدثینو اقوال نه وی کتلي۔ او غیر مقلدین خو د البانی په پښتو سترګو تقلید کوی۔

(۶) د آیت یا حدیث منسوخ کیدو یا نه منسوخ کیدو په باره کښې د مفسرینو او محدثینو تقلید کول۔

(۷) د راوی د ثقه کیدو یا ضعیف کیدو په باره کښ د محد ثینو تقلید کول۔

(۸) په علم الصرف کښ د علم الصرف د عالمانو تقلید ل کول۔

(۹) په علم النحو کښ د نحویے د عالمانو تقلید کول، تردې چه د رضی شیعه تقلید پکښ کیږی۔

(۱۰) د فصاحت او بلاغت په باره کښ د دی فن د ماهرینو تقلید کول۔

غرض دا چه هغه کوم ځائے دے، چه کونړ ملا ته پکښ د بل محتاج نه ئے او د هغه تقلید نه کوے، نو بغیر د تقلید نه په دین نه پوهه راتلے شی، او نه پرے عمل کیدے شی۔ نو کونړ ملا لږ خپل حال اوګوره، چه ترڅو د ابن قیم او شوکانی امداد او تعاون نه وی حاصل کړے۔ او د دوی همسا د په لاس کښ نه وی اغستے۔ یو قدم هم نشے تلے، هغه متل دے "کارغه غول خوری او مښوکه څنډی"

کونړ ملا هم تقلید کوی او هم چغے وهی چه تقلید ته ضرورت نشته "لم تقولون مالا تفعلون"، کونړ ملا که نه په دی خپله وعده کښ واقعی رښتینے وی۔ نو تا به ځان له اصول حدیث او د صرف او نحو قواعد پخپله جوړ کړے وے۔ د بل چا خوشه چینی به د نه کولے، نحو

دا کفر ہم صادق نۂ زنار را رسوا مکن

## دکونړ ملا څلورم تپوس ؛-

کونړ ملا اوتے بوتے وائی - لیکی "حدیث و قرآن ستا امام صاحب ته ضرورت لری، او که ستا دامام خبرے قرآن وحدیث ته محتاجه دی صفحه ۸، کونړ ملا د پاګلا نو خبری مه کوه، هر مسلمان کتاب وسنت ته محتاج دے، کتاب الله او سنت نبوی د چا محتاج نه دی، څه حیران یم چه دا سره قسم بیکاره خبرے ستا خولے له څنګه راځی، او که چا د کتاب الله تفسیر یا د حدیثو شرحه لیکلی، نو ولے کونړ ملا ستا په خیال کتاب الله او سنت نبوی دی مفسرینو او شارحینو ته محتاج وُو؟ چه نه پرے خپله د بے وقوفئ دا تبصره لیکی، چه امام صاحب نه تفسیر لیکلے او نه د حدیث شرحه مونږ امام ابوحنیفه مجتهد منو، او د مجتهد د پاره د تفسیر او د حدیثو د شرحے لیکلو شرط ستا نه مخکښ بل هیڅ یو عقلمند نه دے لیکلے۔

## دکونړ ملا پنځم تپوس ؛-

کونړ ملا دا پنځم سوال دِهم د څلورم سوال پشان خرافات

دی، کونړ ملا، دلائل شرعیه محتاج الیه وی۔ محتاج نه وی۔
بل کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، تا ته دا پته هم نشته چه
تقلید په کوم مسئلو کښې کیږی، که چرې دا در ته معلوم
وے، نو تا به چرې هم دا سے پوچ خبرے نه کولے۔
ع سخن شناس نهٔ دلبرا خطا اینجاست

## کونړ ملا شپږم تېوس :۔

کونړ ملا وائی "کتابونه دفقه حنفی ټول صحیح دی۔ اوکه
ټول غلط ص۸۱ ۔ کونړ ملا دا رنګه سوال ستا مشران رونړه
منکرین حدیث هم کوی، ستا سو ددواړو منشاء یوه ده، کونړ ملا
ټول احادیث هم صحیح نه دی۔ ضعیف، منکر او شاذ پکښې
هم شته بلکه موضوع پکښې هم شته، او صحیح او حسن پکښې
هم شته۔ ګوره صحیح بخاری دویم جلد کتاب التفسیر کښې
"باب قول الله تعالیٰ نساء کم حرث لکم فأتوا حرثکم أنی
شئتم" لاندې امام بخاری د حضرت عبد الله بن عمر
رضی الله عنهما حدیث نقل کړیدے، چه د دینه د ښځے
سره وطی فی الدبر یعنی د شا د طرفه کول روا لے دے۔ او
څه وایم چه کونړ ملا ځما دا خیال دے، چه تا به هم د بخاری
په دی حدیث عمل نوی کړے۔ د غه شان د تفسیر په

کتابونو کښې هم داسې ډیرې کمزورې خبرې شته. په خپله د غیرمقلد وحیدالزمان په کتاب " نزل الأبرار من فقه النبي المختار " کښې بیشماره کمزورې او بې دلیله مسئلې شته - سره ددې چه ستا وحیدالزمان ورته د پیغمبر علیه السلام فقه وائي. العیاذ بالله

نوکونړ ملا کمزورې خبرې په حدیثو کښې هم شته، تفسیرونو کښې هم او فقې په کتابونو کښې هم. خو ستا خوندې یو عقلمند هم په ټولو باندې خط تنسیخ نه دې راښکلې. بلکه په "خذ ما صفا ودع ما کدر" باندې عمل کوي.

## دکونړ ملا اووم تپوس :

دا تپوس هم دکونړ ملا د جهالت کرشمه ده، ځکه چه دې غریب نه دا پته نشته، چه تقلید په کومو مسئلو کښې کیږي؟ که ورته معلوم وې، نو چرې به ئې هم داند وې چه " ته په تقلید کښې په ټول دین عمل کوې او که په بعضې دین الخ ص۸۲ - کونړ ملا اول حقیقت معلوم کړه، بیا تپوس نه کوه.

دکونړ ملا د جهل انتهاء ته اوګوره، لیکي " چه دا امام صاحب فقه خو د وه حصې صاحبینو ورانه کړیده، ځکه په اکثرو

مسئلو کښې دوئ د امام نه خلاف کړې دی صـ۸۲

د صحابه کرامو په خپله کښې په مسئلو کښې اختلاف شته ـ خو د کونړ ملا غونډے یو هم د عقل نه خلاص دا خبره نه ده کړے، چه فلانکی صحابی د فلانکی صحابی فقه ورانه کړیده، د مجتهدینو په مینځکښې اختلاف شته، په ډیرو مسئلو کښې، خو د کونړ ملا غونډے یو عقلمند هم دا نه دی وئیلی، چه فلانکی مجتهد د فلانکی مجتهد فقه ورانه کړیده. د مفسرینو د آیات په تفسیر او په اعراب کښې اختلاف شته، خو هیچا هم دا نه دی وئیلی، چه فلانکی مفسر د فلانکی مفسر تفسیر وران کړیدے ـ کونړ ملا عقل دِ نصیب شه ـ خبرے ته لږ سوچ کوه ـ هر ځائے کښې خپل غریبۍ خوئې مه ښکاره کوه ـ ګوره د امام مسلمؒ د امام بخاریؒ یا امام علی بن المدینیؒ سره په معنعن حدیث کښې څومره اختلاف دے، خو بیا ہے شرمه هم دا نه دی وئیلی چه امام مسلمؒ د امام بخاریؒ یا ابن المدینی حدیث خراب کړه ـ

کونړ ملا لیکی چه مقلدین د بعضے مسئلو نه محروم دی، صـ۸۳ ـ انشاء الله تعالیٰ د دی جواب به په خپل ځائے باندی راشی ـ

.........................

# دکونړ ملا اتم تپوس ۔

کونړ ملا لیکی" ته تقلید په عالم باندی فرض کوی اوکه امی باندی اوکه په دواړو باندی ص۸۳ ۔ کونړ ملا موښ وایو چه تقلید په امی باندی لازم دے، په عالم هم لازم دے. اوکونړ ملاکه ته وائے چه داد" إن کنتم لا تعلمون" نه خلاف دے ۔ نو کونړ ملا څه وایم چه په ایمان ئے وایه ته دعلل حدیث په څه شد بد باندی آگاه ئے، ولے تاته تمام راویان او په هغوی جرح وتعدیل لفظ په لفظ معلوم دی اویاد دی ۔ او په دی جرح و تعدیل کښ دهیچا محتاج نه ئے ۔ ولے ته صرف، نحوے او بیان وغیره په تمامو تفصیلاتو باندی آگاه ئے او چا ته محتاج نه ئے ۔ ولے ته دمنسوخ آیاتونو او احادیثو او دناسخ آیاتونو اواحادیثو نه په تفصیل سره آگاه ئے ۔ او داهرڅه دِ ځپله معلوم کړیدی ۔ چا ته محتاج نه ئے ؟ که داسے وی، نو واقعی بیا تقلید نشته اوکه چرے داسے نه وی او دغسے ده هم، نو د" إن کنتم لا تعلمون" نه ته هم بهرنه ئے ۔ مره نه خو دابن قیم او شوکانی او دیوسف جے پوری نه بغیر یو قدم هم نشے اغستے، نه هم وائے چه څه په" ان کنتم لا تعلمون" کښ داخل نه یم ۔

کونړ ملا لیکي" علم خو پیري مرتبې لري صـ۸۳ کونړ ملا دغه مرتبې خو به دِ ښودلې وې کنه، چه پته لګیدې چه په دې مرتبې والا تقلید شته او په دې نشته ـ

کونړ ملا لیکي" خو د ځانه به تقدیرونه جوړوي صـ۸۴

کونړ ملا ځونې هم ستانه دغه سوال دے۔ چه د علم مرتبې څومره دي، هغه بیان کړه، او د ځانه به تقدیرونه نه جوړوے، بلکه د کتاب وسنت نه به ئے بنائیې۔ ځکه چه ته ویل نه شې که سوال کوے، یل لره هم دا حق شته، چه ستانه هم ستا په معیار تپوس اوکړي۔

## دکونړ ملا یوه مضحکه خیزه خبره :-

کونړ ملا لیکي " اوکه په امي باندې فرض وي، نو دچا تقلید پرې فرض دي۔ دامي خو مذهب نشته صـ۸۴

کونړ ملا ګوره ته لامذهبه ئے۔ او دابن قیم او شوکاني قدم په قدم تقلید کوے، نو ستا دا قول ټپخپله ستا خلاف دے، فافهم وتدبر ۔ باقي امي ته لا مذهبه چا ندې ویلي بلکه د مفتي قول د هغه مذهب دے۔ لکه مخکښې حواله تیره شوه، لا مذهبه صرف ته ئے ـ

○ ---×---×---×---×---×--- ○

## دکونړ ملا نهم تپوس :-

کونړ ملا لیکی " تاسو مقلدین او غیرمقلدین

تول داوائے چه دنص په مقابله کښی نه قیاس له اعتبار رشته

او نه رائی دمجتهدینو ته الخ ص۸۴ ۔ کونړ ملا د غیرمقلدینو په

باره کښی ږ خبره صحیح ده ۔خود مقلدینو په باره کښی د سوء

ظن او بدگمانی ده ۔ ځکه چه مقلدین د صریح او صحیح نص

په مقابله کښی خپله رائی نه پیش کوی ۔ د ستاسو کار

دے ۔

## کونړ ملا اوس دفقے خلاف مثالونه ذکر کوی

(۱) امام صاحب وائی چه ایمان نه زیاتیږی او نه کمیږی .

او په قرآن کریم کښی دی " لیزدادوا ایمانًا مع ایمانهم " ص۸۵

کونړ ملا عقل ږ نصیب شه ۔ دامسئله اختلافی ده ۔ اهل علم

حضرات وائی ۔ چه دا اختلاف صرف صوری اختلاف دے ،

حقیقی نه دے ۔ ځکه چه احناف دایمان دکمی بیشی نه انکار

دکمیت په اعتبار سره کوی ۔ او محدثین هم ددی انکار نکوی ،

او کے بیشے دکیفیت په اعتبار سره منی ، اومحدثین هم ددی

قائل دی ۔ نو اختلاف صوری دے حقیقی نہ دے، دایمان په کمیت کښې کے زیاتے ځکه نه راځی ۔ چه په مؤمن به کښې کے زیاتے نه راځی ۔ عقل دِ نصیب شه دا څه اختلاف نه دے ۔

(۲) کونړ ملاوائی " فقه کښې راځی ۔ چه په اودس کښې نیت سنت یا مستحب دی ۔ او حدیث د بخاری (۱-۲) کښې راځی (انما الأعمال بالنيات) هر عمل کښې نیت ضروری دی ص۸۵ ۔ کونړ ملا د حدیث پوره تقدیر که دِ بیان کړے وے نو نه به پخپله دهوکه شوے وے، او نه به دِ نور خلق دهوکه کړی وُو ۔ موږ وایو چه د حدیث تقدیر دا دے "إنما ثواب الأعمال بالنيات " اوس که چا نیت اوکړو نو ثواب ورته هم میلاوُ شو، او که نیت ئے اونکړو، نو اودس ئے اوشو، طهارت ورته حاصل شو ۔ او کونړ ملا که ستا داخیال وی، چه بغیر د نیت نه هیڅ یو عمل نه موجودیږی، نو دا ستاد کم عقلئ او ناپوهئ کرشمه ده، په نورو ئے هم ورتیه ۔ ګوره کونړ ملا که نه په اودس کښې ئے اوباد در نه لاړ شی، نو ستا نیت نه وی خو دا عمل اوشی؛ او اودس دِ مات شی ۔

(۳) کونړ ملا لیکی " فقه کښې راځی، شرح وقایه ۱/۶۵ هدایه ۱/۲۱ کښې چه اودس عبادت نه دے، وسیله ده،

او نبی علیہ السلام فرمائی. "الطهور شطر الایمان" مسلم ۱/۱۱۸،
مشکاة ۱/۳۸ - چه اودس نیمه حصه ده، نو آیا ایمان عبادت
نه دے؟ ص۸۵.

د هدایے عبارت دے "ولنا أنه لایقع قربة الابالنیة"
یعنی چه تر څو پورے اودس کښې نیت نه وی شوے، نو عبادت
نه جوړیږی، اوس د هدائے عبارت ته اوګوره او دکونړملا
ترجمے ته اوګوره، دخپل موروثی عادت مطابق ئے دلته
هم خیانت کړیدے - او د شرح وقایئ عبارت داسے دے،

"بخلاف الوضوء إذ لیس هی عبادة مقصوده بل شرع
شرطاً لجواز الصّلاة"

یعنی اودس لکه د مانځه مقصودی عبادت نه دے، او دا
ظاهره خبره ده، ګوره که یو سړے صرف اودس کوی،
او نکے مونځ نه کوی. نو دی سړی ته هیڅ ثواب نه میلاویږی
نو شرح وقایه کښې دی، چه مقصودی عبادت نه دے -
او کونړملا لیکی چه عبادت نه دی - په دیو مسئله کښې ئے
دوه ځایه دهوکه کړیده - باقی د حدیث "الطهور شطر
الأیمان" دا ترجمه چه اودس د ایمان نیمه حصه ده، غلطه
ده - ځکه چه اودس د مانځه د پاره فرض دے - ارشاد
باری تعالیٰ دے "یاایها الذین آمنوا إذا قمتم إلی الصّلاة

فاغسلوا وجوهكم الآية - او دا ظاهره خبره ده - چه مونځ
چه اودس ورله صرف ذريعه ده - مونځ نه څوك دايمان
نيمه حصه نشي وئيلے - نو اودس به څنګه دايمان نيمه شي.
ملا على قارى رحمة الله عليه د مشكاة په شرحه كښې ليكى.
"قال النووى أصل الشطر : النصف ، قيل معنى شطر
الايمان أن الاجر فى الوضوء ينتهى إلى أجر الايمان،
قلت وفيه نظر ظاهر - لأن ثواب الصلاة التى من
جملة شروطها الوضوء ، لايقال أنه نصف ثواب
الايمان بل جميع الاعمال لا يصلح أن يكون نصف
الايمان الاعلى معتقد فاسد للمعتزلة والخوارج، ...
...... كيف و يتوقف صحة العمل على الايمان دون
العكس فهو اصل فى الجملة فلا يكون مساويا للفرع
ابدًا مع أنه كالعلامة على تحقق الايمان اه
مرقات (۱- ۳۱۸)
مخكښې ليكى.
" قال زين العرب تبعًا لغيره : المراد هنا بالايمان
الصلاة ، قال الله تعالىٰ " و ما كان الله ليضيع ايمانكم"
اى صلاتكم إلى بيت المقدس ، و اطلق الايمان
عليها لأنها أعظم آثاره و اشرف نتائجه و انوار

اسراره، وجعلت الطهارة شطرها لأن صحتها باستجماع الشرائط والأركان والطهارة اقوى الشرائط واظهرها فجعلت كانها لا شرط سواها والشرط شطر ما يتوقف عليه المشروط اھ

مرقات (۱-۳۱۹)

کونړ ملا که اودس د ایمان نیمه وے، نو کله چه ته بے اودسه شے. او اودس دِ مات شی، نو نیم ایمان به درنه تلے وی.

دا ستاهم عجیبه ایمان دے، چه په تیز پوسکئ الوزی،

کونړ ملا اوس پوهه شوم د تاسو چه وایئ چه ایمان کمیږی او زیاتیږی- نو ددی به هم غالبًا دغه وجه وی. چه تیز یا پوسکئ واچوئ، نو نیم ایمان درنه لاړشی.

(۴) کونړ ملا لیکی" هدایه ۱/۶۱ کښی راځی چه مسح د څلورمے حصے د سر فرض ده- او حال دا دے چه الله تعالی فامسحوا برؤسکم وئیلی دی- او نبی علیه السلام دائمًا په ټول سر مسح کړیده ص۸۶

جواب :- کونړ ملا! دا دائمًا والا توجه په حدیث کښی دکوم لفظ ده؟ بله دا چه د حضرت مغیرة بن شعبه رضی الله عنه په حدیث کښی راځی،

"ومسح بناصيته وعلى العمامة وعلى خفيه" او مسلم (۱/۱۳۴)

شاید کونړ ملا د ناصبیه ترجمه په قول سر مسح کوی، او دا د جهالت نښه ده. ځکه چه ناصیه د تندی حصے ته وائی، او د سر څلورمه حصه تری جوړیږی. کونړ ملا وائی، دا په نیم حدیث عمل دے، نو څه وایم، چه کونړ ملا په پټکی مسح د کتاب الله نه خلاف ده. ځکه چه آیت کښی دی. "وامسحوا برؤسکم" په سر مسح کوئ، او په پټکی مسح په سر مسح نه ده. او د حضرت انس رضی الله عنه د روایت نه دا اشکال ختمیږی. چه پیغمبر علیه السلام په سر مسح دا سے اوکړه چه پټکے ئے د سر نه لرے نکړو. لاس ئے د پټکی نه دننه کړه او مسح ئے اوکړه. بعضے راویانو روایت بالمعنی کړیدے، او په عمامه مسح ئے ترے مراد اخستے دے.

د حضرت أنس رضی الله عنه روایت په ابوداؤد کښی داسے دے.

" قال رأیت رسول الله صلی الله علیه وسلم یتوضأ وعلیه عمامة قطریة فأدخل یده من تحت العمامة فمسح مقدم رأسه ولم ینقض العمامة "

یعنی لاس ئے د پټکی نه لاندے کړه، پټکے ئے وران نکړو، او د سر په رومبئ حصه ئے مسح اوکړه.

نو کونړ ملا دا په نیم حدیث عمل نه دے، دا ستا د فهم او عقل قصور دے، چار بنتیا وئیلی دی. ع

وکم من عائب قولاً صحیحاً

وآفتہ من الفہم السقیم

کونړملا عقل دِ نصیب شه، حُونږ په نیزد سر دخلورمے حصے مسح فرض ده، او دټول سر مسح سنت ده۔

(۵) کونړملا لیکی" هدایه ۱/۱۶ کښ دی چه مسح په پټئ فرض ده ص۸۶۔

جوابُ :۔ رونړو اوّل دهدائے عبارت اوګورئ، او بیا دکونړملا په عقل او فهم باندی ماتم اوکړئ، هدایه کښ دی۔

" ویجوز المسح علی الجبائر الخ

کونړملا د" یجوز" ترجمه په فرض سره کوی، داخوئے مبلغ علم دے، او په هدایه باندی افتراء۔ معلومیږی چه دکونړ ملا په نیزد جواز او فرض یو شے دے، إنالله وإنا إلیه راجعون

(۶) کونړملا لیکی" هدایه کښ راځی چه ددری ځلو نه زیات او به اچول اندامونو باندی شته او جائز دی، او حدیث صحیح دابوداؤد وترمذی مشکاۃ ۱/۴۷ کښ راځی " فقد تعدی وأساء وظلم" ص۸۶

جوابُ :۔ لږ د هدائے عبارت اوګورئ او دکونړملا ایمانداری اوګورئ۔ هدایه کښ دی،

" وتكرار الغسل إلى الثلاث لأن النبي صلى الله
عليه وسلم توضأ مرة مرة وقال هذا وضوء لا يقبل
الله تعالى الصلاة إلا به وتوضأ مرتين مرتين
وقال هذا وضوء من يضاعف له الأجر مرتين، و
توضأ ثلاثا ثلاثا وقال هذا وضوئي ووضوء
الأنبياء من قبلي. فمن زاد على هذا ونقص فقد
تعدى وظلم، والوعيد لعدم رؤيته سنة اه
کونړ ملا تادا ترجمه " ددرې ځلو نه زیات او په اچول الدامونږ
باندې شته او جائز دی" د هدایې د کومو الفاظو کړیده،
هدایې والا صرف دومره وئیلي دي. که یو سړې دا سنت
نه ګڼړي، نو وعید دهغه دپاره دې. او س که یو سړی شکی
مزاج وی. هغه دا سنت ګڼړي. خو دوهم دازالے دپاره
ئے درې ځلو نه زیاتے او به استعمال کړے، نو هغه دی
وعید لاندې نه راځي، لکه ابن همام وائي. کونړ ملا د االستثنائي
صورت دے. عام قانون نه دے. کونړ ملا تحریف مه
کوه، دا دیهود یانو کار دے.
کونړ ملا د حدیث په مطلب هم نه دے پوهه شوے، د
"فقد تعدى وأساء وظلم" ترجمه کوی، چاچه زیادت
اوکړو، په درې ځلو نو زیاتي وکړو او بدي وکړو او ظلم

ئے اوکړو ص۸۷ اوحال دا دے، چه "فقد تعدی وأساء وظلم" صرف زیادت طرفته راجع نه دی، بلکه نقصان طرفته هم دی. ځکه چه ددی نه مخکښ الفاظ دی "فمن زاد علی هذا ونقص" نو وعید صرف په دری باندی زیادت طرفته نه دے راجع، بلکه دد ینه کم ته هم راجع دے، اوحال دا دے چه پیغمبر علیه السلام یوځل هم وینځلی او دوه ځله هم، لکه د حدیث په ابتداء کښ دی، اوکوڼر ملا دیهودیانو دعادت مطابق معنوی تحریف کوی، خوځان بیا هم اهلحدیث ګڼړی.

(۷) کوڼر ملا لیکی، چه هدایه ۱/۴۳ کښ دی، چه که په کوهی کښ کونتره اولویده، نوڅلو یښت بوکی به اوباسی. دا ټولے مسئلی قرآن یا حدیث یا په آثارو د صحابه کرامو کښ شته ؟ ص۸۷

جواب:- ۱. کوڼر ملا عقل دِ نصیب شه، دکوهی په باره کښ د صحابه کرامو اوتابعینو نه آثار شته.

(۱) عن علی رضی الله عنه إذا سقطت الفأرة والدابة فی البئر فانزحها حتی یغلبك الماء اه

(۲) عن الشعبی فی الطیر والسنور ونحوهما یقع فی البئر قال ینزح منها أربعون دلوًا اه

شعبیؒ دکبارو تابعینو نه دے، هغه وائی که په کوهی کښې مرغۍ یا پیشو پریوته نو څلویښت بوقی به تری اوباسی۔

(۳) عن الشعبی ....... الدجاجۃ تقع فی البیر قال ینزح منها سبعون دلوًا اھ کما فی شرح معانی الآثار للامام الطحاوی باب الماء یقع فیه النجاسۃ (۱-۱۷) مطبوعہ مصر

کونړ ملا داد ځانه تقدیرونه جوړول نه دی۔ عقل دِ نصیب شه، لږ دتعصب پټئ دسترګو نه راپرانیزه، ع

گر نہ بیند بروز شپرہ چشم
چشمۂ آفتاب راچہ گناہ

(۸) کونړ ملا دحوض په مسئله اعتراض کړیدے ص۸۷

جوابؒ :- مسئله داده چه په کموابو کښې پلیتی اوغورزیږی- نو پلیتیږی- اوکه په زیاتو کښې اوغورزیږی نو نه پلیتیږی، احنافو د ده در ده قول صرف دخلقو داسانتیا دپاره اختیار کړیدے، حدیث شریف دے-

"یسروا ولا تعسروا"

اوداسے څه مقدار پکار دے چه خلق پرے په آسا نه پوهه شی، چه دا زیاتے دی، داکے دی، یخپله د غیرمقلدینو په نیزد خوکه چا داوبو په منګی کښې متیازے اوکړے، نو نه پلیتیږی، ځکه چه دوئ وائی، چه تر څو داوبو خوند

رنګ نه وی بدل شوے، او به نه پلیتیږی - او که په منګی کښې ورته اس یا میښے یا غوا کډه بزے متیازے او کړے، نو هډو دسره پلیتیږی نه، ځکه چه د دې ځناورو متیازے د دوئ په نیزد پاکے دی. او ښښکلے شی۔

(۹) کونړملا په ماء مستعمل باندې اعتراض کړیدے، او د حضرت عائشے رضی الله عنها په حدیث ئے قیاس کړیدے، "چه ما او پیغمبر علیه السلام به دیو لوښی نه غسل کولو ص۸۸"

جواب :- کونړملا! اوّل د ماء مستعمل تعریف او پیژنه، بیائے هله قیاس کوه، او تا خو په ص۴۵ باندې قیاس تهٔ ګمراهی ویلی ده. د ماء مستعمل د تعریف نه جاهل ئے، او هم د خپل قول مطابق ګمراه شوے۔

(۱۰) کونړملا په نبیذ تمر باندې اعتراض کړیدے ص۸۸

جواب :- د علامه ابن همام رحمه الله په فتح القدیر کښې لیکی، چه امام ابو حنیفه رحمه الله د نبیذ التمر د مسئلے نه رجوع کړیده، او رجوع د حدیث د ضعف او اضطراب په وجه شویده. کذا فی اعلاء السنن۔

نو کله چه مسئله مرجوع عنها ده - او مسئله مرجوع عنها د منسوخ په حکم کښې ده، نو نه په دې عمل شته، او نه ئے دفاع ضروری ده، نو بحث ته پرے هم حاجت

نشتہ ،

(۱۱) کونږ ملا لیکی" د مسح علی الخفین د پاره اوه شرطونه بیان شوی دی، نو شرط خو په درجه د فرض کښی وی۔ ص۸۸

جواب :۔ کونږ ملا لره دغه شرطونه خو به دِ بیان کړے وے۔ چه اوه کوم شرطونه دی۔ او که د موزے تعریف نه پیژنے نو بیا " سلام علیکم الخ بل نه وائے چه شرط خو په درجه د فرض کښی وی، کونږ ملا دا مسئله دِ دکوم آیت یا حدیث نه را اوویسته ، لره هغه آیت یا حدیث خو به دے بیان کړے وے. او که له ځانه دِ اووے، نو ته خو وائے چه ،" آیا د ځانه تقدیرونه جوړول جائز دی او روا کاردی الخ ص۸۸ ، نو بیا په نورو خلقو ځله الزام لګوے، او که د چا تقلید دِ کړید ے، نو تقلید ته خو نه ناجائز وائے ۔" ویل للمطففین الآیة ۔

(۱۲) کونږ ملا لیکی" هدایه کښی دی ولا یجوز المسح علی العمامة " او محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په پټکی مسح کړیده ، مسلم (۱/۱۳۴)

جواب :۔ الله پاك فرمائی " وامسحوا برؤسکم " د آیت تقاضا داده چه په سر مسح اوشی ، او د مغیرة بن شعبه رضی الله عنه د حدیث نه په پټکی د مسح جواز معلومیږی، د آیت او حدیث په مینځکښی تعارض دے

او تعارض حکم دادے، چه دد واړو په مینځکښې تطبیق راشي، کنې آیت به اغیستلے شي. او حدیث به پرېښودے شي. ځکه چه آیت په حدیث باندې مقدم دے. او که په احادیثو نظر واچوے، نو معلومیږي، چه داپه عمامه مسح نه وه بلکه عمامه ئے په سر وه، او لاس ئے د پټکي نه دننه کړو، او مسح ئے اوکړه. لکه د حضرت انس رضی الله عنه په روایت دابوداؤد کښې دی.

" عن انس بن مالک قال رأیت رسول الله صلی الله علیه وسلم یتوضأ وعلیه عمامة قطریة فأدخل یده من تحت العمامة فمسح مقدم رأسه ولم ینقض العمامة لهٗ

ابوداؤد باب المسح علی العمامة (۱-۱۹)

کونړ ملا وائی دا حدیث ضعیف دے. خو دائے ندی سېوولي چه دے حدیث ته الله تعالی ضعیف وئیلی یا پیغمبر علیه السلام؟ او که چا امتی ورته ضعیف وئیلی وی نو داخو تقلید شو، او تقلید ته کونړ ملا نا روا وائی.

بله دا چه ددی حدیث تائید په مرسل حدیثو نو کښې هم شته.

(۱) عن عطاء ان رسول الله صلی الله علیه وسلم توضأ فحسر العمامة ومسح مقدم رأسه او قال ناصیته

هذا مرسل وقد روينا معناه موصولا فى حديث
المغيرة بن شعبة اھ السنن الكبرى (۱ - ٦۱)

(۲) عن ابن جريج قال أخبرنى عطاء قال بلغنى أن
النبى صلى الله عليه وسلم كان يتوضأ و عليه العمامة
يؤخرها عن رأسه ولا يحلها ثم مسح برأسه فأسال
الماء بكف واحد على اليافوخ قط ثم يعيد العمامة
اھ مصنف عبدالرزاق (۱ - ۱۸۹) مصنف ابن أبى شيبة (۱-۱۸)

(۳) اخبرنا مالك قال بلغنى عن جابر بن عبد الله أنه
سئل عن العمامة فقال لا حتى يمس الشعر الماء
....... قال محمد وبهذا نأخذ لا يمسح على الخمار
و لا العمامة، بلغنا أن المسح على العمامة كان
فترك وهو قول ابى حنيفة وعامة فقهاءنا اھ موطا
امام محمد "باب المسح على العمامة والخمار" ص۷

مولانا عبدالحی رحمہ اللہ د موطا پہ حاشیہ کښې ليکی،
"قوله بلغنا" لم نجد إلى الآن ما يدل على كون
مسح العمامة منسوخا، لكن ذكروا ان بلاغات
محمد مسندة فلعل عنده وصل بالاسناد اھ
اود علامہ خطابی قول ئے نقل کړيدے، وائی،
وقال الخطابى فرض الله المسح على الرأس والحديث

فی مسح العمامۃ محتمل للتأویل فلا یترك المتیقن للمحتمل اھ صـ

کونړ ملا وائی .” موږ وایو چا منسوخ کړه ۔ د محمد رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم نه خو روسته بل نبی ندی راغلی اھ صـ۸۹

معلومیږی چه کونړ ملا قادیانی طرفته مایل دے، دا لا تراوسه هیچا نه دی وئیلی، چه کښے نسخ له د بل پیغمبر راتلل ضروری دی، قادیانے د جهاد د منسوخیدو دعوی کوی. او شاید کونړ ملا ورته میلان لری۔ کښی څو مره احادیث دی، چه منسوخ دی، د حازمیؒ او ابن شاهینؒ کتابونه اوګوره، څو مره منسوخ احادیث ئے ذکر کړیدی، او دا ئے نه دی وئیلی، چه دا د نبی علیه السلام نه العیاذ باللہ روستو بل نبی راغلے دو، او هغه منسوخ کړیدی۔ د نسخ دپاره د بل نبی د راتلو قول په مسلمانانو کښے بل چا نه دے کړے۔ معلومیږی د کونړ ملا په ختم نبوت باندی ایمان نشته۔ ” کبرت کلمة تخرج من افواههم “

(۱۳) کونړ ملا وائی ” هدایه ۵۰/۱ کښی دی چه په تیمم کښی استیعاب شرط دے۔ او حدیث د بخاری ۴۸/۱ کښی راځی، . ” ” چه مخ او ورغوی مسح کړه دا کافی دی صـ۸۹ ۔

جواب ۱- کوم ملاکه د بخاری په حدیث کښې استیعاب نښتنه، نوځه او شو، په بیویل حدیث کښې خو شته کنه.

علامه ابن همامؒ په فتح القدیر کښې لیکی،

"روی الحاکم والدارقطنی عن جابر بن عبد الله عن النبی صلی الله علیه وسلم قال التیمم ضربة للوجه وضربة للذراعین إلی المرفقین، قال الحاکم صحیح الإسناد ولم یخرجاه وقال الدارقطنی رجاله کلهم ثقات

اه فتح القدیر طبع جدید (۱- ۱۲۹)

ابن همامؒ وائی، د بخاری حدیث به هم په دی حدیث باندی حمل کولے شی.

(۱۴) کوم ملا وائی" هدایه ۱/۶۲ کښې راځی، چه حیض کم مُده دری ورځے اوزیاته لس ورځے، او دا اندازه هیڅ صحیح حدیث کښې نه ده راغلی الخ ص۸۹

جواب ۱- په دی باره کښې مرفوع احادیث هم شته لکه نصب الرایه کښې دی، خو ضعیف دی، او موقوف هم شته او صحیح دی، او موقوف د صحابی چه مدرک بالعقل نه وی، د مرفوع په حکم کښې وی. کوره موقوف دا دی.

(۱) روی الدارقطنی...... عن أنس قال هی حائض

فیما بینہا و بین عشرۃ فاذا زادت فہی مستحاضۃ

(۲) وروی ایضا ........ عن عثمان بن أبی العاص قال لا تکون المرأۃ مستحاضۃ فی یوم ولا یومین ولا ثلاثۃ حتی تبلغ عشرۃ فاذا بلغت عشرۃ ایام کانت مستحاضۃ۔

(۳) وقال ایضاً ........ أن عثمان بن ابی العاص الثقفی قال الحائض إذا جاوزت عشرۃ ایام فہی بمنزلۃ المستحاضۃ تغتسل وتصلی ، وعثمان ھذا صحابی۔

(۴) د سعید بن جبیر اثر :۔

وقال ایضاً ........ عن سعید بن جبیر الحیض ثلاثۃ عشر واُسند مثلہ عن سفیان اھ

په دی سلسله کښی اګرچه مرفوع احادیث ضعیف دی، خو د دینه دومره خبره معلومیږی، چه دا تقدیر او اندازه بالکل بے اصله او بے سنده نه ده۔ لکه د کونړملا چه زعم باطل دے، بلکه څه نه څه اصل ورلره شته۔

ابن همام ؒ لیکی:۔

" فهذه عدة احادیث عن النبی صلی الله علیه وسلم متعددة الطرق و ذلك یرفع الضعیف الی الحسن

والمقدرات الشرعية مما لا تدرك بالرأى فالموقوف فيها حكمه الرفع، بل تسكن النفس بكثرة ماروى فيه عن الصحابة والتابعين إلى أن المرفوع مما أجاد فيه ذلك الراوى الضعيف، وبالجملة فله أصل فى الشرع اھ

فتح القدير (۱-۱۶۵)

## دکونړملانه تپوس :-

کونړملا مونږ خود اقل او اکثر اندازه په دی موقوفو او حسن لغیره احادیثو باندی بناء کړیده، نه وایه ستا سو کره څه حال دے؟ تو له میاشت حیض وی، او که هم و دسره حیض نه وی. بینوا بالبرهان.

(۱۵) کونړملا په اقل مدت طهر باندی اعتراض کوی، چه دا حدیث نه ثابته نه ده ص۸۹ -

جوابٌ :- هدایه والا خو د ابراهیم نخعیؒ قول اغستے دے، ابراهیم نخعی تابعی دے، او ثقه دے، دغه شان دیزیدؒ بن هارون قول" استحب الطهر خمس عشرة اھ سنن دارمی (۱-۱۷۳) باب اقل الطهر، اغستے دے -کونړملا نه اووایه چه ستا سو په نیزد ےُ څه مقدار شته او که نه تو ل عمر

طهروي - حيض پکښې هډو د سره دي نه ، لږ څېل دليل خو ډم اومنا يه -

(۱٦) کونړ ملا ليکي هدايه ۱/۷۲ کښ دي . چه نجاست کله موږي ته ورسيږي ، نو که لوند وي نو مګلو سره نه پاکيږي . او که وچ وي نو پاکيږي ، او نبي عليه السلام دا فرق ندی کړی صنه

جواب :- حضرت عائشه رضی الله عنها نه روايت دے

" قالت کنت افرك المنی من ثوب رسول الله صلی الله عليه وسلم إذا کان يابسًا وأمسحه أو اغسله شك الحميدی إذا کان رطبًا اه فتح القدير (۱-۱۹۷) حسن اخرجه ابو عوانة فی صحيحه ۱/۲۰۴ ، ۲۰٦ کما فی الإرواء والدارقطنی ۱/۱۲۵ والبيهقی ۲/۴۱۷ کما فی نصب الراية ۱/۲۰۹ کلهم من حديث عائشة واسناده حسن اه حاشيه فتح القدير طبع جديد (۱-۱۹۷)

د حضرت عائشې رضی الله عنها د حديث په وجه وچ او لوند کښې فرق شته ، او کونړ ملا وائي هيڅ فرق نشته ، ع

به بين تفاوت راه از کجا ست تا بکجا

(۱۷) کونړ ملا ليکي " هداية ۱/۷۴ کښ دي . چه د قدر درهم په مقدار د انسان د غټي ګند ګئ سره مونځ جائز دے . او قرآن فرمائي (و ثيابك فطهر) نو دا آيت مطلق دے صنه

جواب ۱- کونړ ملا دروغ وائی، چه دا آیت مطلق دے، ځکوره که مچان په ګندګئ کینی، اے بیا دا انسان په جامو باندی کینی، نو هیڅوک هم د جامو د پلیتیدو او د هغے نه د وینځلو قائل نه دی، او دا د ټول امت په اتفاق سره معاف دی- نو آیت مطلق ځنګه شو ؟ هو ! که غیرمقلدین ددی قائل وی، نو نشم وئیلے- ځکه یو عقلمند هم د دی قائل او فاعل نه دے-

اصل خبره دا ده، چه کله انسان د غټ او دس ماتی نه روستو صرف په کاڼړی یا لوټه باندی او دس وچ کړی او اوبه استعمال نه کړی- نو په لوټه یا کاڼړی باندی صرف د غه ځائے وچ خوشی، ځوکه دا وبو صفائی پرے اونشی، او دغه ځائے د درهم په مقدار وی، نو قدر الدرهم کنایه ده د دغه ځائے نه- هو ن که غیرمقلدین دا تعبیر نه خوښوی، نو بیا به مونږ وایو، چه که د غیرمقلدینو د کونے په مقدار نجاست لګید لے وی، او او بے نه وینځلو، نو مونځ ئے کیږی، خو دا تعبیر راته ښه نه ښکاری. ابن همام رح لیکی،

ووجه قولنا ان ما لا یأخذه الطرف کوقع الذباب نخصص من نص التطهیر اتفاقا فیخص ایضاً.

قدر الدرهم بنص الاستنجاء بالحجر (فتح القدير ۱/۲۰۳)

او په عنايه شرح هدايه کښې دي،

"فالمراد بقدر الدرهم موضع خروج الحدث

قال النخعي استقبحوا ذكر المقاعد في مجالسهم

فكنوا عنه بالدرهم ووجه الأخذ ما قال صاحب

الأسرار أن النبي صلى الله عليه وسلم قال من

استجمر فليوتر ومن لا فلا حرج عليه والاستجمار

هو الاستنجاء فيثبت أن الاستنجاء غير واجب

بالحجارة ولا حرج في ذلك فعلم أنه سقط حكمه لقلة

النجاسة وأن ذلك القدر عفو، وما ثبت أن

الصحابة كانوا يكتفون بالاحجار في الاستنجاء

وذلك لا يزيل النجاسة حتى لو جلس المستنجي به

في الماء القليل نجسه فاكتفاءهم به دليل على أن

القليل من النجاسة عفو اه

عناية على هامش فتح القدير (۱/۲۰۳، ۲۰۴)

## تنبيه

بله دا چه کومه ملا وائي چه آيت مطلق

دے. نو دا مطلق ورته چا وئيلي؟ پد ے ئے نه څه آيت

پيش کړيدے، او نه ئے پرے حديث. دا خو دا صول

فقہ اصطلاحات دی، او د اصول فقہ کوټر ملا قائل نہ دی نو د تقلید رد ھم کوی. او تقلید ھم کوی، دیتہ وائی تضاد بیانی.

نو کوټر ملا د مسئلہ پہ ھغہ ضعیف حدیث چہ پہ نصب الرایۃ کبنی ذکر دے بانذی نہ دہ بناء، بلکہ پہ قیاس سرہ ثابتہ دہ، او د اقیاس بالکل صحیح دے. نہ صاحب الھدایۃ دغہ حدیث ذکر کڑے، او نہ تر ے ابن ھمامؒ استدلال کڑیدے.

(۱۸) کوټر ملا لیکی "ھدایہ ۱/۷۸ کبنی راځی، چہ استنجاء کول سنت دی کہ پہ اوبو وی او کہ کانړو، او نبی علیہ السلام کلہ پریښودلی ھم دہ صنہ ۹۰.

جوابؒ :- د ھدائے عبارت دا دے." الاستنجاء سنة لأن النبي عليه السلام واظب عليه ويجوز فيه الحجر وما قام مقامه يمسحه حتى ينقيه اھ (۱-۷۸) کوټر ملا پہ ایمان ئے اووایہ، چہ خط کشیدہ الفاظ د ھدائے د کومو الفاظو ترجمہ دہ، پہ ھدائے دروغ ولے وائے. بلہ دا چہ ھدایہ والا دلتہ ھلو د اوبو ذکر کڑے ھم نہ دے، پہ اوبو د وینځلو مسئلہ ئے روستو ذکر کڑیدہ " وغسله بالماء افضل الخ (۱-۷۹)

بل کوټر ملا لیکی چہ " ۲مرۃ وجوب پیارہ وی اھ صنہ ۹۰

کونړملا! دا په کتاب الله کښ راغلی او که په حدیث کښ؟ ګوره قرآن کریم کښ دی "وإذا حللتم فاصطادوا" یعنی کله چه د حج نه فارغ شئ نو ښکار کوئ، که امر د وجوب د پاره وی. نو بیا خو په هر حاجی باندی ښکار فرض شو، او که نه وائے چه دلته امر د وجوب د پاره نه دے، نو دا فرق خو نه په کتاب الله کښ شته او نه په حدیث کښ. او که د چا امتی قول دِ راخستے وی، نو بیا خو مقلد شوے، او حال دا دے، چه د تقلید خلاف لکیائے کتاب لیکے. نو دا تضاد بیانی نه شوه؟

بله دا چه مواظبت دلیل دے د سنیت. او سنت هغه نه وائی، چه کله ئے پریښودی هم وی، ځکه چه که چرے هم پریښودلے شوے نه وی، نو دا علامت دِ د وجوب، او دا خبره د کونړ ملا د اوولسم نمبر اعتراض په جواب کښ تیره شوه، چه لږ نجاست معاف دے.

دلته مطلق استنجاء نه ده مراد، بلکه کانړی او اوبه جمع کول افضل دی، او که صرف اوبه استعمال کړی، لکه د حضرت انس رضی الله عنه د حدیث د بخاری نه معلومیږی، او کانړی پریږدی نو هم جائز دی، یا صرف په کانړو استنجاء اوکړی او اوبه پریږدی نو هم جائز دی.

دانه چه هلته دسره استنجاء پریږدی، په دې پوهه اوکه په کاڼو ـ

(۱۹) کونږ ملا لیکی " هدایه ۱/۸۱ کښې دی، چه دماسپښین آخری وخت په مثلینو ختمیږی. او په احادیثو کښې راځی، چه په مثل اول ختمیږی ص۹۱

جواب:- (۱) ابن همام " لیکی .

" عن ابی هریرة عنه صلی الله علیه وسلم إذا اشتد الحر فا بردوا بالصلاة فان شدة الحر من فیح جهنم رواه الستة ، وانفرد البخاری بحدیث أبي سعید الخدری أبردوا بالظهر " الخ فتح القدیر (۱/۲۲۰)

(۲) دحضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه حدیث دے .

عن أبی ذر قال كنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فی سفر فأراد المؤذن أن يؤذن للظهر فقال النبی صلی الله علیه وسلم ابرد ثم أراد أن يؤذن فقال له أبرد حتى رأينا فیئ التلول فقال النبی صلی الله علیه وسلم إن شدة الحر من فیح جهنم فاذا اشتد الحر فابردوا بالصلاة او بخاری (۱/۷۷)

اودا ظاهره خبره ده چه تلول یعنی ټیلے پرتے وی ولاړے نه وی ، او د پیولو سوری په مثل اول کښې نه

منکاره کیږي، نو ددې دواړو حدیثونو نه معلومیږي
چه په مثل اوّل باندې د ماسپخین وخت نه ختمیږي۔
باقي پاتې شو امامت جبریل علیه السلام، نو هغه
متقدم دے او دا رو ستنے دے۔ نو د پیغمبر علیه السلام
عادت مبارک تاخیر کول وُو۔

(۳) د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما حدیث دے۔

عن ابن عمر عن النبي صلی الله علیه وسلم مثلکم
ومثل اهل الکتابیین کمثل رجل استأجر اجراء فقال
من یعمل لي من غدوة إلی نصف النهار علی قیراط
فعملت الیهود ثم قال من یعمل لي من نصف
النهار إلی صلاة العصر علی قیراط فعملت النصاری
ثم قال من یعمل لي من العصر إلی أن تغیب الشمس
علی قیراطین فأنتم هم۔ فغضب الیهود والنصاری
فقالوا مالنا اکثر عملاً واقل عطاء الخ

بخاري باب الاجارة (۱-۳۰۲)

په دې حدیث کښې د اهل کتابو عمل ډیر دے او اجر
ئې لږ دے۔ او د دې امت عمل لږ دے او اجر ئې
ډیر دے، او دا هله کید یشي چه د ماسپخین وخت
په مثل ثاني باندې ختم شي۔ نو د نصاراو عمل به ډیر

شی ، ځکه چه وخت ئے ډیرشو ، او که چرے په مثل اول باندې ختم شی ، نو د نصاراؤ وخت د دې امت د وخت نه زیات نه شو ، بلکه ورسره برابر شو ، الغرض د دې حدیث نه معلومیږی چه د ماسپخین وخت په مثل اوّل نه بلکه په مثل ثانی ختمیږی واللہ أعلم وعلمہٗ أتم وأحکم ۔

(۲۰) کونړ ملا لیکی" هدایه ۱/۸٦ کښې دی ، چه د ماښام لمانځه نه مخکښې نفل مکروه دی ، او حدیث کښې دی۔ صلوا قبل المغرب ، بخاری ۱/۱۵۷ ۔

جواب :۔ کونړ ملا صاحب ( اوس خو هغه کونړ د هم فتح شو ، طالبانو پرے قبضه واچوله ، او ستا ملګرو تورے په تیښته ځان خلاص کړو ، والحمد للہ علی ذلك الراقم غفرله ۲۴ جمادی الأولی سنة ۱۴۱۷ھ ) دلته بل حدیث هم شته ، د هغے نه ولے ستر ګے پټوے ؟ حدیث شریف دا دے

" لا تزال امتی بخیر أو قال علی الفطرة مالم یؤخروا المغرب إلی ان تشتبك النجوم ، رواه ابوداؤد نصب الرایه (۱/۲۰۱)

عن سلمة بن الأکوع قال کنا نصلی مع رسول اللہ صلی اللہ علیه وسلم المغرب إذا توارت بالحجاب " أخرجه بخاری ومسلم ، نصب الرایه طبع جدید (۱/۳۱۸)

ولفظ أبی داؤد " کان النبی صلی اللہ علیه وسلم

يعني المغرب ساعة تغرب الشمس إذا غاب حاجبها اهـ
نصب الراية (۱/۳۱۸)

يعني سم دغه پريوتو سره ئے د ماښام مونځ کولو، بلکه داچه کوم ملا چه کوم حديث " صلوا قبل المغرب" وړاندې کړ بيدے، هم ددی حديث نه معلوميږی، چه دا دوه رکعته سنت نه دی، کوره ددی حديث په اخير کښی دی.

" عن عبد الله بن مغفل قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم صلوا قبل المغرب ركعتين صلوا قبل المغرب ركعتين قال فى الثالثة لمن شاء كراهية أن يتخذها الناس سنة ، متفق عليه او مشكاة (۱/۱۰۴)

يعني پيغمبر عليه السلام په دريم ځل او فرمائيل چه دچا خوښه وی، نو او دے ئے کړی - او دائے ځکه او فرمائيل چه خلق ئے سنت او نه ګرځوی - او مستقل عادت ئے جوړ نکړی - نو دا حديث پخپله پدی خبره دلالت کوی، چه دا دوه رکعته سنت نه دی ، او هم دغه وجه ده چه پدی باندی د صحابه کرامو عمل نه وو.

سنن ابی داؤد کښی دی -

عن طاؤس قال سئل ابن عمر عن ركعتين قبل المغرب فقال ـ ما رأيت أحدًا على عهد رسول الله صلى الله

علیه وسلم یصلیهما ورخص فی الرکعتین بعد العصر ، (۱ - ۱۸۲)

یعنی د پیغمبر علیه السلام په زمانه کښ ما هیڅوک نه دی لیدلی چه دا دوه رکعته به ئے کوله ، او دغه شان دمازیګر نه روستو دوه رکعته ، دحضرت جابر رضی الله عنه روایت دے ۔

"عن جابر رضی الله عنه قال سألنا نسآء رسول الله صلی الله علیه وسلم هل رأیتن رسول الله صلی الله علیه وسلم یصلی رکعتین قبل المغرب ؟ فقلن لا الخ

نصب الرایه (۱/۱۴۱)

ابراهیم نخعیؒ وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم او شیخینوؓ به دا دوه رکعته نه کول ۔

"قال کان رسول الله صلی الله علیه وسلم و ابابکر رضی الله عنه وعمر رضی الله عنه لم یکونوا یصلونهما" قلت ورجاله ثقات ۔ نصب الرایه (۱/۲۴۲)

نو ګویا په دی حدیث نه د پیغمبر علیه السلام عمل ثابت نه د صحابه کرامو ۔ نو ګوره ملا چر ته متروک احادیث راوړی ، او د خپل غیر مقلدیت بناء پری کوی ۔ او د پیغمبر علیه السلام او صحابه کرامو عمل ته هډو ګوری نه ۔ ځکه

چه غیرمقلد دے، کونړ ملا مونږ ورته مکروه دعا نه نه وایو، بلکه د پیغمبر علیه السلام او د صحابه کرامو عمل خلاف په وجه ورته مکروه وایو۔

(۲۱) کونړ ملا لیکی" چه هدایه کښې دی چه دخطبے په وخت کښې دوه رکعته لمونځ نه کیږی، او حدیث د مسلم کښې راځی، چه نبی علیه السلام فرمائی،

"إذا جاء أحدکم یوم الجمعة والإمام یخطب فلیرکع رکعتین ولیتجوز فیهما،، ص۱۹

جواب :- کونړ ملا دنهی احادیث بالکل نظرانداز کوی، عجیبه ده، چه په اوقات مکروهه کښې د لمونځ په باره کښې دنهی احادیث هم شاته غورزوی، لکه د طواف د رکعتونو په مسئله کښې پرے هم بحث تیر شو۔ او دلته هم دنهی د حدیث نه بیخی سترگے پټوی۔

صحیح مسلم کښې دی۔

"عن سعید بن المسیب أن أبا هریرة اخبره أن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال إذا قلت لصاحبك أنصت یوم الجمعة والإمام یخطب فقد لغوت" او مسلم (۱- ۲۸۱)

یعنی دخطبے په وخت کښې نهی عن المنکر هم ناجائز دے،

او هم د دی نهی داحادیثو په وجه سره د صحابه کرامو په دی حدیث باندی عمل نه وُو۔ امام نووی رح لیکی،

قال القاضی : وقال مالك و اللیث وابوحنیفة والثوری وجمهور السلف من الصحابة والتابعین لا یصلیهما وهو مروی عن عمر وعثمان وعلی وحجتهم الامر بالانصات للامام او نووی شرح مسلم (۲۸۷/۱)

کونړملا د لته هم یو متروك حدیث را غستی دے، او صحابه کرام اوجمهور امت پرے مجروحه کوی۔ کونړملا عقل د نصیب شه، دا اعتراض دِ صرف په احنافو نه دے، بلکه په صحابه کرامو باندی هم دی۔

(۲۲) کونړملا لیکی، هدایه ۸۷/۱ کښی دی چه اذان کښی ترجیع نشته......اوحال داچه ترجیع قولی حدیث کښی راغلی ده، مشکاة ۶۳/۱ ص۹۱

جوابٌ ۱، حضرت بلال رضی الله عنه په مدینه منوره کښی د پیغمبر علیه السلام مؤذن وُو۔ او ترجیع به ئے نه کوله۔ که ترجیع ضروری وے، نو پیغمبر علیه السلام به ورته فرمائیلی وے چه ترجیع کوه، خو داسے څه ثابت نه دی، بل ملك النازل من السماء، په اذان چه د عبد الله بن زید بن عبدهٔ په روایت سره ثابت دے، او د تأذین په باب کښی اصل

دے په هغے کښې هم ترجيح نشته ، له دې وجې نه علماء د حضرت ابو محذوره رضی الله عنه دا حديث په خصوصيا تو کښې شماري، که دا سے اونشي،نو بيا به تعارض راشي .

(۲۴۳) کونړملا ليکي ، هدايه کښې دي - چه تثويب مستحب دے ، اوحديث دابوداؤد کښې دي چه بدعت دي۔ ص۹۲

جوابؒ :- کونړملا هدايه کښې ئے دسحر د مانځه دپاره تثويب ته مستحب وئيلي دي - او په ابو داؤد کښې دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما دغه حديث چه تاورته اشاره کړيده، د ما سپخين يا د ما زيګر د مانځه دپاره تثويب سره متعلق دے يکوم د روايت الفاظ دا سے دي ،

عن مجاهد قال كنت مع ابن عمر فثوب رجل في الظهر او العصر قال اخرج بنا فإن هذه بدعة "

باقي په نورو مونځونو کښې تثويب کولو په نيزد هم بدعت دے . لکه د حضرت علي رضی الله عنه روايت دے .

" روى أن عليًا رأى مؤذنًا يثوب في العشاء فقال اخرجوا هذا المبتدع من المسجد ، وعن ابن عمر مثله الخ

بذل المجهود شرح سنن ابى داؤد (۱/۳۰۷)

باقي د سحر د مانځه دپاره تثويب نواصل خبره دا ده، چه د تثويب اطلاق په اقامت باندې هم کيږي، او په اذان

کښې " الصلاۃ خیر من النوم " باندې هم کیږي۔

په بذل المجهود کښې دي،

" هو العود إلی الأعلام بعد الاعلام ویطلق علی الاقامة وعلی قول المؤذن فی اذان الفجر الصلاۃ خیر من النوم وکل من هذین تثویب قدیم ثابت من وقته صلی الله علیه وسلم إلی یومنا هذا" اه

بذل المجهود شرح ابی داؤد (۱/۳۰۷)

نوکونړ ملا دلیل دِ خاص دے او دعوی دِ عامه ده۔ او داتضاد دعقل دفتور په وجه سره دے۔

## تنبیه ۵۔

کونړ ملا! ستا سو په نیزد خو صحابي قول حجت نه دے۔ لکه شوکاني چه وائي، او دلته تا دابن عمر رضي الله عنه دقول نه دلیل نیولے۔ کونړ ملا! وایئے یو خه او کوئ بل خه، هغه داُردو ژبے مثل دے " ہاتھی کے دانت کھانے کے اور دکھانے کے اور " ته هم دهاتھي په طریقه روان ئے۔ ع بریں عقل و دانش بباید گریست

(۲۴) فقه کښې راځي چه دماښام اذان او اقامت کښې په مینځ وقفه نشته، او حدیث د بخاري کښې راځي " ما بین کل اذانین صلاۃ "، او بیا فرمائي " صلوا قبل المغرب الخ صـ۹۲

جواب :- که دکوښو ملا مطلب داوی چه نفس وقفه نشته، نو دا دروغ دی، اوکه داسې مطلب وی چه دماښام دمانځه نه مخکښې نفل کول، نو په دې مسئله دکوښو ملا دشلم اعتراض په جواب کښې تفصیل تیرشو،

بلکه داچه د "مابین کل اذانین صلاة" نه دماښام دمانځه استثناء دحدیث نه ثابته ده، نصب الرایه کښې دی،

"عن حبان بن عبیدالله العدوی ثنا عبد الله بن بریدة عن أبیه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم إن عند کل اذانین رکعتین ماخلا المغرب اه

سنن الدارقطني (۱/۲۶۴) سنن البیهقي (۲/۶۶۷)

ورواه البزار فی مسنده وقال لا نعلم رواه عن ابن بریدة إلا حبان بن عبد الله وهو رجل مشهور من اهل البصرة لا بأس به، انتهی کلامه اه

نصب الرایه طبع جدید (۲/۱۳۵)

اودغه شان په عمدة القاری شرح بخاری کښې هم دی (۵/۱۳۸) پاتې شو دبیهقی اعتراض، نو د امام بزار په مقابله کښې دهغه دا اعتراض څه خاص وزن نشته -

(۲۵) فقه کښې راځی د صبا راختو نه مخکښې اذان نشته دی، او بخاری کښې دی "باب الاذان قبل الفجر (۱/۸۷)

جوابؒ :- کوم ملا عقل دِ نصیب شه، که د دی حدیث نه د پیشمنی یا تهجدو دپاره اذان مراد وی، او هم د غه تړے مراد دے، نو په دیکښ څه اختلاف نشته. او که د سحر دمانځه دپاره اذان ترے مراد اخلے، نو دا دِ غلط فهمی ده، ځکه چه اذان د دی دپاره وی چه خلقو ته معلوم شی چه د مانځه وخت شو. او د وخت نه مخکښ په اذان کښ دا مقصد نه ترسره کیږی. بلکه دا چه که د سحر اذان ترے مراد واغستے شی، نو بیا به د نورو احادیثو سره متعارض شی. گوره ابوداؤد کښ دی.

(۱) عن ابن عمر أن بلالا أذن قبل طلوع الفجر فأمره النبي صلى الله عليه وسلم أن يرجع فينادي ألا إن العبد قد نام زاد موسى فرجع فنادى ألا ان العبد قد نام، ابوداؤد (۱-۷۹) طحاوی (۱/۸۳)

(۲) عن بلال أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال لا تؤذن حتى يستبين لك الفجر و مد يديه هكذا، ابوداؤد (۱/۷۹)

په دی موضوع نورے هم ډیرے حوالے شته. د نورو په ذکر کولو خبره اوږدیږی. او اطمینان د پاره دا هم کافی دی.

(۲۶) کونړ ملا لیکی، هدایه ۹۳/۱ کښ دی، چه دزنانه پونډی دڅلورمی حصے نه کمه ښکاره شوه، نو مونځ ئے کیږی۔ او حدیث د ابوداؤد کښ راځی، چه ښکاره طرف دښپو پټول هم ضروری دی، پاځے لاپونډی الخ ص ۹۲

جواب :۔ کونړ ملا پنډو ته پونډی وائی، خدائے خبر چه دا لغت ئے له کومه راوایستو؟

**پونډی** ۔ کیدیشی چه کونړ ملا په پوندو قیاس کړے وی۔ چه د پښوشاته پوندی وائی، نو پنډو ته به پونډی ویلے کیږی۔ کونړ ملا په لغت کښ قیاس نه چلیږی عقل دِ نصیب شه۔

کونړ ملا تا چه د ابوداؤد دکوم حدیث حواله ورکړیده، نو داموقوف دے، او موقوف ستاسو په نیز دحجت نه دے، په مشکاة کښ ددی حدیث ذکرکولو نه روستو لیکی " وذکرجاعة وقفوه علی ام سلمة ؓ" مشکاة (۷۳/۱) او دمزید تفصیل دپاره نصب الرایه (۳۷۵/۱) طبع جدید اوګوره چه سترګے دِ یخی شی۔ کونړ ملا داسے استدلال کوی چه ځخپله پری عقیده نه لری۔ بله دا چه کونړ ملا ستاسو په نیزد خو ورون هم عورت نه دے۔ ځکه چه بخاری شریف کښ دی۔

"قال أنس حسر النبی صلی الله علیه وسلم عن فخذه" الحدیث بخاری باب ما یذکر فی الفخذ (۵۳/۱)
او کله چه وروں عورت نه دے، او ورون ترسپوغز پوری وی، او دا ظاهره خبره ده چه د پیغمبر علیه السلام حکم د نارینه او زنانه تپولو د پاره دے. نو اوس تاسو چه د بخاری په دی حدیث باندی عمل کوئ. نو نن سبے صرف جانګے اغوندئ او که څنګه؟ باقی مونږ دا نه وایو، چه پنډئ د ښکاره کوی، بلکه دا وایو چه که په مانځه کښ اتفاقًا ښکاره شوه. نو مونځ را ګرځول پرے نشته.
(۲۷) کوږ ملا بیکی" هدایه ۱/۹۵ کښ دی، چه بربنډ سړی به په ناسته مونځ کوی، او رکوع او سجده به په اشاره کوی، او حال دا دے چه په دی خبره څه دلیل نشته ص۹۲
جواب :- کوږ ملا معلومیږی چه لکه د زړه سترګی د ړندی دی، د سر سترګے د هم ړندے دی. هدایه والا په دی مسئله باندی د صحابه کرامو عمل ذکر کړیدے، وائی. "هکذا فعله رسول الله صلی الله علیه وسلم (۱- ۹۵) په دی باره کښی په نصب الرایه کښی دا آثار ذکر کړیدی.
(۱) عن عکرمة عن ابن عباس قال الذی یصلی

فی السفینۃ والذی یصلی عریانًا یصلی جالسا اھ

(۲) عن میمون بن مھران قال سئل عن علی عن صلاۃ العریان فقال إن کان حیث یراہ الناس صلی جالسا وان کان حیث لایراہ الناس صلی قائمًا اھ

(۳) معمر عن قتادۃ قال إذا خرج ناس من البحر عراۃ فأمّھم أحد صلوا قعودا وکان امام معھم فی الصف یومئون ایماءً اھ نصب الرایہ طبع جدید (۱/۳۷۷)

بلہ داچہ کونړ ملا ستاسو پہ نیزد کہ دامام کونہ بربنډہ وی، نوھم مونځ ئے کیږی، لکہ دعمرو بن سلمہ رض پہ حدیث مشکاۃ (۱/۱۰۱) کښې دی۔ او ددی حدیث نہ ئہ استدلال ھم کوے۔

اوس کونړ ملا ستا خپلہ خوښہ دہ، کہ پہ بربنډہ کونہ پہ ولاړے مونځ ورکوے، او امامت کوے او کہ پہ ئا ستی باندی، ستا خوښہ دہ۔ دغہ شان ستاسو پہ نیزد ښځہ ھم امام جوړیدے شی، نو کونړ ملا کہ چرتہ یوہ غیر مقلدہ ښځہ دغہ شان پہ بربنډہ کونہ امامت ورکوی، نوجواز بہ لری اوکنہ؟ بینوا توجروا۔ ځکہ چہ تہ خو ھم ځانتہ د مفتی نسبت کوے، او وائے چہ "فتاوی الدین الخالص" لیکم۔

(۲۸) کونړ ملا لیکی، ھدایہ ۱/۹۲ کښې راغلی، پہ خولہ

نیت د ځیل بنه کار دے، او حال دادے چه محمد الرسول اللهﷺ صلی الله علیه وسلم او صحابو او تابعینو دا کار ندی کړی ص۹۳ جواب :- کوم ملا تاسو چه په خوله نیت نه وایئے، نو معلومیږی چه په کومه به ئے وایئے، بل تاله پکار وُو، چه د حدیث نه د دمانځه دنیت پوره طریقه منودلی وے. چه مثلا دماسپخین دمانځه نیت به څنګه کوی - فرض او وخت به پکښی یادوی او کنه ؟ دا ټولے خبرے به د حدیث نه ثابتے کړے وے، چه او ګوره ددی حدیث نه په صراحت سره دمانځه دنیت طریقه معلومیږی، باقی حدیث " انما الأعمال بالنیات " نو ددی نه صرف نیت خو ثابتیږی، دنیت طریقه نو نه معلومیږی، ګوره دا ودس، تیمم او دمانځه طریقے د حدیثو نه ثابتے دی. تاله پکار وُو چه دنیت طریقه د هم د حدیث نه ثابته کړیوے. ګنی بیا به مونږ داوایو، چه کوم ملا په خوله نیت نه وائی، په کومه ئے وائی. باقی پاتے شوه دا حنافو په نیزد دنیت طریقه نو هغه په ردالمحتار او فتح القدیر او بحر کښی په تفصیل سره ذکر ده.

(۲۹) هدایه ۱/۱۰۰ کښی راځی، چه د الله اکبر په ځائے خدا بزرګ ووائی یا الله اجل ووائی نو دا جائز دی

س ۹۳، کومہ ملا وائی چہ دا سے ثابت نہ دی۔

جوابؒ :- کومہ ملا عقل د نصیب شہ، د اکبر معنی او پیژنہ سورہ یوسف کبنی دی " فلمارأینہ اکبرنہ " او مفسرین ددی معنی کوی " أی اعظمنہ "، نو اکبر پہ معنی د اعظم د ہ، نو ہرہغہ لفظ چہ ہغہ د اللہ تعالیٰ پہ عظمت دلالت کوی۔ پہ ہغے سرہ افتتاح صحیح کیبری۔ ځکہ د قرآن کریم الفاظ دی " وذکر اسم ربہ فصلی " او " وربك فکبر " د دینہ ہم دا معلومیبری چہ د تعظیم پہ ہر لفظ سرہ مونځ کیدیشی۔ او د حضرت ابو العالیۃ رحمہ اللہ نہ روایت دے،

" عن أبی العالیۃ أنہ سئل بأیّ شیئٍ کان الأنبیاء علیہم السلام یستفتحون الصلاۃ ؟ قال بالتوحید والتسبیح والتہلیل وروی عن الشعبی قال بأیّ شیئٍ من اسماء اللہ تعالیٰ افتتحت الصلاۃ أجزاك، وروی عن ابراہیم النخعی اذا سبح أو کبر او ہلل أجزأ فی الافتتاح او معارف السنن شرح ترمذی (۱-۵۴۰)

کومہ ملا ولےؔ " خدا بزرگ است " لفظ ستا پہ نیزد د اللہ تعالیٰ پہ عظمت با ندی دلالت نہ کوی، لیکن ددی باوجود ہونږ وایو چہ دا سے ویل جائز دی۔ او " اللہ اکبر " ویل غورہ او بہتر دی۔

(۳۰) کونړ ملا لیکي" هدایه ۱/۱۰۶ کښې دي چه امام به ربنا لك الحمد نه وائي، او حدیث کښې راځي چه نبي علیه السلام به لوستله ص ۹۳

جواب:- د کونړ ملا عقل د نصیب شه. ګوره بخاري او او مسلم کښې دي.

"إذا قال الإمام سمع الله لمن حمده فقولوا ربنا لك الحمد".

یعني کله چه امام سمع الله لمن حمده اووائي، نو تاسو ربنا لك الحمد اووایئ. او دینه تقسیم معلومیږي، او ګوره بخاري حدیث نمبر ۷۹۶ او مسلم حدیث نمبر ۴۰۹ او تقسیم د شرکت منافي دے، نو ددې وجے مونږ وایو، چه دغه حدیث د ابوهریرة رضي الله عنه د منفرد د پاره دے، او دا د امام د پاره، چه د دواړو په مینځ کښې تعارض ختم شي، بله دا چه ابن الهمام رحمه الله نقل کړي، چه امام صاحب نه دا روایت هم شته، چه امام به دواړه وائي.

"وفي شرح الأقطع عن أبي حنيفة رضي الله عنه يجمع بينهما الإمام والمأموم اه فتح القدير طبع جديد (۱/ ۳۰۵)

نو هلته دومره څه اختلاف پاتے نه شو.

(۳۱) کونړ ملا لیکی" هدایه ۱/۱۰۸ کښ دی، چه یواځې په پوزه اویا تندی باندی هم سجده کیږی، او حدیث کښ دی "لیسجد معك انفك" ص۹۳

جواب :- کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، په سجده کښې صرف پوزه لګول بغیر څه دعذر نه د امام ابوحنیفهؒ نه مرجوع عنها روایت دے. او اصل روایت ترے دا دے، چه بغیر څه عذر نه نه یوازے په پوزه سجده کول جائز دی او نه یوازے په تندی -

علامه ابن عابدینؒ د البحر الرائق په حاشیه کښ لیکی،
"قال فی الشرنبلالیة هذا قول أبي حنیفة أولاً والأصح رجوعه إلی قولهما الخ" البحر (۱ - ۳۱۷)

سره د دی چه په بخاری کښ صرف په تندی باندی د اکتفاء کولو حدیث هم شته، ګوره د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه نه روایت دے،

"البراء بن عازب و هو غیر کذوب قال کنا نصلی خلف النبی صلی الله علیه وسلم فاذا قال سمع الله لمن حمده لم یحن أحد منا ظهره حتی یضع النبی صلی الله علیه وسلم جبهته علی الأرض الخ" بخاری (۱/۱۱۳)

او د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے،

"عن ابن عباس قال امر النبی صلی اللہ علیہ وسلم أن یسجد علی سبعة اعضاء ولا یکف شعرا ولا ثوبا الجبهة والیدین والرکبتین والرجلین اهـ بخاری (۱/۱۱۲)

کونړ ملا عقل دِ نصیب شہ۔ کہ چرے پوزہ او تندے دواړہ جدا جدا اندامونہ اوګڼړلے شی، نو بیا بہ دا اا اندامونہ اوہ نہ بلکہ اتہ بہ شی۔ ګورہ دی حدیث کښی دی۔ تندے دواړہ لاسونہ درے شو، او دواړہ زنګنان، پنځہ شو، او دواړہ پښے، نو اووہ شو، پہ دی دواړو حدیثونو کښی د پوزی ذکر نشتہ، اوکہ پوزہ مستقل اندام وګڼړلے شی، نو بیا اندامونہ اتہ جوړیږی۔ یا تے شوہ داخبرہ چہ د ابن عباس رضی اللہ عنهما پہ حدیث "واشار بیدہ علی أنفه الخ بخاری (۱-۱۱۲) کښی پوزے تہ اشارہ، نو داځکہ چہ پوزہ د تندی سرہ نزدے دہ، اوکہ دا سے اونشی نو بیا بہ اندامونہ اووہ نہ بلکہ اتہ بہ شی،

**دکونړ ملا دھوکہ** کونړ ملا د بخاری حوالہ هم ورکړیږی او دا دھوکہ ترے ورکوی، چہ کښی " لیسجد معک أنفک " حدیث پہ بخاری کښی هم شتہ، او دا صرف دھوکہ دہ او دروغ دی۔ دا حدیث صرف پہ سنن کبری د بیهقی کښی دے۔

**دکونړ ملا تحریف ۴:۔** کونړ ملا د خپل عادت نہ مجبورہ

دے، دلته ئے پکښې لفظي تحریف کړیدے، دحدیث الفاظ دادي "ضع أنفك ليسجد معك" اوکونړ ملا بیکي "ليسجد معك انفك"

بله داچه داحدیث مرفوع نه دے، بلکه مرسل دے. امام ترمذي وائي چه دامرسل دے، او د لا مذهبو په دنیا کښې مرسل حجت نه دے. نوکونړملا، نه ترے په بل باندې څنګه حجت قائموے؟

(۳۲) کونړ ملا وائي، هدایه ۱/۱۰۸ کښ دي، چه که سجده کښې لاسونه او زنګنونه اوچت کړل او صرف ښپې اوتندې دِي اولګولو نوهم سجده کیږي. او دامسئله غلطه ده. او دا عادةً ممکنه نده الخ ص۹۴

جواب :- کونړملا عقل دِ نصیب شه، مسئله دا سے نه ده، چه څکني يو سړے دِ قصداً لاسونه یازنګنونه نه بږدي، بلکه دا مطلب دِ ے، چه که چرے داسے اوشي، نومونځ ئے کیږي اوکه نه؟ نو وائي کیږي. مثلاً يو سړے دے دهغه لاسونه نشته، اوهغه سجده کوي، یا چاورلِ لاسونه تړلي وي، يعني مکتوف وي. لکه دعبدالله بن عباسؓ په حدیث دابوداؤد (۱-۹۵) کښې دي. نو سجده ئے کیږي او که نه؟ یا دیو سړي زنګنان خوږ وي. اونه ئے شي لګولے، نو مونځ

ئے کیږی کنه ؟ کوم ملا ترے د خپل عقل مطابق دا صورت اخستے دے، چه لاهم ئے لا سونه پورته وی، اوهم ئے ژنگنونه، نو داعادةً محال دے. کوم ملا په غلط محمل با ندی عبارت محمل کوه، ترڅو چه ئے صحیح محمل متعین کیدے شی.

(۳۳) کوم ملا اعتراض کوی، هدایه ۱/ ۱۱۱ کښی دی، چه رو ستنو رکعتونو کښی فاتحه لوستل مستحب دی، او حدیث کښی راغی چه " لا صلاة لمن لم یقرأ بفاتحة الکتاب ص۹۴

جوابُ :- د حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دے،

"عن علی أنه قال اقرأ فی الأولیین وسبح فی الأخریین

رواه ابن المنذر عینی اھ حاشیه صحیح البخاری (۱/۱۰۷)

کوم ملا دا اثر د څلورم خلیفه راشد حضرت علی کرم الله وجهه دے. او د پیغمبر علیه السلام صحابی دے. ددی نه معلومیږی چه په اخیرنی رکعتونو کښی فاتحه لوستل ضروری نه دی، کوم ملا تا د حضرت ابوقتادة رضی الله عنه په حدیث کښی د لفظ " کان " نه په دوام استدلال کړیدے خو په دی ځائے کښی دِ پښنه خو ښُدلی ده، او سر دلا ندی را پریوتے ئے. امام نووی رحمه الله د مسلم په شرح کښی لیکی.

" ولا تغتر بقولها کان فان المختار الذی علیه

الأكثرون والمحققون من الأصوليين أن لفظة كان لايلزم منها الدوام ولا التكرار وانما هي فعل ماض يدل على وقوعه مرة، فان دل الدليل على التكرار عمل به والا فلا تقتضيها بوضعها الخ

نووی شرح مسلم (۱/۲۵۴)

کونږ ملا عقل د نصيب شه لږ ځان پوهه کړه، که چرے دی حديث په اخيری رکعتونو کښی د فاتحے په لزوم او دوام باندی دلالت کولے، نو يو خليفه راشد به د دی حکم ځنګه ورکولو، چه صرف تسبيح اووايه، کونږ ملا د صحابه کرامو نه ځان هو ښيار مه جوړوه - بلکه داچه ځمونږ په نيزد ئے لوستل افضل دی، فرض نه دی۔

(۳۴) کونږ ملا وائی، هدايه ۱/۱۱۱ کښی دی چه تورک په اخيره تحده نشته، اوحديث د بخاری کښی راځی چه شته، او ګوره مشکواة ۱/۷۵ - ص۹۴

جواب:- عقلمند کونږ ملا دلته دوه قسمه حديثونه راځی. د بخاری دحديث نه تورک ثابتيږی، او د سمرة بن جندب رضی الله عنه دحديث،

"نهی رسول الله صلی الله عليه وسلم عن الإقعاء والتورك في الصلاة، رواه الحاكم في المستدرك

والبیهقی کنز العمال (۴-۱۰۳) واسناد المستدرك

صحیح علی قاعدة کنز العمال اه اعلاء السنن (۳-۱۰۲)

نه د تورك منع معلومیږی.

دغه شان د حضرت عائشے رضی الله عنها نه روایت دے.

"وکان یفرش رجله الیسری وینصب رجله الیمنی

نصب الرایة طبع جدید (۱-۴۹۱) وروی البخاری فی

صحیحه (باب الأذان باب ۱۴۵) ورواه مالك فی

الصّلاة حدیث (۵) بلفظ " إنما سنة الصلاة أن

تنصب رجلك الیسری وتثنی الیسری اه وروی

الترمذی...... عن وائل بن حجر، قال قدمت المدینة،

قلت لأ نظرن إلی صلاة رسول الله صلی الله علیه وسلم

فلما جلس "یعنی للتشهد" افترش رجله الیسری ووضع

یده الیسری علی فخذه الیسری ونصب الیمنی، اه وقال

حدیث حسن صحیح اه. نصب الرایه طبع جدید (۱-۴۹۲)

د دی حدیثونو نه معلومیږی، چه سنت طریقه افتراش ده

تورك نه دے. د دی وجے نه صاحب الهدایه وائی، چه

تورك د عذر او بوډا والی په حالت محمول دے. دا سے

په د واړو حدیثونو کښ جمع راغله، او کوم ملا عقل د

نصیب شه، نه خو یو حدیث اخلی او بل داسے پریږدی،

لکه چه د سره هډو حدیث نه وی. دیته وائی نفس پرستی، او تعصب. اللهم أرنا الحق حقا وارزقنا اتباعه ،

کونړ ملا گوره په بخاری کښ د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دے.

"عن عبد الله بن عبد الله أنه أخبره أنه كان يرى عبد الله بن عمر يتربع فی الصلاة إذا جلس ففعلته وأنا يومئذٍ حديث السن فنهانی عبد الله بن عمر وقال إنما سنة الصلاة أن تنصب رجلك اليمنى وتثنی اليسرى فقلت إنك تفعل ذلك فقال إن رجلای لا تحملانی ام صحیح بخاری (۱-۱۱۴)

په دی حدیث کښ هم افتراش ته سنت ویلی شوی دی، کونړ ملا سنت طریقه هم دغه دا فتراش طریقه ده، کومه چه احناف کوی، او بس. ځکه چه د دی طریقے په سنت کیدو باندی په حدیثونو کښ تصریح شوید ه.

(۳۵) کونړ ملا لیکی" هدایه ۱/۱۲۰ کښ دی، چه امام به د سحر اولنی رکعت اوږد کوی او نورو مونځونو کښ به ئے یوشانته کوی، او حال دا دے چه حدیث کښ راځی چه په ټولو مونځونو کښ به اول رکعت اوږد کوی، بخاری ۱/۱۰۷، ص ۹۳

جواب ۱- فتح القدیر کښ دی.

فان تلك الاطالة معتبرة عند ابی حنیفة والمعتبرة اكثر من ذلك القدر، وقد قدرت بأن یقرأ فی الاولی بخمس وعشرین وفی الثانیة بتمام الاربعین الخ
فتح القدیر طبع جدید (۱-۳۴۳)

## دکونړ ملا دروغ بې فروغ ۷-

کونړ ملا لیکی " په ټولو مونځونو کښې به اول رکعت اوږد کوی، بخاری (۱-۱۰۷) لیکن د بخاری حدیث اوګورئ .
" ان النبی صلی الله علیه وسلم کان یطول فی الرکعة الاولی من صلاة الظهر ویقصر فی الثانیة ویفعل ذلك فی صلاة الصبح " او بخاری (۱ - ۱۰۷)

په دی حدیث کښې صرف د دوو یعنی د ماسپخین او سحر د مانځه ذکر دے. او کونړ ملا وائی . چه د ټولو مونځونو ذکر دے ، معلومیږی، چه کونړ ملا څو پورے دروغ نه وی ویلی، د وړئ ئے نه هضمیږی. ګویا دروغ ده له د سیون اپ کار ورکوی، په سیون اپ کښې خو بیا هم اډرتے وی. او کونړ ملا پکښې اډرتے هم نه کوی.

(۳٦) کونړ ملا اعتراض کوی چه هدایه ۱/۱۲۰ کښې دی، چه د سورتونو تعین د مانځه لپاره مکروه دی، او

حدیث کښې د سورتونو تعین د بعضی مونځونو لپاره ثابت دی، لکه سورة اعلی او غاشیه د جمعې په مانځه کښې، وګوره مشکوٰة ۱/۹۲ او ص ۹۵

جوابُ :- کونډ ملا عقل دِ نصیب شه، په حدیث کښې دا سې څه صراحت نشته، چه هم صرف دغه سورتونه به لولی۔ نور به نه لولی، نو تعیین له کومه راغے۔ په مختلفو مونځونو کښې د پیغمبر علیه السلام د قراٗت نقشه څه دا سې غونډے ده۔

## د سحر مونځ :-

(۱) عن جابر بن سمرة قال کان النبی صلی الله علیه وسلم یقرأ فی الفجر بق والقرآن المجید ونحوها

(۲) عن عمرو بن حریث أنه سمع النبی صلی الله علیه وسلم یقرأ فی الفجر والليل إذا عسعس۔

(۳) عن عبد الله بن السائب قال صلی لنا رسول الله صلی الله علیه وسلم الصبح بمكة فاستفتح سورة المؤمنین۔

(۴) عن ابی هریرة قال کان النبی صلی الله علیه وسلم یقرأ فی الفجر یوم الجمعة بالٓمٓ تنزیل فی الرکعة الاولی وفی الثانية هل اتی علی الإنسان۔

(۵) عن أبی هریرة قال إن رسول الله صلی الله علیه

وسلم قرأ فی رکعتی الفجر قل یا ایها الکفرون وقل هو الله
أحد ،

او دا د سحر د سنتو په باره کښې دی۔

(۶) عن ابن عباس قال کان رسول الله صلی الله علیه
وسلم یقرأ فی رکعتی الفجر قولوا آمنا بالله وما
انزل إلینا والتی فی آل عمران قل یا اهل الکتاب تعالوا
إلی کلمة سواء بیننا وبینکم ۔

دا هم د سحر د سنتو په باره کښې دی۔

## د ماسپښین مونځ :۔

(۱) عن أبی سعید الخدری قال کنا نحزر قیام رسول الله
صلی الله علیه وسلم فی الظهر والعصر فحزرنا قیامه
فی الأولیین من الظهر قدر قرأة الٓمٓ تنزیل السجدة۔

(۲) عن جابر بن سمرة قال کان النبی صلی الله علیه وسلم
یقرأ فی الظهر باللیل إذا یغشی وفی روایة بسبح
اسم ربك الأعلی۔

## د مازیګر مونځ :۔

عن أبی سعید الخدری ......... وحزرنا فی
الرکعتین الأولیین من العصر علی قدر قیامه فی
الأخریین من الظهر الخ

## دماښام مونځ :-

(۱) عن جبیر بن مطعم قال سمعت رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم یقرأُ فی المغرب بالطور۔

(۲) عن ام الفضل بنت الحارث قالت سمعت رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم فی المغرب بالمرسلٰت عرفا۔

## دماسختن مونځ :-

(۱) عن جابر ........ فأقبل رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم علی معاذ فقال یامعاذ أفتان أنت اقرأ والشمس وضحٰها والضحٰی واللیل إذا یغشی وسبح اسم ربك الاعلیٰ۔

(۲) عن البراء قال سمعت النبی صلی اللّٰه علیه وسلم یقرأُ فی العشاء والتین والزیتون۔

دا د مشکاة (۱ - ۷۹، ۸۰) نه د پیغمبر علیه السلام د مونځونو نقشه ده، چه په مختلفو وختونو کښې ئے مختلف سورتونه لوستلی دی۔ داسی نه دی، چه صرف یو سورت ئے متعین کړے وی، چه هم صرف هغه به لولی، بل به نه لولی۔ لکه چه دکونړملا ظن فاسد دے۔ محکه احناف وائی، چه په دی ډول د سورت تعیین ثابت نه دے۔ فتح القدیر کښی دی،

"قال الطحاوی والاسیجابی هذا اذا رآه حتما یکره غیره، اما لوقرء للتیسیر علیه أو تبرکا بقراءته صلی الله علیه وسلم فلا کراهة لکن بشرط أن یقرأ غیرها احیانا لئلا یظن الجاهل (لکه کوڼړملا) أن غیرها لا یجوز اه فتح القدیر (۱/۳۴۴)

کوڼړملا په دې مسئله کښې د تلبیس ابلیس نه کار اغستے دے

(۳۷) دامامت د پاره شرطونه ص۹۵

جواب :- دا خبره صحیح ده، چه څینې کتابونو د امامت د پاره بعضې داسے شرطونه ذکر کړیدي، چه د کتاب وسنت نه ثابت نه دي، بلکه ذکر کول ئے هم نامناسب دي، د کتاب الله نه سیوا بل داسے کتاب نشته چه په هغې کښې کمزورے مسئلے ذکر نه وي، د عقلمند سړي دا کار دے، چه په " خذ ما صفا ودع ما کدر " باندې عمل اوکړي، خو د کوڼړملا دا طریقه خوښه نه ده، یعني د عقل په لاره تلل ئې خوښ نه دي، ځکه ئے اعتراض اوکړو، او غیر مفتی بها اقوال ئے ذکر کړه، د کتاب الله نه سیوا بل داسے کتاب د بیر کم کوز وي، چه په هغې کښې غلطیانے او نامناسبه خبرې نوي. یوازے د فقې کتابونه نه دي. په هر قسم کتابونو کښې داسے غلطئ شته، پخپله د غیر مقلدینو کتاب

"نزل الابرار من فقه النبی المختار" د وحید الزمان صاحب
کښې بیشماره غلطے او حیا سوزه مسئلے شته، چه ذکر کولو
قابلے نه دی، بلکه ګوره د بخاری جلد ثانی کتاب التفسیر
کښې" باب قول الله تعالیٰ نساء کم حرث لکم فأتوا حرثکم
أنیّ شئتم" کښې امام بخاریؒ حدیث راوړې چه لدینه
د ښځې سره وطی فی الدبر مراد ده، حالانکه په دې باندې
په حدیث کښې لعنت راغلے- بل حدیث "إنما الماء من الماء"
بالاتفاق منسوخ دے، او امام بخاریؒ هم ذکر کړے او هم
ئے قائل دے- په تفسیرونو کښې هم داسے کمزورے خبرې
شته، ګوره تفسیر قرطبی ډیر مشهور تفسیر دے، او
په دیکښې دی، "وقد قال الأصبغ من علمائنا یجوز له أن
یلحسه بلسانه او تفسیر قرطبی (۱۲/۲۳۲) یعنی د خاوند
د پاره د ښځې شرمګاه ستل جائز دی، او څه وایم چه
کوږ ملا تا به هم چرے په دې مسئله عمل نوی کړے، او
ستلے به دِ نوی- یا د غیرمقلدینو په کتاب "فقه محمدی"
کښې دی- چه منی پاکه ده، او په یو روایت کښې خوړل
ئے هم جائز دی، او څه وایم، چه کوږ ملا تا به هم چرے
خوړلے نه وی. خو دا کمزورے مسئلے هر ځائے شته.

این گناهیست که در شهر شما نیز کنند

کوڼ ملا ! موږ د امام ابوحنیفه رح د فقې اتباع کوو، د هرڅا قول چه تر څو پورې د ادلهٔ اربعه نه څه دلیل نه وي، نه ئې اخلو، اګر که د حنفي فقې په کتابونو کښې ئې ذکر کړې وي.

(۳۸) کوڼ ملا اعتراض کوي چه هدایه کښې دي، چه ړوند او غلام پسې مونځ مکروه دے ص۹٦

جوابٌ :- کوڼ ملا عقل د نصیب شه، په ړوند پسې د مانځه د کراهت وجه په کتاب کښې ذکر ده، خو تا په سترګو د تعصب پټې کلکې تړلي دي، څه درنه سکاري نه، او هسې لګیائې چه" بیا به د دا سې ډیلی وُو چه څوک ځان د نجاست نه نشي ساتلے ص٩٦. ګوره هدایه کښې دي.

" والأعمی لأنه لا یتوقی النجاسة (۱/۱۲۲)

یعنی د کراهت وجه دا ده چه ړوند سړے د نه لیدو په وجه سره ځان له ګندګۍ نه نشي بچ کولے. نو کیدیشي چه جامې ئې پلیتې شوې وي. او س که د ړوند سره خادم وي، یا بل څوک چه په لاره ئې د ګندګۍ نه بچ کوي، نو د کراهت د منتفي کیدو سره کراهت هم منتفي شو. او مونځ ورپسې بغیر څه د کراهت نه جائز دے. او د غلام سره هم علت موجود دے " لأنه لا یتفرغ للتعلم (۱/۱۲۲)

یعنی غلام د آقا د خدمت نه د نه اوزګاریدو په وجه سره د علم حاصلولو ته نشي نا رغیدے . لیکن که غلام عالم فاضل وی، نو بیا هیڅ کراهت نشته .

(۳۹) کوږ ملا لیکی، هدایه ۱/۱۲۳ کښ دی چه زنانو دپاره یواځے جماعت مکروه دے، او حدیث دابوداؤد کښی دی چه محمد رسول صلی الله علیه وسلم ام ورقه دیو محلی امام کړځولی وه الخ صـ۹٦

جواب :- کوږ ملا عقل دِ نصیب شه، دا حدیث ضعیف دے، اوګوره په دی حدیث یا ندی حاشیه ع۱۸ ابی داؤد طبع ایچ ایم سعید . ځکه چه ددی حدیث په سند کښ ولید اوعبدالرحمن بن خلاد ضعیف راویان دی، اوګوره حاشیه مذکوره نو دضعیف حدیث نه دِ استدلال کړیدے.

## دکوږ ملا دروغ :-

کوږ ملا وائی، چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اُم ورقة دیو محلی امام کړځولی وه . او حال دا دے، چه په دی حدیث کښ " د محلی امام کړځولی وه " الفاظ هډو دسره شته هم نه - دا یکښ کوږ ملا د ځانه دس کړیدے. کوږ ملا ته وایه تاپدی حدیث یا ندی عمل کړیدے که نه، او ښځه دِ دَ

معلی امامه جوړه کړیده او کنه ؟

(۴۰) کونړ ملاوائي - هدایه ۱/۱۲۳ کښ دی، چه د معصوم ممیز مونځ نه کیږی، او حدیث د بخاری مشکاة ۱/۱۰۰ کښی راځی چه عمرو بن سلمهؓ د اوو کالو په عمر کښی کړی ده صـ ۹۷ -

جواب :- اوله خبره دا ده چه دا د پیغمبر علیه السلام په حکم سره نه وه، او نه داسی روایت شته چه پیغمبر علیه السلام ته پته لګیدلی وی، او پیغمبر علیه السلام پرے خاموشه پاتے شوی وی - بله دا چه ستر عورت ضروری دے، او په دی حدیث کښی راځی -

"وکانت علیّ بردة کنت إذا سجدت تقلصت عنی فقالت امرأة من الحی ألا تغطون عنا است قارئکم الخ مشکاة (۱/۱۰۰)

وائی ځما یو څادر وُو، چه سجده به مې کوله نو هغه به ځما نه اوخوئیدو - او څه به بربنډ شوم، نو د محلے یوے ښځے خلقو ته اووے، چه تاسو څوک نه د خپل امام شرمګاه ولے نه پټوئی - نو کونړ ملا اوس که تاسو په حدیث عمل کوئی - نو کونه به بربنډوئی، ګنی بیا خو په نیم حدیث عمل شو، " أفتؤمنون ببعض الکتاب الخ

هدغه وجه ده چه دسنن نسائی په حاشیه کښې په حدیث باندې لیکلی دی،

"فعلوا ذلك باجتهادهم لم يطلع النبي صلى الله عليه وسلم على ذلك"،

اوس په دې باره کښې دامت دمشرانو فتوی اوګوره۔

(۱) عن ابن مسعود قال لا يؤم الغلام حتى تجب عليه الحدود اهـ اعلاء السنن (۴ - ۲۶۸)

(۲) عن ابن عباس قال نهانا أمير المومنين عمر أن يؤم الناس في المصحف ونهانا أن لا يؤم إلا المحتلم اهـ اعلاء السنن (۴ - ۲۹۹)

(۳) عن عمر بن عبد العزيز قال لا يؤم من لم يحتلم اهـ اعلاء السنن (۴ - ۳۰۰)

کوثر ملا! دعمرو بن سلمة رضی الله عنه دا واقعه دصحابه کرامو نه پته پناه نه وه، خو دوئ ددینه استدلال نه دے کړے، بلکه په نابالغ پسے دمانځه نه ئے منع کړېده۔ نو ته دصحابه کرامو نه ځان ولے هوښیار ګڼړے؟ عقل دِ نصیب شه۔

## دکوثر ملا تضاد بیانی :- کوثر ملا په ص ۳۹

اعتراض کښې واﺋې چه" بیا اقتداء بالصبیان رانمي قند بره، صـ۹۵
او پخپله د عمرو بن سلمة رضی الله عنه د اوو کالو په عمر
کښې د امامت نه استدلال کوی، ولې دا اقتداء بالصبیان
نه ده ۔ صحیح خبره ده." دروغ گورا حافظ نباشد"

(۴۱) کونړملا د محاذاة په مسئله باندې اعتراض
کوی، صـ۹۷

جواب :۔ د محاذاة د پاره مصنف رح دا حدیث پیش
کړیدے ۔ علامه قاسم بن قطلوبغا په "منیة الألمعي"، کښې لیکي.
"قلت ذکره رزین العبدری من حدیث حذیفة و
عبسة، نقله ابن الأثیر فی جامع الأصول فی المواعظ
والرقائق اهـ منیة الألمعي فی آخر نصب الرایة طبع
جدید (۵ - ۵۵)

او دغه شان د عبد الله بن مسعود رض نه په مصنف عبد الرزاق
کښې روایت دے ۔ او په فتح القدیر کښې دی.
"ورجاله رجال الجماعة (۱ - ۳۱۲) اهـ اعلاء السنن (۴/۲۵۴)
او دا مسلمه قاعده ده ۔ چه د صحابي موقوف غیر مدرک
بالعقل د مرفوع حدیث په حکم کښې وی، او احنافو د محاذاة
بنیاد پدې باندې ایښے دے ۔ په دی مسئله کښې نور آثار
هم شته ۔

(۱) عن الحارث بن معاوية أنه رکب إلی عمر بن الخطاب یسأله عن ثلاث خصال ........
قال ربما کنت أنا والمرأة فی بناء ضیق فتحضر الصلاة فان صلیت أنا وهی کانت بحذائی فان صلت خلفی خرجت من البناء قال تستر بینك وبینها بثوب ثم تصلی بحذائك إن شئت،
الحدیث رواه أحمد مجمع الزوائد (۱-۷۶) اعلاء السنن (۳-۲۵۳)

(۲) عن ابراهیم فی رجل یکون بینه و بین الإمام حائط قال: حسن مالم یکن بینه وبین الامام طریق أو نساء اه کتاب الأثار للامام محمدؒ ص۲۳

(۳) عن ابراهیم قال إذا صلت المرأة إلی جانب الرجل وکانا فی صلاة واحدة فسدت صلاته اه
کتاب الأثار ص۹۷

ابراهیم نخعیؒ تابعی دے، او لدینه مخکښې آثار د صحابه کرامو دی، او د صحابي موقوف غیر مدرك بالعقل حدیث د مرفوع حدیث په حکم کښې وی، اوس راشه د کونړ ملا تورپکو ته اوګوره،
وائی " که دا حدیث ته یو محقق عالم ته پیش کړی

نو هغه به ئے د سره مرفوعًا او نه پیژنی ص۹۷

کونړملا ورته هم حدیث وائی . او هم دیهودو پشان افتراء
کوی، چه داکنی له ځانه جوړکړے شوید ے . حالانکه حوالے
ئے تیرے شوے . بله داچه کونړملا ته محقق چاته وائی .
که د ځان پشان محقق یادوے، چه هر وختے د شوکانی
د غه ستنی . نو بیاٹهیک ده . اوکه نه واقعی محقق یادوے
نو دا عبدالرزاق نقل کړے، دا مام بخاری استاذ ، او ابن
همام او ابن قطلوبغا نقل کړید ے ، او دوئی د محقق کیدو
اهل علم قائل دی . باقی پاتے شوه د مرفوع کیدو خبره
نو مونږ وایو چه دا معنیً موقوف دے . او پاتے شوه
د ښځو د صف مسئله نو دا بچو بچو ته معلومه ده چه دسړو
نه به روستو او دریږی ، بجرے جماعت نه حاضرے شی .

(۴۲) کونړملا وائی، هدایه ۱/۱۲۶ کښ دی ، چه معذور
پسے مونځ نه کیږی ، او حدیث کښ راځی " یؤم القوم
أقرأهم لکتاب الله ص۹۸ .

جواب ۱. کونړملا عقل د نصیب شه ، صاحب الهدایه
ددی مسئلے دپاره حدیث " الإمام ضامن " نقل کړیدے .
او وائی .

" والشیئ لا یتضمن ما هو فوقه " والامام ضامن

بمعنی تضمن صلاة المقتدی (۱-۱۲۶) او حدیث "الإمام ضامن" ابو داؤد، ترمذی، ابن ماجة، او مسند احمد کښی دے. تفصیل نصب الرایه طبع جدید (۲-۵۷) کښی او ګوره.

عقلمند کوټه ملا وائی، تاسو "یؤم القوم أقرأهم لکتاب الله" په مطلق ولے عمل نه کوئی، کوټه ملا عقل دِ نصیب شه. اول خو دا حدیث مستدل نه دے. مستدل "الإمام ضامن" دے، بل دا حدیث مطلق نه دے، ګوره که چرے ته هم قاری ئے، او باد درنه تلی وی، پسکښ دِ اچولی وی، نو اګر که ته قاری ئے. خو پتا پسے مونځ نه کیږی. بله داچه د اقرأ نه أعلم مراد دے. لکه امام محمد په کتاب الآثار کښ وائی "کان أقرأهم أعلمهم"، او په دی دلیل د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه امامت دے. پیغمبر علیه السلام پخپل مرض وفات کښی حضرت صدیق اکبر ماڅه ته مخکښ کړو، سره د دے چه د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه په باره کښ د "أقرأ" الفاظ راغلی دی. کوټه ملا عقل دِ نصیب شه، "یؤم القوم أقرأهم الخ" د "من احق بالإمامة" د مسئلے سره متعلق دے. او نه ئے د معذور په مسئله

کښې راوړے، ع

برین عقل و دانش بباید گریست

او بیا لاځان په محققینو کښې هم شماری، د تحقیق نه دِ درجارسم۔ مولانا روم رحمه الله په مثنوی کښې لیکی،چه یو سړی استنجاء کوله، او دا دعا "اللّٰهم ارحنی رائحة الجنة" ئے لوستله، یو بل سړی واؤریده نو ورته ئے اووے، ع

گفت شخصے وردِ خوب آوردهٔ
لیک تو سوراخ را گم کردهٔ

په کونړ ملا هم هغه کا نه شو یده۔

(۴۳) کونړملاوائی "هدایه ۱/۱۲۷ کښې دی. چه دمفترض په متنفل پسے دا رنګه د بل فرض مونځ والا پسے مونځ نه کیږی، او حدیث د بخاری ۱/۹۲، مشکاة ۱/۱۰۳ کښې دی، چه کیږی ص۹۸

جواب :- کونړملا عقل دِ نصیب شه، احناف دبخاری ددی حدیث "إنما جعل الإمام لیؤتم به فلا تختلفوا علیه" رواه البخاری ومسلم، نصب الرایه طبع جدید (۲/۵۲) نه استدلال کوی، اوس که امام یو مونځ کوی، او مقتدی بل، نو دا اختلاف دے، او ددی حدیث په وجه سره

منع دے، باقی د حضرت معاذ رضی اللہ عنہ د حدیث نہ استدلال، نو مونږه وایو کہ حضرت معاذ رضی اللہ عنہ پہ پیغمبر علیہ السلام پسے فرض مونځ کولو، او بیا ئے قوم تہ مونځ ورکولو، او دا ددوئ نفل وُو، او کوم ملا تړے پہ اقتداء المفترض خلف المتنفل با ندی استدلال کوی، نو مونږه وایو چہ بیا پہ صلاة الخوف کښی ولے دوه ډلے جوړیږی۔ نیم مونځ یو ډلے تہ او نیم بلے ډلے تہ ورکوی، بیا خو پکار وه چہ یوے ډلے تہ ئے ځان لہ مونځ ورکړے وے، او بلے ډلے تہ ځان لہ۔ نو د سره هډو دا تلہ راتلہ بہ پکښی نہ کیده۔ او سره د دے صلاة الخوف هم پہ دی ډول مشروع دے۔ هرے ډلے تہ بہ نیم نیم مونځ ورکوی، او کہ چرے حضرت معاذ رضی اللہ عنہ د پیغمبر علیہ السلام سره فرض مونځ کولو، او بیا ئے قوم تہ د مونځ ورکولو پہ وخت د فرضونیت کولو، نو بیا دا د حدیث ابن عمر " لا تصلوا صلاة فی یوم مرتین " رواه الطحاوی وابن حزم - نہ خلاف راځی۔ نو کیدیشی چہ حضرت معاذ رضی اللہ عنہ پہ پیغمبر علیہ السلام پسے نفل کول، او د قوم سره ئے فرض۔ باقی دا چہ پہ بعضے روایاتو کښی راځی " هی لہ تطوع ولهم فریضة "، نو دا زیادت ثابت

نه دے ، سیوا د امام شافعیؒ نه ، او کید بیشی چه دا دد وی اجتهاد وی۔ واللہ اعلم

(۴۴) کونړ ملا اعتراض کوی ، هدایه ۱/۱۳۰ کښی دی که په تشهد کښی چا ( لکه کونړ ملا ) باد واچول ، او یا ئے اوخندل نو مونځ ئے اوشو ص۹۹

جواب :- (۱) دعبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دے۔

" عن عبد الله بن عمر قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم إذا احدث الرجل وقد جلس فی آخر صلاته قبل أن یسلم فقد جازت صلاته او ترمذی (۱/۹۳)

(۲) دعبد الله بن مسعود رضی الله عنه موقوف حدیث دے۔
" وقال فاذا فعلت ذلك اوقضیت هذا فقد تمت صلاتك إن شئت أن تقوم فقم وإن شئت أن تقعد فاقعد ، رواه الطحاوی (۱-۱۶۳) ابوداؤد (۱-۱۳۹)

دا اگر که موقوف دے ، خو په حکم د مرفوع کښی دے ، لکه چه غیر مدرك بالعقل دے ، د دینه معلومیږی چه د تشهد وئیل یا دومره شیبه کیناستل هم کافی دی ، او نور څه زیاتی پرے نشته ، که کینا ستو نو هم ښه او که کینه ناستو نو هم ښه ، کونړ ملا یو حدیث ته گوری او د نورو نه

ستر مے پټوی، کونړ ملا ددی دا مطلب نه دے، چه نه دسلام په ځائے مباد اچوه، بلکه مطلب ئے دا دے چه کړے داسے اوشی، او باد درنه لاړشی، نو موږ دِ اوشو اوکنه؟ نو ددی حدیث نه معلومیږی چه موږ داوشو راکرځول ئے نشته. باقی ستا داخبره چه حدیث نشته نو دا دروغ دی.

**(۴۵)** کونړ ملا اعتراض کوی، چه هدایه (۱-۱۳۰) کښی دی چه څوك دسحر په مانځه ولاړوی، اونمر پرے راوختلو نو مونځ ئے فاسد شو. او محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی، "فلیتم صلاته، بخاری ۱/۷۹، مشکاة ۱/۱۱ او دا قیاس په مقابله دنص کښی دے ص۹۹

جواب :- کونړ ملا عقل دِ نصیب شه. په دی وخت کښی دمانځه نه منع راغلی ده،

"عن عقبة بن عامر الجهنی یقول ثلاث ساعات کان رسول الله صلی الله علیه وسلم ینهانا أن نصلی فیهن أو ان نقبر فیهن موتانا حین تطلع الشمس حتی ترتفع وحین یقوم قائم الظهیرة حتی یمیل الشمس وحین تضیف الشمس للغروب حتی تغرب اھ رواه مسلم (۱-۲۷۶)

باقی ستا د اخیره چه دا منع د نفلونو نه راغلی ده، نو داستا د جهالت کرشمے دی، او بل په دی تقیید ستا سره هیڅ دلیل نشته، چه دا منع صرف د نوافلو نه ده، د عامو مونځونو نه نه ده، که څه دلیل درسره وے، نو تا به ښودلے وے، خو څه شته دے نه۔

کوږ ملا عقل دِ نصیب شه، اوقات مکروهه دوه قسمه دی: یو هغه چه هیڅ مونځ پکښی جائز نه دے، هغه دا دری وختونه دی، چه د عقبه بن عامر رضی الله عنه په حدیث کښی تیر شو۔ او دویم هغه چه صرف نوافل پکښی منع دی۔ قضاء پکښی منع نه دی۔ او هغه د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما په دی حدیث،

"أن النبی صلی الله علیه وسلم نهی عن الصّلاة بعد الصبح حتی تشرق الشمس وبعد العصر حتی تغرب"[۱]

[۱] رواه البخاری باب الصلاة بعد الفجر حتی ترتفع (۱-۸۲)

کښی دی، کوږ ملا عقل دِ نصیب شه، ته د یو حدیث مطلب د بل نه ثابتوے، گو یا دلته دِهم د مولانا روم د قول

گفت شخصے ورد خوب آوردهٔ
لیک تو سوراخ را گم کردهٔ

مطابق کار کړیدے۔

(۳۶) کونړملا اعتراض کوی، هدایه ۱/۱۳۲ کښ دی۔ چه په مانځه کښ چا سهواً خبری اوکړی، نو مونځ فاسد شو، او حدیث کښ راځی چه نبی علیه السلام خبری کړی دی، بخاری او مسلم ۱/۲۱۲ ص۹۹

جواب :- مونږ وایو چه دا حدیث منسوخ دے، نو کونړملا وائی۔ ولے ته بل پیغمبر راغلے ؟ دکونړملا داخیال دے، چه دنسخ دپاره دبل پیغمبر ضرورت دے۔ دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په قول باندی نشی منسوخ کیدے. کونړملا کور دِ وران شه، خانه دِ ړنګه شه، چرته قادیانے خو نه ئے، کمے نو اووایه چه بیا درسره په بل انداز خبرے اوکړو۔ کونړملا ستا دا اعتراض خو په پیغمبر علیه السلام باندی راځی، چه هغوی په مانځه کښ دخبرو نه منع کړیده۔ اوګوره امام نوویؒ دحضرت معاویة بن الحکم رضی الله عنه په حدیث باندی داسے باب تړلے دے" باب تحریم الکلام ونسخ ما کان من اباحته " نو بیا خو ستا دا اعتراض په امام نوویؒ باندی هم شو، چه هغه ته دا خپل " ارشادات " وروړاندی کړے.
دحضرت معاویة بن الحکم رضی الله عنه حدیث دا دے۔
"عن معاویة بن الحکم السلمی قال بینا انا اصلی مع

رسول الله صلی الله علیه وسلم إذا عطس رجل من القوم فقلت یرحمك الله فرمانی القوم بابصارهم فقلت واثکل امیاه ما شأنکم تنظرون إلیّ فجعلوا یضربون بأیدیهم علی أفخاذهم فلما رأیتهم یصمتوننی لکنی سکت فلما صلی رسول الله صلی الله علیه وسلم فبأبی وامی ما رأیت معلما قبله ولا بعده احسن تعلیما منه فوالله ماکهرنی ولا ضربنی ولا شتمنی ثم قال إن هذه الصلاة لا یصلح فیها شیئ من کلام الناس إنما هو التسبیح والتکبیر وقرأة القرآن الخ. مسلم (۱-۲۰۳)

او بل حدیث د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه،

عن عبد الله قال کنا نسلم علی رسول الله صلی الله علیه وسلم وهو فی الصلاة فیرد علینا فلما رجعنا من عند النجاشی سلمنا علیه فلم یرد علینا فقلنا یا رسول الله کنا نسلم علیك فی الصلاة فترد علینا. فقال إن فی الصلاة شغلاً اه مسلم (۱-۲۰۴)

دغه شان د زید بن ارقم رضی الله عنه حدیث،

"کنا نتکلم فی الصلاة یکلم الرجل صاحبه وهو إلی جنبه فی الصلاة حتی نزلت" وقوموا لله قانتین" فأمرنا بالسکوت ونهینا عن الکلام اه شرح نووی (۱-۲۰۴)

نوکونړ ملا په مانځه کښې د خبرو اترو نه منع هم په آیت
سره شویده، او هم په حدیث سره ، او د حضرت زید او د
حضرت ابن مسعود رضی الله عنهما د حدیث نه هم دا معلومیږي
چه مخکښې په مانځه کښې خبرے اترے کول جائز وے ، او
بیا منع شوے ، نو دا نسخ هم د الله تعالیٰ په حکم او هم د محمد
رسول الله صلی الله علیه و سلم په قول سره شویدے، د بل
پیغمبر راتلو ته ضرورت نشته - ستا به هسے قادیانے خوښې
شوے وی ، خو واوره ، قادیانے کذاب او دجال دے - ځاله
چرته قادیانے نشے ، بیړه به دِ چپه شی ،

باقی د مسلم شریف ص۲۱۲ ج-۱ باندی د عبدالله بن مسعود
رضی الله عنه د حدیث نه استدلال ، نو ظاهره دا ده چه دا خبرے
اترے د مانځه نه روستو شویدی . او ګوره شرح نووی (۲۱۳/۱)
دا ځکه چه د تحریم د احادیثو سره ئے موافقت راشی . ګنې
بیا به په احادیثو کښې بنبکاره تعارض راشی - بله دا چه د
غیرمقلدینو په نیزد د صحابه کرامو عمل حجت نه دے ، لکه
شوکانے چه وائی ، نو کونړ ملا ته په کومو سترګو ترے
استدلال کوے؟

(۴۷) کونړ ملا اعتراض کوی ، چه هدایه ۱۳۶/۱ کښې راځی
چه څوک د امام له فتحه ورکړی ، او هغه بل آیت ته نقل شی

نو د فتح ورکونکی مونځ فاسدیږی....... او احادیث کښی راځی چه نه فاسدیږی، مشکاة ۵۳/۱ ص۱۰۱

جواب ۱- داحنافو په نیزد مفتی به قول دا دے، چه نه دفتح ورکونکی مونځ فاسدیږی او نه دامام ۔ دهدایے مسئله مفتی به قول نه دے، بلکه مرجوح قول دے، فتاوی شامی کښی دی،

"قوله (بخلاف فتحه علی إمامه فانه لایفسد مطلقاً لفاتح وآخذ بکل حال) أی سواء قرأ الامام قدر ما تجوز به الصّلاة أم لا، انتقل إلی آیة اخری أم لا، تکرر الفتح أم لا هو الأصح اه ردالمحتار (۱-۶۲۲)

او په البحر الرائق شرح کنزالدقائق کښی دی،

"فصار الحاصل أن الصحیح من المذهب أن الفتح علی امامه لا یوجب فساد أحد لا الفاتح ولا الآخذ مطلقًا فی کل حال اه البحر (۲-۶)

او کله چه صحیح او مفتی به مذهب دا دے، چه په فتح ورکولو سره د هیچا مونځ نه فاسدیږی، نو مذهب د حدیث شریف مطابق او موافق دے. کونړ ملا عقل د نصیب شته اعتراض له کوم کوے؟

(۴۸) کونړ ملا اعتراض کوی" هدایه ۱۴۴/۱ کښی دی، چه وتر درے رکعته دی، او یو رکعت وتر نشته. او حدیث

کی راجح "من احب أن یوتر بواحدة فلیفعل" مشکاة (۱/۱۱۲)
ص ۱۰۱

جواب ۲:۔ وتر درے رکعتہ دی، دلیل،

(۱) عن عائشة قالت کان النبی صلی اللہ علیہ وسلم لایسلم فی رکعتی الوتر اه (سنن نسائی)

(۲) عن عائشة قالت کان رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم یوتر بثلاث لا یسلم إلا فی آخرهن، نصب الرایہ (۲/۱۱۵)

(۳) عن عائشة: أن النبی صلی اللہ علیہ وسلم کان یقرأ فی الرکعة الأولی من الوتر بفاتحة الکتاب وسبح اسم ربک الأعلی، وفی الثانیة بقل یاایها الکفرون وفی الثالثة بقل هو اللہ أحد والمعوذتین۔ رواه أصحاب سنن الأربعة وابن حبان فی صحیحه،
نصب الرایہ (۱-۱۱۵)

(۴) روی الطحاوی........ عن ابن عباس قال کان رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم یوتر بثلاث یقرأ فی الأولی بسبح الخ

(۵) عن سعید بن عبد الرحمن بن أبزی عن أبیه انه صلی مع رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم الوتر فقرأ فی الأولی "بسبح" الخ وأخرجه عن علی وعمران بن حصین نحوه وأخرجه النسائی والترمذی وابن ماجة۔

(۶) قال النووی فی الخلاصة باسناد صحیح عن ابی اسحق عن سعید بن جبیر به أن النبی صلی الله علیه وسلم کان یقرأ فی الوتر" بسبح اسم ربك الأعلی وقل یا أیها الکفرون وقل هو الله أحد فی رکعة رکعة اه وسکت عنه الترمذی ،
نصب الرایة (۲ - ۱۱۶)

(۷) عن مسور بن مخرمة قال دفنا أبابکر فقال عمر انی لم اوتر فقام وصففنا وراءه فصلی بنا ثلاث رکعات لم یسلم إلا فی آخرهن ، اه
نصب الرایه طبع جدید (۱/۱۱۶)

ددی ټولو نه صرف دری رکعته معلومیږی ۔

باقی پاتی شو یو رکعت وتر ، نو دابن عمر رضی الله عنهما حدیث دے ،

" أن رجلا سأل النبی صلی الله علیه وسلم عن صلاة اللیل فقال مثنی مثنی ، فاذا خشیت الصبح فصل رکعة یوترلك ما صلیت ، قال معناه صل رکعة مع ثنتین قبلها ، وتتفق بذلك الأخبار اه نصب الرایه (۱ - ۱۱۷)

یعنی د شپے دوه دوه رکعته مونځ کوه ، چه د صبا دختو وخت نزدی شی ، یو رکعت بل اوکړه ، نو دا یو رکعت به د دینه مخکینی دوه رکعته وتر کړی ۔ دا سے به ټول احادیث جمع شی اوکه د کوم ملا مطلب واخستے شی ، نو بیا به په احادیثو

کښې تعارض راشي، د زیات تفصیل د پاره معارف السنن شرح ترمذي کتل پکار دي۔

**عجیبه تقه ۶:** غیر مقلدین د پښکال د چیند خو په شان ټول کال ټراں ټراں کوي، او وائي چه وتر یو رکعت دے۔ او چه رمضان راشي، نو بیا د حضرت عائشې رضي الله عنها د دې حدیث،

"سئل عائشة کیف کانت صلاة النبي صلی الله علیه وسلم في رمضان فقالت ما کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یزید في رمضان ولا في غیره علی احدی عشرة ......... ثم یصلي ثلاثا"،

بخاري (۱/۱۵۴) مسلم (۱/۲۵۴)

نه په اته تراوِو باندې غلط استدلال کوي، او وائي چه په دې یوولسو رکعتونو کښې اته رکعته تراویح او درې رکعته وتر دي۔ او حال دا دے، چه تراویح صرف په روژه کښې وي د روژے نه علاوه په بله میاشت کښې تراویح نه وي۔ دا حدیث د تهجدو په باره کښې دے، او دوئ وائي چه نه تراویح ترے مراد دي، حالانکه دا دیو حدیث نه هم ثابت نه دي، چه یومونږ دِ په روژه کښې تراویح وي او په بله

میاشت کښې د تهجد وی، دغه شان په دی خبره هم د هیڅ یو حدیث نه دلالت موجود نه دے، چه ټول کال چنی وهی چه د تربیو رکعت دے، او په روژه کښې دره رکعته، ولے کونړ ملا په ایمان سره وایه، په دی دواړو خبرو ستاسو څه حدیث شته؟ که ایمان د رېکښې وی، نو او ښایه. دا تاسو نصوص دخپله منشاء او خواهش تابع کړی نه دی، او ځان ته لا اهل حدیث هم وایئ۔

برعکس نهاد ند نام زنگی کافور

(۴۹) کونړ ملا وائی، هدایه ۱/۱۴۷ کښې دی چه دانه رکعت نه زیات نیت تړل جائز نه دی، او حدیث د مسلم ۱/۲۵۵ کښې د نهه رکعتو نیت ثابت دے ص۱۰۱

جواب :- حدیث شریف کښې راځی،

"من کذب علیّ متعمدًا فلیتبوأ مقعده من النار، رواه مسلم

او په بعضے حدیثو کښې د تعمد قید هم نشته، کونړ ملا په پیغمبر علیه السلام دروغ وائی، او دا دی حدیث نه سترګی پټوی چه دلخو په پیغمبر علیه السلام دروغ دی، کونړ ملا د مسلم شریف د کوم حدیث نه چه استدلال کوی۔ دهغے عبارت دا سے دے " ابوسلمة أنه سئل عائشة عن صلاة

رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم بمثلہ غیر أن فی حدیثہما

تسع رکعات قائما **یوتر منھن**

او دی لاندی امام نووی ؒ لیکی " کذا فی بعض الأصول

منھن وفی بعضہا فیھن وکلاھما صحیح اھ نووی مع مسلم (۱/۲۵۵)

## دکونړ ملا دروغ ۔

کونړ ملا دخپل عادت مطابق په دی حدیث کښی دوه دروغ

ویلی،

(۱) یو داچه په دیکښی دا نشته چه دا ټول نه رکعته په

یو نیت سره وُو ، او کونړ ملا وائی چه په یو نیت سره وُو.

(۲) دویم داچه په دیکښی دری رکعته وترو هم ذکر دے. وتر

جدا مونځ دے او تهجد جدا ، او کونړ ملا ترے یو مونځ

مراد اخلی ، ع    قیاس کن زگلستان من بهار مرا

(۵۰) کونړ ملا اعتراض کوی ، هدایه ۱/۱۴۸ کښی دی ،

چه چا نفل مونځ مات کړو ، نو قضاء پرے واجب ده...

...... او نبی علیه السلام فرمائی " الصائم المتطوع أمیر

نفسه إن شآء صام وإن شآء أفطر ص۱۰۱

جواب :- کونړ ملا عقل د نصیب شه ، د حدیث

"المتطوع أمیر نفسه الخ مطلب دا دے، چه د هغه خوښه ده که روژه کوی او که ماتوی ئے، په دیکښ دقضاء نفی نشته، ځکه چه قضاء هم په دی حدیث پسے ور پسے د حضرت عائشے رضی الله عنها د حدیث نه ثابته ده.

"فقالت حفصة یا رسول الله إنا کنا صائمتین فعرض لنا طعام اشتهیناه فأکلنا منه فقال اقضیا یومًا آخر مکانه او مشکاة (۱-۱۸۱)

## دکونړ ملا انصاف :-

کونړ ملا څه په سترګو ړوند نه دے، چه د مشکاة هم ددغے صفحے نه " الصائم المتطوع امیر نفسه الحدیث وینی، او هم په دغه صفحه او هم په دغه حدیث پسے ور پسے دقضاء دا حدیث نه وینی، بلکه ئے وینی، خو د زړه سترګی ئے ړندی دی " فانها لا تعمی الأبصار ولکن تعمی القلوب الذی فی الصّدور " او دوئ انصاف هم دیته وائی.

(۵۱) کونړ ملا وائی، هدایه ۱/۱۴۰ کښ راځی، چه په مانځه کښ د سلام جواب په لاس هم نشته او حدیث کښ راځی چه تا سو اشاره کوئ په مانځه کښ مشکاة ۱/۹۲ حدیث

ابن عمر رضی اللہ عنہ ص۱۰۱

جواب ۲ :- کوڼړ ملا عقل دِ نصیب شه ، اشاره سلام نه دے ، ځکه چه د سلام ځان له الفاظ دی "السلام علیکم" نو اشاره سلام نه دے ، دویمه خبره دا چه په دی حدیث کښی دی - چه یو سړی مونځ کولو حضرت ابن عمر رضی الله عنه پرے سلام واچولو ، هغه د سلام جواب ورکړو . نو ابن عمرؓ ورته اووے ، چه کله تا سو مونځ کوئ ، او څوک در باندے سلام واچوی ، نو خبری دِ نه کوی (یعنی په خوله سره دِ سلام نه وائی) صرف اشاره دِ کوی - او اشاره خبری نه دی نو مونځ پرے نه ماتیږی ،

کوڼړ ملا هلو د حدیث په مطلب نه دے پوهه شوے ، نو کوڼړ ملا د حدیث غلط مطلب بیان کړو ، بله دا چه په پیغمبر علیه السلام باندی عبد الله بن مسعود رضی الله عنه سلام اچولے ، او د سلام جواب ئے نه دِ ے ورکړے - نو د پیغمبر علیه السلام نه په مانځه کښی د سلام جواب ثابت نه دے ، بلکه منع ترے ثابته ده . ځکه چه سلام کلام الناس دے ، او په دی سره مونځ ماتیږی - د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه حدیث د کوڼړ ملا د شپږ. څلویښتم اعتراض په جواب کښی تیر شویدے -

(۵۲) کوږ ملا اعتراض کوی، هدایه ۱/۱۴۵ کښې دی، چه په لمانځه کښې په پلتی کینا ستل مکروه دی، او حدیث کښې راځی چه نبی علیه السلام پلتی سره هو خم کړیدی. مستدرک الحاکم ۱/۲۵۸، ابن أبی شیبة ۲/۲۱۹ ص۱۰۱

جواب :- کوږ ملا عقل دِ نصیب شه، د عذر په حالت کښې چه څنګه ممکن وی، کیناستے شی، بغیر له عذره نه د نبی علیه السلام په تعده کښې د ناستے طریقه افتراش وه. لکه ستا د څلورویشتم اعتراض په جواب کښې بحث تیر شو، او هلته مونږ د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما حدیث د بخاری په حواله سره په پړلت د کیناستو نه د منع د پاره نقل کړیدے، او س یے در ته بیا نقل کوُوم. امام بخاری پرے باب تړلے "بابُ سنة الجلوس فی التشهد" یعنی په تشهد کښې به څنګه کینے؟ په پړلت او که په افتراش.

"عن عبد الله بن عبد الله أنه أخبره أنه کان یری عبد الله بن عمر یتربع فی الصلاة إذا جلس ففعلته وأنا یومئذ حدیث السن فنهانی عبد الله بن عمر وقال إنما سنة الصلاة أن تنصب رجلك الیمنی وتثنی الیسری فقلت إنك تفعل ذلك فقال إن رجلای لا تحملانی اه صحیح البخاری (۱/۱۱۴)

یعنی عبد اللہ بن عبد اللہ وائی، چہ ما بہ عبد اللہ بن عمر لیدو چہ پہ مانځہ کښی بہ پہ پړلت باندی کیناستو، نو ما هم داسے اوکړل، او ځہ پہ دی وخت کښی ځوان وُوم. نو ځہ عبداللہ بن عمر (پہ پړلت کیناستو نہ) منع کړم۔ او اوئ فرمائیل چہ سنت د مانځہ دادی چہ خپلہ ښیۍ پښہ اودروے، او کسہ پښہ اوغوړوے، نو ما ورتہ اووے، چہ تاسو چہ داسے کوئ (یعنی پہ پړلت کینئ) نو هغوئ اووے چہ ځما پښے ځما بوجھ نہ پورتہ کوی (یعنی د عذر پہ وجہ سرہ داسے نشم کیناستے، نو ځکہ پہ پړلت کینم)

کونړ ملا پہ دی حدیث کښی سنت طریقہ افتراش بنوولی شویدہ، او پہ پړلت کیناستل پہ عذر محمول دی، خو عقل دِ نصیب شہ نہ د عذر حالت پہ غیر حالت عذر باندی محمول کوے. او د غہ شان پخپلہ هم د صراط مستقیم نہ لرے ځے، اوکو شش کوے چہ نور هم د ځان پشان بے لارے کړے، گویا ؏

هم تو ڈوبے ہیں صنم تم کو بھی لے ڈوبیں گے

**(۵۳)** کونړ ملا اعتراض کوی چہ هدایہ ۱/۱۴۵ کښی دی چہ قنوت پہ وترو کښی واجب دی، او حال دا دے چہ نبی علیہ السلام پہ خپل عمر کښی قنوت یو ځل یا دوہ ځلہ

وېلې دي، او اکثر صحابه کرامو به نه وېيل ملا۱

جواب۱ :- کونړ ملا دعوی د نه وېلو کړېده، او ځه دليل ئې پيرې نه دے وړاندې کړے. او د ابن همام رحمه الله د قول نه ئې په عدم وجوب دليل نيولے.

## کارغه غول خوري او منبوکه څنګه؟ :-

کونړ ملا هم په تقليد ردکوي. او هم د مقلدينو د قول نه استدلال کوي، کونړ ملا وائي چه اکثرو صحابه کرامو به نه وے. دکونړ ملا شايد دا خيال دے، چه په يو مسئله يولاکه څلېرشت زره صحابه کرامو عمل کړے وي، نو هله به ثابته وي. ګني نه به وي، حالانکه که ديو صحابي نه ثابته وي نو هم دليل ګرځي. د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه ثابت دي.

"كان عبد الله في السنة كلها في الفجر يقنت في الوتر كل ليلة قبل الركوع، أخرجه ابن أبي شيبة،

اعلاء السنن (۶-۷۹)

(۵۴) کونړ ملا وائي، هدايه ۱/۱۴۷ کښې دي، چه قرأت دي په دوو رکعتونو کښې، او حديث کښې راځي، چه "لا صلاة إلا بفاتحة الكتاب ص۱۰۲.

جوابؔ :- "لا صلاة إلا بفاتحة الكتاب" خبرِ واحد دے، او دخبرِ واحد نه فرضیت نه ثابتیږی، بل دا چه یو بل حدیث کښی راځی "لا صلاة إلا بقراءة" کله چه په اولنو دوو رکعتونو کښی قرأت اوشو، نو مونځ اوشو۔ حمونږ په نیزد باندی د قرات فرض والے د قرآن کریم په دی آیت "فاقرأوا ما تیسر من القرآن" سره دے، او لدینه دا نه معلومیږی، چه قرأت په کومو رکعتونو کښی فرض دے، نو د صحابه کرامو د عمل نه مونږ وایو، چه په اولنو رکعتونو کښی فرض دے، گوره عبدالله بن مسعود رضی الله عنه به په آخیری رکعتونو کښی قرأت نه کولو،

"إن عبدالله بن مسعود كان لا يقرأ خلف الامام فيما يجهر فيه وما يخفت فيه من الأولين ولا في الأخرين وإذا صلى وحده قرأ في الأولين فاتحة الكتاب وسورة ولم يقرأ في الأخرين بشئ اھ

(رواه الامام محمد في الموطا)

دا حدیث اگر چه موقوف دے خو په معنی د مرفوع کښی دے، ځکه چه غیر مدرک بالعقل دے۔
بله خبره دا ده چه "لا صلاة إلا بفاتحة الكتاب" نه صرف فاتحه ثابتیږی، نو بیا پکار ده چه غیر مقلدین

د په ټولو رکعتونو کښې صرف فاتحه لولی۔ او که وائی، چه د مسلم په روایت کښې "فصاعدًا" او یا بل ځائے د "ومازاد" الفاظ راغلی دی، نو موږ ه وایو، چه تاسو بیا په اخیری رکعتونو کښې په دی ولے عمل نکوئ؟ او د فاتحے سره سورت ولے نه لولئ؟ فافهم وتدبر

(۵۵) کوږ ملا وائی، هدایه ۱/۱۵۲ کښې دی چه چار سحر او ماز یګر او ما ښام مو ځ وکړو ځائله. بیا جمع او دریده نو جمع په نکوی۔ او حدیث کښې راځی ...... چه پدی مونځونو کښې به جمع کوی، مشکاة ۱/۱۳۰۔ ص ۱۰۲

جوابؑ:۔ حدیث شریف کښې دی۔ "باب الصلاة بعد الفجر حتی ترتفع"

أن النبي صلى الله عليه وسلم نهى عن الصلاة بعد الفجر حتى تشرق الشمس وبعد العصر حتى تغرب اه صحيح البخاري (۱/۸۲)

په دی حدیث کښې د ماز یګر او سحر د مانځه نه روستو د نوافلو نه منع شویده، نو د جواز حدیث د دی سره معارض دے او د نهی حدیث قولی دے، پاتے شو د ما ښام مونځ، نو د دارقطنی په روایت کښې د ماښام استثناء هم موجود ده۔

"عن ابن عمر أن النبي صلى الله عليه وسلم قال إذا صليت في أهلك ثم أدركت فصلها إلا الفجر والمغرب" مرقاة بحاشیه مشکوٰة ص ۳۲ (۱-۱۰۳)

نو د سحر او ماز یگر د مانځه نه روستو د نفلو نه منع د بخاري په حدیث کښې، او د ماښام د مانځه نه روستو د نفلو نه منع د دارقطني په حدیث کښې شویده ـ نوکوم ملا عقل د نصیب نه شه، دا خو ته په احنافو نه بلکه په دې حدیثونو اعتراض کوے ـ

(۵۶) کوم ملا وائي " هدایه ۱/۱۵۲ کښې دي، چه د سحر جمع ولاړه وي، نو سنت به کوي، او حال دا چه نبي علیه السلام فرمائي " إذا اقیمت الصلاة فلا صلاة الا المکتوبة " ص ۱۰۲ ـ

جواب ۱ـ د سحر د سنتو په باره کښې چه څومره تاکید راغلے، دومره د نورو سنتو په باره کښې نه دے راغلے ـ د دغې وجې نه د صحابه کرامو دا کوشش وُو، چه دا سنت پاتې نه شي ـ

" عن عبد الله بن أبي موسى قال جاءنا ابن مسعود والإمام يصلي وصلى ركعتي الفجر إلى سارية ولم يكن صلى ركعتي الفجر اه رواه عبد الرزاق اعلاء السنن (۷ـ ۹۸)

په دې باره کښې نور هم آثار شته ـ مونږ په خپل کتاب " د پیغمبر خدا صلی الله علیه وسلم مونځ " کښې نقل کړیدي،

کونړملا ته د صحابه کرامو نه ځان ولې زيات پوهه ګڼړے؟ بله دا چه د "ولا رکعتي الفجر" د روايت راوي يحي بن نصر مختلف فيه دے، نو د کونړ ملا استدلال صحيح نه شو۔

(۵۷) کونړملا وائي، چه هدايه ۱/۱۵۵ کښې دي، چه ترتيب په قضاء لمونځونو کښې ساقطيږي په فوت د شپږو مونځونو سره، او په دې دليل نشته ص۱۰۲۔

جوابـ:۔ د الله پاک ارشاد دے، "وما جعل عليكم في الدين من حرج" او قضاء مونځونه چه شپږ وته اورسي نو کثرت پکښې راشي، او د کثير په قضاء کښې د ترتيب خيال ساتل ګران دي۔ نو ځکه ترتيب ساقطيږي کونړملا، لږ په ايمان ئے وايه، چه ستا سو په نيزد که چا په قصد سره يو څو مونځو نه پريښوده، نو ترتيب خو پريږده نفس قضاء پرے شته او که نه؟

(۵۸) کونړملا وائي، هدايه ۱/۱۵۸ کښې راځي چه که چا جهري مونځ په پټه او پټه په جهري ولوست نو سجده پرے لازميږي، او حديث د بخاري ۱/۱۰۵ کښې راځي، چه نبي عليه السلام به د ماسپښين په مانځه کښې

هم به یو یا دوه آیاتو نه کله کله جهری کړی، او سجده
سهوه يې نه ده کړی. ص۱۰۳

جواب:- کونړ ملا عقل دِ نصیب شه. د کله کله لوستو نه هم دا معلومیږی چه د پیغمبر علیه السلام عام عادت اخفاء وُو، او دا کله کله د پاره د تعلیم وُو. چه خلقو ته پته اولګی، چه په دی مونځ کښی هم قرأت شته، او چونکه په پټه لوستل ئے عام عادت وُو، او لدینه وجوب ثابتیږی. او د واجب په ترك کولو سجده سهو لازمیږی دغه رنګ جواب په سرّی مونځ کښی د جهر کولو هم دے.

(۵۹) کونړ ملا وائی، هدایه ۱/۱۵۹ کښی دی، چه څوك لمانځه کښی پنځم رکعت ته پاڅیده، او قاعده اخیره يې کړی وه نو واپس دِ شی او سجده سهو دِ اوکړی او که قاعده اخیره يې نه وه کړی، او پنځم رکعت ئے اوکړو نو مونځ ئے فاسد شو، او حدیث د مسلم ۱/۲۱۲ کښی راځی، قید د قاعدی معتبر نه دی. هر ځائے چه وی واپس کیږی به او سجده سهو به کوی ص۱۰۳

جواب:- کونړ ملا عقل د نصیب شه، د مسلم حدیث په اخیری قعده کښی په نه کینا ستو دلالت نه کوی. بلکه

ظاهره داده، چه قعده اخیره ئے کړی وه، او پنځم ته پاڅیدلے نو په داسے حال کښې مونځ هم وایو چه مونځ نه فاسدیږی، ځکه چه قعده اخیره فرض ده، او هغه ئے کړیده. پاتے شوه داخبره، چه قعده اخیره ئے نه وی کړی او پنځم رکعت ئے اوکړو، نو مونځ ئے فاسد شو. داصرف د احنافو نه د سفیان ثوری رحمه الله هم مذهب دے.

اوګوره ترمذی کښې وائی.

"وقال بعضهم إذا صلى الظهر خمسًا ولم يقعد في الرابعة مقدار التشهد فسدت صلاته وهو قول سفيان الثوري وبعض أهل الكوفة، ترمذي (١-٩٠) باب ماجاء في سجدتي السهو بعد السلام والكلام.

بله داچه شپږم رکعت میلاو هل څه واجب نه دی، هدایه کښې دی،

"ولو لم يضم لا شئ عليه لأنه مظنون اه هدايه ١/١٥٩.

او په بدائع الصنائع کښې دی.

"والأولى أن يضيف اليها ركعة أخرى ليصير نفلاله

معارف السنن (٣-٩٥)

نو د شپږم رکعت میلاوهل بهتر دی، څه فرض یا واجب

نہ دی. نو اعتراض دکومہ راغے۔

(٦٥) کونہ ملا وائی. هدایه ١/١٦٠ کبن دی، چه سړی په خپل عمر کبن یوځل شک کبن واقع شی، نو لمونځ به بیرته راګرځوی حال داچی په دی مسئله څه صحیح حدیث نشته ص۱۰۳

جواب :- د حضرت عبادة بن الصامت رضی الله عنه حدیث دے۔

(۱) "عن عبادة بن الصامت أن رسول الله صلى الله عليه وسلم سئل عن رجل سها في صلاته فلم يدر كم صلى؟ فقال ليعد صلاته، وليسجد سجدتين قاعدًا، رواه الطبراني في الكبير اھ اعلاء السنن (۷/۱۲۷)

دا حدیث اګرچه منقطع دے، خو دا د خیر القرون منقطع دے او ټول راویان ئے ثقه دی، نو څه باک ئے نه لری.

(۲) عن ميمونة بنت سعد أنها قالت أفتنا يا رسول الله في رجل سها في صلاته فلا يدري كم صلى؟ قال ينصرف ثم يقوم في صلاته حتى يعلم كم صلى، الحديث اعلاء السنن (۷/۱۲۷)

(۳) عن سعيد بن جبير عن ابن عمر أنه قال في الذي لا يدري كم صلى أثلاثا او أربعًا قال يعيد حتى يحفظ وفي لفظ ابن سيرين عنه أما أنا إذا لم أدر كم صليت فاني اعيد

أخرجه ابن أبي شيبة اهـ اعلاء السنن (٧-١٧٨)

(٤) عن ابراهيم فيمن نسي الفريضة فلا يدري أصلي اربعًا ام ثلاثًا، قال إن كان اول نسيانه اعاد الصلاة و إن كان يكثر النسيان يتحرى الصواب وإن كان أكبر رأيه أنه أتم الصلاة الخ رواه الامام محمد في كتاب الآثار اهـ اعلاء السنن (٧-١٧٩)

دغه شان دکثرو صحابه کرامو و سلفونه دا سے روایت شته -

"وهو مروي عن ابن عباس وابن عمر وعبد الله بن عمرو بن العاص من الصحابة، واليه ذهب عطاء و الأوزاعي والشعبي وابو حنيفة اهـ نيل الأوطار اعلاء السنن (٧-١٧٨)

نو دکونړ ملا دا اعتراض صرف په احنافو نه شو، بلکه په دی صحابه کرامو او تابعینو باندی هم شو- فخسر الدنیا والآخرة

**(٦١)** کونړ ملا وائی، هدایه ١٦٢/١ کښ دی، چه یو بیمار په قیام قادر وی او په رکوع او سجده باندی قادر نه وی، نو قیام تر ے ساقطیږی، او حال دا چی قیام مستقل فرض دی، ص ١٠٤ -

جوابٌ :- مونږه خو وایو، چه دا سړے چونکه رکوع او سجده نشی کولے، او قیام ذریعه ده د رکوع او سجود نو قیام ترے ساقطیږی. خو کونړ ملا نه وایه سنا په نیزد به دا سړے څنګه مونځ کوی؟ پکار وه چه تا د حدیث نه دغه طریقه ثابته کړیوے، نو بیا که دِ اعتراض کولو نو ټهیک وه، ولے تا خو هغه نص نه دے ذکر کړے، چه د هغے په مقابله کښی مونږ په رائی عمل کړے وی، هسے بوس بادوے. او د ع

گفت شخصے وردِ خواب اوردهٔ
لیک تو سوراخ را گم کردهٔ

مصداق جوړ شوے ئے.

(۶۲) کونړ ملا وائی، هدایه ۱/۱۶۲ کښی راځی چه یو سړی بیمار وی او په اشاره لمونځ کوی، او وسط د لمانځه کښی جوړ شی، نو دا لمونځ ئے فاسد شو، او حال دا دے چه الله تعالیٰ فرمائی" فاتقوا الله ما استطعتم " نو دا په کوم دلیل فاسد شو. ص۱۰۴

جواب :- کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، په دی مسئله کښی آیت یا حدیث یا اجماع نشته، ځکه دلته احنافو په قیاس چه دلیل شرعی دے، عمل کړید ے، ځکه چه د اهل السنة والجماعة په نیز دلائل د شرع څلور دی.

(۱) کتاب اللہ (۲) سنت نبوی (۳) اجماع امت (۴) قیاس او قیاس د لته داد ے چه اشاره پوره سجده یا رکوع نه ده. اوکله څو نلړۍ چه داشاره کوونکی پسے د رکوع کوونکی اقتدا صحیح نه ده، داسے بناءهم صحیح نه ده، په نصب الرایه کښ دی.

"لأنه لایجوز اقتداء الراکع بالمومی فکذا البناء (۲/۱۸)

کونړ ملاعقل دِ نصیب شه، دلته دامسئله په دلیل یعنی قیاس باندی بناء ده۔ اوکه ته وائے چه دلیل نشته، نو ته د قیاس منکرے، ځکه وائے چه دلیل نشته۔ باقی د آیت "فاتقوا الله ما استطعتم" ددی مسئلے سره هیڅ تعلق نشته، دلته بیا د مولانا رومؒ داقول دریادوم۔ ع

گفت شخصے ورد خواب اوردهٔ
لیک تو سوراخ را گم کردهٔ

(۶۳) کونړ ملا ژغیږی، هدایه ۱/۱۶۳ کښی دی چه سورة حج کښی دوهم سجده نشته، اوحال داچه احادیثو کښی راغی، چه دا سجده موجوده ده، اوګوره مشکاة ۱/۹۳ (۱) الخ

جواب :- د سورة حج د دوو سجدو باره کښی چه څومره احادیث راغی، ټول ضعیف دی.

(۱) أفضلت سورة الحج علی سائر القرآن بسجدتین الخ رواه ابو داؤد، قال الترمذی اسناده لیس بالقوی

نصب الرایہ طبع جدید ( ۲ - ۱۸۶ )

(۲) بل دا ابو داؤد او ابن ماجه په روایت سره "وفی الحج سجدتان" حدیث
اوکونړ ملا په مشکوٰة د دی حدیث حواله ورکړیده۔ لیکن د دی
حال اونکوره، د دی روایت یو راوی عبدالله بن منین دے،
دا ضعیف دے۔

"قال عبدالحق فی احکامه، وعبد الله بن منین لایحتج
به، وقال ابن القطان، وذلك لجهالته فانه لایعرف
روی عنه غیرالحارث بن سعید العتقی وهو رجل لا
یعرف له حال، فالحدیث من اجله لایصح اه

نصب الرایہ طبع جدید (۲-۱۸۶)

دکونړ ملا دا حربه هم ناکامه شوه۔

(۶۴) کونړ ملا بیا ژغیږی، هدایه ۱/۱۶۶ کښی دی
چه مده د سفر ۱۵ ورځے ده، او حال دا چه د نبی علیه السلام
نه نقل ندی کړی شوی، او د ابن عباس نه ۱۹ ورځ
نقل کړلی شویدی، مشکاة ۱/۱۱۸، ص۱۰۴

جواب:۔ کونړ ملا عقل د په کیده خوړلے دے،
د ابن عباس رضی الله عنهما حدیث لږ بیا اوګوره۔

"عن ابن عباس قال سافر النبی صلی الله علیه وسلم
سفرًا فأقام تسعة عشر یوما یصلی رکعتین رکعتین

مشکاة ۱/۱۱۸ -

او ددینه صرف دا معلومیږی . چه پیغمبر علیه السلام دغلته نولس ورځے دیره وُو ، او دوه رکعته مونځ به ئے کولو، بیا داکوم ځائے ثابته شوه . چه مدت داقامت نولس ورځے ده - اوکه ستا دا زعم ته صحیح ګنړے ، نو بیا دمشکوٰة هم په دغه صفحه دحضرت انس رضی الله عنه داحدیث .

"عن انس خرجنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم من المدینة الی مکة فکان یصلی رکعتین رکعتین حتی رجعنا الی المدینة" . قیل له اقمتم بمکة شیئاً قال اقمنا بها عشراً ، متفق علیه ، مشکاة (۱/۱۱۸)

ولے نه پیشی کوے ، او نولس ورځے مدت اقامت ثابتوے لس ورځے ولے نه ثابتوے ؟ څه خو دا یم چه ستا په شان هیڅ یو عقلمند ددی حدیث نه مدت اقامت نه دے ثابت کړے ، ددینه صرف دغلته دپاتے کیدو مده او قصر کول معلومیږی کو نړملا ستاخه خیال دے ، که چرے پیغمبر علیه السلام دغلته میاشت پاتے شوے وے ، نو تا به څه وے چه لکنی داقامت مده یو میاشت ده - بل پیغمبر علیه السلام دغه ځائے داقامت نیت نه وُو کړے - بلکه دطائف په محاصره وُو ، یا دهوازن سره په جنګ وُو ، او په

نو مبا کبن روا نیدونکے وُو، نو د د بینہ سنا داخیال نہ ثابتیږی۔

**تنبیہ ۴:-** مسئلہ د مدت اقامت د ہ، او کوتہ ملا والی مدۃ سفر ع چوں ندیدند حقیقت را افسانہ زدند

ع فان کنت لا تدری فتلک مصیبۃ
وان کنت تدری فالمصیبۃ اعظم

ع وکم من عائب قولا صحیحا
وآفتہ من الفہم السقیم

داحنافو د دلیل پہ بارہ کبنی علامہ زیلعی رحمہ اللہ وائی

"قولہ ...... وھو ماثور عن ابن عباس وابن عمر رضی اللہ عنہما والأثر فی مثلہ کالخبر، قلت اخرجہ الطحاوی عنہما قالا إذا قدمت بلدۃ وأنت مسافر و فی نفسک أن تقیم خمسۃ عشرۃ یومًا أکمل الصلاۃ بہا وان کنت لا تدری متی تظعن فاقصرھا، وروی ابن أبی شیبۃ فی مصنفہ أن ابن عمر کان إذا اجمع علی اقامۃ خمسۃ عشر یوما أتم الصلاۃ، واخرجہ محمد بن الحسن فی کتاب الآثار الخ

نصب الرایہ طبع جدید (۲-۱۹۰)

نو پیغمبر علیہ السلام چہ د غلتہ قصر کولو، نو معلومیږی

چه د اقامت نیت ئے نه وُو کړے.

## د غیر مقلدینو مذهب :-

غیر مقلدین وائی چه اقل مدت سفر درے میله دے.څه وایم چه بیا خود غیر مقلدینو هره ورځ اخنز دے، که د روژے په میاشت کښې بهرغولو له ځی (خصوصًا په دیهاتو کښې ځکه چه په یا نه وُو کښې خلق په کورونو کښې تشتۍ نه جوړوی، او قضاء حاجت له لرے ځی، د پیغمبر علیه السلام هم دا عادت مبارک وُو چه قضاء حاجت له به ډیر لرے تلو "أبعد فی المذهب") نو روژه ړهم خوری، او قصر ړهم کوی، هره شپه ده د شوقدر هره ورځ ده داختر۔

(۶۵) کوڼړ ملا وائی، هدایه ۱/۱۶۸ کښې راځی، چه د جمعې لمونځ صرف په ښار کښې کیږی........ ددی شرطونو هیڅ دیل د قرآن وحدیث نه نشته۔

جواب :- د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حدیث دے۔

"أوّل جمعة جمعت بعد مسجد النبی صلی الله علیه وسلم بجواثا وهی قریة من قری البحرین، رواه ابوداؤد

جواثا د یر روستو فتح شوے، او د دینه مخکښې تورے علاقے هم فتح شویدی. بیا هم د مسجد نبوی نه علاوه سیوا د جواثا نه په بل هیڅ بوځائے کښې هم د جمعے مونځ نه دے شوے، آخر دا ولے؟ که په هرځائے کښې د جمعے مونځ کیدے شوے، نو بیا د جواثا څه تخصیص شو،

پلنے شوه دا خبره چه جواثا ته قریه ویلی شویده نو د دینه دا نه ثابتیږی چه کنی دا چر ته بانده یا کلونے وُو. په قرآن مجید کښې دی.

"لولا نزل هذا القرآن علی رجل من القریتین عظیم"

دلته د قریتین نه مکه مکرمه او طائف مراد دی. او دا بانډی کونډی نه دی، یا دا آیت،

"واسئل القریة التی کنا فیها"

دلته د قریه نه مراد مصر دے، او دا بانډه یا کلوتے نه وُو، بلکه دا چه پیغمبر علیه السلام د هجرت په موقع تقریبًا څوارلس ورځے په قباء کښې دیره وُو، او د جمعے مونځ ئے هلته نه دے کړے، چه مدینے منورے ته راغلل نو جمعه ئے شروع کړه. نو که په کلو کښې جمعه کیدے، نو بیا به ئے هلته جمعه کړیوے.

بل د بخاری ددی باب -

"باب من أين يؤتى الجمعة وعلى من تجب
لقول الله تعالى إذا نودي للصلاة من يوم الجمعة
وقال عطاء إذا كنت في قرية جامعة فنودي للصلاة
من يوم الجمعة فحق عليك أن تشهدها.........
وكان أنس في قصره أحيانا يجمع وأحيانًا لا يجمع
وهو بالزاوية على فرسخين"

نه هم دا معلومیږی، چه جمعه هرځائے نه کیږی. ځکه خو ئے د عطاء رحمه الله قول نقل کړیدے.

کونږ ملا د قریة جامعة معنی آخر ستا په نیز د څه ده؟ موږ خو ترے دا معنی اخلو، چه د ژوند د ضرورت تقریبًا ټول سامان پکښې میلاویږی. نو ئے څه معنی کوے؟

امام بخاری رحمه الله مخکښې د حضرت عائشے رضی الله عنها حدیث نقل کړے.

"قالت كان الناس ينتابون الجمعة من منازلهم
والعوالي الخ          بخاری (۱/۱۲۵)

یعنی خلق به د عوالی نه مدینے منورے ته د جمعے مانځه له وار په وار راتله یعنی ټول به نه راتله، که چرے جمعه

په دوئ فرض وے، نو بیا به نمبر په نمبر ولے راتلل؟ ټول په جمع ولے نه راتلل؟ یا ئے هلته ځان له ولے جمعه نه کوله؟ دا ټول هرڅه په دی دلالت کوی، چه جمعه هرځائے کښی نه کیږی۔ زیات تفصیل موږ په خپل کتاب "د پیغمبر خدا صلی الله علیه وسلم مونځ" کښی ذکر کړیدے، دلته په دے اکتفاء کوو۔

(٦٦) کونړ ملا اعتراض کوی، فقه کښی راځی چه امام د قد قامت الصلاة وخت کښی شروع کوی۔ او نبی علیه السلام به پس د اقامت نه شروع کوله ص۱۵

جواب:۔ د دی خبری موږ هم قائل یو، چه امام دِ د قد قامت الصلاة نه پس نه بلکه د اقامت کیدو نه پس شروع کوی، لپاره د دی چه اقامت کوونکے هم د امام د قرأت شروع کولو نه مخکښ ثناء اووئیلے شی، که امام د قد قامت الصّلاة سره شروع اوکړه، نو کیدیشی چه اقامت کوونکی ته د ثناء وئیلو موقع په لاس ورنشی۔

(٦٧) کونړ ملا وائی، هدایه ۱/۱۷۰ کښی دی، چه ځمکې په ورځ کښی چا دما سپښین مونځ وکړو کور کښی او هغه

عذر نه وی، نو جائز دی، صرف مکروه دی۔ ص۱۰۵،

جواب :- کونړ ملا، تا چه ترڅو پورے دروغ نه وی ویلی یا دڅه تحریف نه وی کړے، نو دا به دی د سنه هضمیږی، کونړ ملا ترجمه دِ غلطه کړیده، د هدایه عبارت دا دے۔

"ومن صلى الظهر في منزله يوم الجمعة قبل صلاة الإمام ولا عذر له كره ذلك وجازت صلاته"

یعنی که چا په کورکښ دجمعے په ورځ بے له څه عذرنه دامام دمانځه نه مخکښ ځان له دماسپخین مونځ اوکړو، نو دا دده لپاره مکروه دی، اومونځ ئے اوشو،

کونړ ملا لږ ے خپلے ترجمے ته بیا اوګوره، دلته دکراهت نه حرام مراد دی، ابن همام رحمه الله وائی۔

"لا بدّ من كون المراد حرم عليه ذلك (۲/۶۰)

نو کونړ ملا ته څنګه وایئے، چه دا جائز دی، صرف مکروه دی۔ دا لفظ "صرف" د هدایئے دکوم لفظ ترجمه ده؟

باقی دا حرام ځکه دی، چه دجمعے مونځ ئے پریښودو، او دماسپخین مونځ ئے ځکه اوشو، چه دماسپخین مونځ اصل دے، اوجمعه ئے دجمعے په ورځ بدل ده۔ ددی

خبری دلیل دا دے، چه که دچا نه دجمعے مونځ پاتے شی یعنی وخت ترے لاړشی، یا نا وخته کړی، او مونځ ترے اوشی، نو دا سړے به قضا کوی او که ځان له ادا مونځ، نو دے به دما سپخین مونځ کوی،

بل دحدیث " قال رسول الله صلی الله علیه وسلم إذا زالت الشمس وکان ظل الرجل کطوله الخ رواه مسلم نه هم معلومیږی چه اصل ماسپخین دے، کونړ ملا تا چه کوم حدیث ذکر کړیدے -

" الجمعة حق علی کل مسلم فی جماعة "

داعام نه دے، ځکه چه مریض او مسافر ترے داهل السنة والجماعة په نیز د مستثنیٰ دی، بل تا د لفظ "حق" ترجمه " فرض " کړیده - دا دِ له ځانه کړیده، ځکه چه حق په معنی د ثابت راځی، د فرض په معنی تا څنګه اغستے؟ او یا دِ دچا تقلید کړے، او تقلید ته ته ناجائز وائے. ع

درکفر هم صادق نهٔ زنار را رسوا مکن

(۶۸) کونړ ملا وائی، هدایه ۱/۱۷۰ کښ راځی چه کوم شخص دجمعی د مانځهٔ په تشهد کښ شریک شو، نو دجمعے مونځ به صرف پوره کوی - او محمد رسول الله

صلی اللہ علیہ وسلم فرمائی " من ادرک من الجمعۃ رکعۃ فلیصل اخری ومن فاتتہ الرکعتان فلیصل اربعًا، مشکاۃ ۱۲۳/۱ ص۱۱۶

جواب :- کونم ملا حاطب لیل دے، دیته نه گوری چه سوتے ئے په لاس کبن را اوچت کړو، او که مار؟ خو تکیا دے۔ کونم ملا لږ خو به دِ کتلے وے، چه دا حدیث دا ستدلال قابل دے او کنه؟ خو دکونم ملا پری څه؟ هغه متل دے۔ اخوند له خوچه پئی وی، که د خرے اوکه د سپئی وی، کونم ملا له خو بس اعتراض مقصد دے، خیر،

اوس لږ دکونم ملا ذکر کړی حدیث حال اوګورئ۔

علامه ابن حجر رحمه الله په خپل کتاب "تلخیص الحبیر" کبنی په ۱/ ۴ باندی حدیث نمبر (۵۹۳) لاندی ددی حدیث ټول طرق ذکر کړیدی، او دسیلمنی نه ټول ضعیف دی۔

قال ابن حبان فی صحیحه انها کلها معلولة وقال ابن أبی حاتم فی العلل عن أبیه " لا أصل لهذا الحدیث وانما المتن "من ادرک من الصلوٰة رکعة فقد ادرکها وذکر الدار قطنی الاختلاف فیه فی علله

وقال الصحیح من ادرک من الصلاۃ رکعة وکذا قال العقیلی واللہ اعلم اھ تلخیص الحبیر (۱-۴۰)

کونړ ملا ستا په نظر صرف معلول او ضعیف احادیث راځی بس کونړ ملا د تلخیص الحبیر دا صفحه ضرور اوګوره، چه سترګی دِ رڼا شی۔ کونړ ملا وائی چه حدیث "ما أدرکتم فصلوا وما فاتکم فاتموا" د حدیث "من ادرک من الجمعة رکعة الخ" سره متعارض دے، کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، تعارض د داسے دوو نصوصو په مینځ کښی راځی، چه د قوت په اعتبار سره برابر وی، او حال دا دی چه ستا ددی ذکر کړی حدیث په باره کښی دابن ابی حاتم داقول "لا أصل لهذا الحدیث الخ" تیر شو، نو غیر ثابت او بی اصله حدیث د ثابت حدیث سره څنګه متعارض کیدے شی۔ شاباش کونړ ملا مخکښی غوږ یوزه۔

(۶۹) کونړ ملا وائی "هدایه ۱/۱۴۲ کښی دی، چه د اختر مونځ واجب دے، او حال دا چه رسول اللہ صلی اللہ علیه وسلم په سفر کښی نه دے کړے، نو څنګه واجب شو، ص ۱۰۶

جواب :- کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، په سفر کښی نه کول دا دلیل لپاره ددی چه په مسافر باندی د اختر مونځ نشته ګوره عام مونځ فرض دے خو نفساء او حائضه ترے مستثنیٰ

دہ، دغہ شان د قیام پہ حالت کبنی د پیغمبر علیہ السلام د اختر مونځ نہ پریښنودہ، د وجوب دلیل دے، او پہ سفر کبنی نہ کول پہ مسافر ہا ندی د عدم وجوب دلیل دے، کونړملا لږ ځان پوہے کړہ۔

(۷۰) کونړملا وائي، ھدایہ ۱/۱۷۲ کبنی دی، چہ د اختر مونځ کبنی د ھر تکبیر سرہ رفع الیدین شتہ، او حال دا چہ محمد رسول اللّٰہ صلی اللہ علیہ وسلم نہ ندی نقل شوی، ص ۱۰۶۔

جوابُ :- عن عطاء عن ابن جریج قال قلت لعطاء، یرفع الامام یدیہ کلما کبر ھذہ التکبیرۃ الزیادۃ فی صلاۃ التکبیر قال نعم ویرفع النّاس ایضًا اہ مصنف عبدالرزاق (۳-۲۹۷) وفی سنن الکبری للبیہقی وروینا عن ابن جریج عن عطاء أنہ قال یرفع یدیہ فی کل تکبیرۃ الخ (۲-۲۹۳)

عطاء رحمہ اللہ تابعی دے، او دا ظاھرہ خبرہ دہ، چہ دا خبرہ دوئ لہ سماع نہ بغیر نشي کولے. باقي پاتی شو د رکوع نہ مخکښ او روستو رفع الیدین، نو ھو بہ وا یو، چہ دا ثابت ضرور دی، خو دوام یې ثابت نہ دے، ځکہ چہ داسے ھیڅ یو صحیح حدیث نشتہ، چہ لہ ھغے نہ دا معلومیږی

چه ګنی پیغمبر علیه السلام دا رفع الیدین همیشه کړیدی،
ګوره په ولاړے متیازے کول د صحاح سته نه ثابت دی
خو سنت نه دی، ځکه چه دوام پرے ثابت نه دے، لکه
حضرت عائشة رضی الله عنها وائی، چه که چا داو وئیل چه
پیغمبر علیه السلام به په ولاړے متیازے کولے، نو ربنتیا
ئے مه ګڼړه، او غالباً غیر مقلدین ئے هم سنت نه ګڼړی،
ځکه غیر مقلدین هم شاید نو بنځے همیشه په ولاړے
متیازے نه کوی - یا په ماښځه کښی ماشو مه جینئ اوچتول
او په اوږو کینول د حدیث نه ضرور ثابت دی، خو سنت
نه دی، ځکه احناف وائی چه دا رفع الیدین سنت نه دی.

ناصر الدین البانی په خپل کتاب "صفة الصلاة"
کښی لیکی، چه د سجدو رفع الیدین د لسو کسو صحابه
کرامو نه ثابت دے، لیکن غیر مقلدین دا رفع الیدین
نه کوی، او حال دا چه دا د مالك بن الحویرث رضی الله
عنه د حدیث نه ثابت دی په سنن نسائی کښی. او که
څوك اووائی چه نسائی رحمه الله د سجدو د رفع الیدین
نه روستو باب تړلے "باب ترك ذلك"، نو موښ
وایو چه دغه نشان ځو د رفع الیدین د حدیث د ذکر کولو
نه روستو "باب ترك ذلك"، تړلے، او د عبد الله بن

مسعود رضی الله عنه حدیث ئے د عدم رفع الیدین په باره
کښې راوړے دے ، د عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت
دے، هغوئ چه به څوك او لیده چه د هر کینا ستو پاسیدو
(لی کل خفض ورفع) کښې به ئے رفع الیدین کول، نو په
کټو به ئے ویشتلو ، ځکه خو مونږ وایو ، چه که چرے حضرت
عبد الله بن عمر رضی الله عنه د غیر مقلدینو د ا رفع الیدین
لیدلے وے ، نو دوئ به ئے سنګسار کړی وے . غیر مقلدین
په دی باب کښې څومره دروغ وائی ، تفصیل ئې مونږ کتاب
" د پیغمبر خدا صلی الله علیه وسلم مونځ ) کښې اوګورئ .

(۷۱) کونړ ملا وائی ، هدایه ۱/۱۷۵ کښې دی ، چه په
صلاة الکسوف کښې دوه رکوع نشته ، ځکه د دی راوی
عائشه ده او زنانو ته حال پوره معلوم نه وی . او حال
دا دے چه حدیث د بخاری ۱/۱۴۲ کښې راځئ چه نبی علیه السلام
دوه رکوع کړی دی ، په هر رکعت کښې او دا حدیث عائشه
او ابن عباس دواړو نقل کړیدی ص۱۰۱ .

جواب :- کونړ ملا عقل د نصیب شه ، د دی جواب
صرف دا نه دے ، کوم چه تا نقل کړید ے . بلکه احناف
وائی ، چه د کسوف په باره کښې مختلف روایات راغلی

دی، کوره په صحیح بخاری کښې دی،

"عن أبي بكرة قال خسفت الشمس على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم فخرج يجر ردائه حتى انتهى إلى المسجد وثاب الناس إليه فصلى بهم ركعتين ......

ورواه النسائي وقال فيه فصلى بهم ركعتين كما تصلون الخ

نصب الرایه طبع جدید (۲-۲۳۶)

کوره په دی حدیث کښې صراحت دے، چه دوه رکعته ئے اوکړه لکه څنګه چه تاسو دوه رکعتونه کوی، په دیکښې په هر رکعت کښې د دوو رکوع ذکر نشته، بلکه په عام موټو باندی حواله ده، دغه شان د حضرت سمرة بن جندب رضی الله عنه دحدیث نه چه ابو داؤد، نسائی، امام احمد او حاکم روایت کړیدے هم معلومیږی، اوګوره نصب الرایة (۲-۲۳۵)

احناف وائی چونکه دا اولنے حل وو. او لدینه مخکښې دکسوف واقعه نه وه پیښه شوی، او په دی مانځه کښې پیغمبر علیه السلام قیام او رکوع او سجده ډیر اوږده کړی وو، کیدیشی چه بعضے خلقو داخیال کړے وی چه پیغمبر علیه السلام سر پورته کړی وی. او چه کتلی ئے چه هغوئی خو لاهغه شان په رکوع کښې دی او بیا واپس رکوع ته تلی وی، او روستنو خلقو ترے دوه رکوع مراد اغستی وی، او د دی خیال تائید د سمرة بن جندب

رضی الله عنه د حدیث نه کبري، لکه د نصب الرایه په حواله سره ذکر کړے شو، باقي دکونړملا داوینا چه داحدیث حضرت عائشې اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دواړو نقل کړے، څه فائده نه ورکوي. ځکه چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وړوکے وُو. او واړه اوزنانه په روستني صفونو کښې وي په وړاندې کښې نه.

کونړملا په بعضې احادیثو کښې د درے رکوعو هم ذکر راځي لکه ابوداؤد کښې، ته هغه ولے نه یادوے؟ ولے دغه حدیث نه دے؟

(۷۲) کونړملا وائي هدایه ۱/۱۷۵ کښې دي، چه په صلاة کسوف کښې قراءت جهري نشته، اوحدیث د بخاري کښې راځي چه شته ص۱۴۵ ج۱ ص۱۰۷.

جواب :- کونړملا، د حضرة سمرة بن جندب رضي الله عنه په حدیث کښې راځي "لانسمع له صوتا"، نصب الرایه (۲/۲۳۵) یعنی پیغمبر علیه السلام مونږ ته مونځ راکړو، مونږ ئے آوازنه اوریدو یعني قراءت ئے په زوره نه وے. ځکه مونږ وابو چه که چا په زوره اووے نو هم صحیح دي اوکه رو ئے اووے نو هم صحیح دي دواړه طرفته احادیث شته.

(۷۳) کونړملا وائي، هدایه ۱/۱۷۶ کښې دي، چه په صلاة کسوف

کښې خطبه نشته ، او حدیث د بخاري کښې دی چه شته ص۱۰۷

جوابؒ :- کوڼړ ملا عقل د نصیب شه ، دا خطبه تکه دجمعې یا د اختر خطبه نه وه ، وجه دا وه چه کله نمر تندر اونیوو ، او پخوا د خلقو عقیده داوه ، چه نمر یا سپوږمۍ چه تندر نیسي دا د چا لوئ سړي په مرګ د اسې کیږي ، او په دغه وخت کښې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ځوئ حضرت ابراهیم رضی الله عنه وفات شوے وو ، نو خلقو دا ګمان کوو ، چه کښې دا د ابراهیم رضی الله عنه د مرګ په وجه سره دی ، نو پیغمبر علیه السلام خلقو ته تقریر اوکړو او اوې فرمایل چه دا د چا د مرګ په وجه سره نه کیږي ، دا څه مستقله خطبه نه وه ، نو سنت نه شوه

(۴۷) کوڼړ ملا وائی ، هدایه ۱/۱۸۶ کښې دی ، چه امام صاحب فرمائی ، چه استقساء (کوڼړ ملا هم داسې لیکلے حال دا چه دا لفظ استسقاء دے استقساء نه دے ، فتنبه . راقم الحروف) کښې مونځ نشته او حال دا چه : محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم کړیدی . بخاری ۱/۱۳۶ ، مشکاة ۱/۱۳۱ ص۱۰۷ .

جوابؒ :- کوڼړ ملا عقل د نصیب شه ، اوّل خو دِ دهوکه دا کړیده ، چه پوره خبره دِ نه ده کړې ، هدایه کښې دی ، "لیس فی الاستسقاء صلاة مسنونة فی جماعة فان صلی

الناس وحدانا جاز ".

یعنی په جمه سره مونځ سنت نه دے، ځکه چه د پیغمبر علیه السلام نه یو نیم ځل مونځ هم ثابت دے او صرف دعا هم. له دی وجے نه مونځ په جمه سره سنت نه دے، کوم ملا پته نشته چه نه د سنت معنی هم پیژنے اوکه نه ؟ په بخاری او مسلم دواړو کبنی د حضرت انس رضی الله عنه حدیث دے، په دیکبنی صرف دعا ده، مونځ پکبنی نشته ۔ اوګوره نصب الرایه (۲۴۶/۲) نو موږ وایو چه که چا مونځ اوکړو نو هم صحیح ده، اوکه چا صرف په دعا او استغفار باندی اکتفا اوکړه نو هم صحیح ده دواړه خبرے ثابتے دی۔ نو ته څنګه یوه خبرے اثبات کوے او دبلے رد ۔

(۷۵) کوم ملا وائی، دارنګه امام صاحب وائی، چه خطبه په استسقاء کبنی نشته، او نبی علیه السلام ویلی ده، ص۱۰۷ ۔

جواب :۔ کوم ملا د حدیثو نه هم انکار کوی، ګوره د عبد الله بن عباس رضی الله عنهما دا کوم حدیث نه چه په استسقاء کبنی مونځ ذکر دے، هم په هغے کبنی د خطبے د حقیقت هم ذکر دے۔

"قال خرج رسول الله علیه وسلم مبتذلا متواضعا

متضرعاً حتى اتى المصلى فلم يخطب خطبتكم هذه
.........قال الترمذی حدیث حسن صحیح ام

نصب الرایہ (۲-۲۴۷)

یعنی دا خطبه څه مسنونه خطبه نه وه.

(۷۶) کوثر ملا وائی، هدایه ۱/۱۷۶ کښې دی. چه استسقاء کښې قلب الرداء نشته، او پیغمبر علیه السلام څادر اړولی دی صـ۱۰۷،

جوابُ :. اوله خبره خو دا ده چه مذهب دا دے چه قلب رداء شته، یعنی امام به څادر اړوی، او کوثر ملا دا تأثر ورکوی، چه کښې مطلق قلب رداء نشته، دا ئے دهوکه کړیده، او دا سنت نه دی، ځکه چه پیغمبر علیه السلام دا دے د نیک فالئ د پاره کړی وُو، څه د عبادت په طوز نه وُو، او سنت هغه وی چه د عبادت په طور اوشی، او د نیک فالئ د پاره د ییل دا دے، چه امام زیلعی رحمه الله وائی.

"قلت فقد جاء ذلك مصرحًا به فی مستدرك (۱-۳۲۶) من حدیث جابر وصححه وفیه" وحول رداءه لیتحول القحط وكذلك رواه الدارقطنی فی سننه وفی الطوالات للطبرانی من حدیث انس وتكن قلب رداءه لكی ینقلب

القحط الخ نصب الرایہ (۲-۲۵۰)

باقي دکونړملا دا وېل فضول دي، چه هغه که په هرنیت اړولي دي، د امت د پاره سنت عمل شو، ځکه چه په صحاح سته کښې په ولاړه متيازې کول ثابت دي، او غیرمقلدين ئې هم سنت نه ګڼړي، او نږ ښځې په ولاړه متيازې نه کوي، ولې کونړملا وایه کنه، تا په کورکښې دا سنت شروع کړيدي؟

(۲۲) کونړملا وائي، هدايه ۱/۱۶۸ کښې دي، چه د مړي په غسل کښې مضمضه او استنشاق نشته، او حديث کښې راځي "ومواضع الوضوء منها"، ص۱۰۸

جواب: د بخاري په حاشيه نمبرا - کښې دي، چه د "مواضع الوضوء منها" الفاظ دام عطيه رضي الله عنها نه دي - بلکه د هغوئي نه، د راوي حفصه بنت سيرين دي،

"ومواضع الوضوء منها" مما زادته حفصة في روايتها عن ام عطية عن اخيها محمد اه حاشيه بخاري (۱/۱۶۸)

هم دغه وجه ده چه په نورو روايتونوکښې دا الفاظ نشته، د مثال په طور د عبد الله بن عباس رضي الله عنهما حديث په مشكاة ۱/۱۴۳ کښې اوګوره -

عن ابن عباس قال ان رجلا كان مع النبي صلى الله

علیہ وسلم فوقصتہ ناقتہ وھو محرم فمات فقال
رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم اغسلوہ بماء و
سدر وکفنوہ فی ثوبیہ الخ

پہ دیکښې د " مواضع الوضوء منہا " الفاظ نشته، دغه
شان د حضرت ام عطیه رضی اللہ عنہا نه محمد بن
سیرین رحمہ اللہ روایت اوکوره۔

" عن محمد عن أم عطیة قالت توفیت ابنة
النبی صلی اللہ علیہ وسلم فقال لنا اغسلنہا ثلاثا
اوخمسا الخ          بخاری (۱-۱۶۸)

په دیکښې هم " ومواضع الوضوء منہا " نشته، لکه څرنګ
چه د بخاری ۱/۱۶۸ د حاشیے ع۱ په حواله مخکښې تیرشو.
او ددی معقول جواب داد ے، چه د مضمضے اواستنشاق
په صورت کښې د مړی دخولے نه اوبه وایس راویستل
ګران دی۔

(۸۷) کونړ ملا وائی، هدایه ۱/۱۷۹ کښې راځی چه
د زنانه د پاره به دوه کوڅی جوړولی شی او په سینه باندی
به اچولی شی۔ اوحدیث د بخاری ۱/۱۶۸ کښې راځی۔
" فظفرنا شعرها ثلاثة قرون والقینا خلفها " ص۱۰۸
جواب:- کونړ ملا عقل د نصیب شه۔ دځان غم اول

نه اوکړه ، ستا سو په نیزد دصحابه کرامو قول یا فعل
د سره هډو حجت نه دی ، لکه شوکانے چه وائی ، نو ته
په کوم وسترګو د صحابی دعمل نه استدلال کوے؟ چه
ستا په نیزد دا د سره هډو دیل نه دے ، نو خبره
دِ بے دلیله شوه ، دا د تطفیف عمل پریږده ، نورو
ته وایئے چه د صحابی قول حجت نه دے ، او بیا ئے نورو
ته په دلیل کښی وړاندے کوئ ، دا خو " أتأمرون الناس
بالبرّ و تنسون أنفسکم " والا خبره شوه ، باقی ستا
داخبره " دویم دا چی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په موجودګی
کښی دا کار شوی دے ، او ظاهره داده چه د هغه په تعلیم
سره شوی دی " بالکل فضول ده . او دا صرف ستا وهم
دے ، که چرے د پیغمبر علیه السلام په حکم سره وے ، نو
لکه څنګه چه هغوی د نورو خبرو حکم ورکړیدے ، نو دی
په باره کښی به ئے هم حکم ورکړی وے ، ولیس فلیس .
ګوره حضرت عمرو بن سلمة رضی الله عنه د پیغمبر علیه السلام
په حیات کښی داوُو کالو په عمر کښی مونځ ورکوُو ، او
څادر ئے داسے وُو ، چه د سجدے په وخت کښی به ئے
شرمګاه ښکاریده ، او ستا په شان یو عقلمند هم دا
نه وائی ، چه دا د پیغمبر علیه السلام په حکم سره وُو .

مخې بیا تاسو له پکار دی، چه په دومره عمر کښې مو نځور کوی نو کومه بو بندوئ، چه په مکمّل حدیث عمل راشی، او کید یشی چه تاسو داسے نه کوئ، مونږه وایو چه دا د حضرت اُم عطیه رضی الله عنها خپل عمل وُو، او که څوک وائی چه زنانه په ژوندونې دسرو یخته دوه کونځې کوی، او شا ته ئے اړوی دغه شان هغوئ په مړینې ورسره هم اوکړل -

بله دا چه دا غیر مدرک بالعقل هم نه دے، چه د مرفوع حدیث په حکم کښې شی -

(۷۹) کونړ ملا اعتراض کوی، هدایه ۱/۱۸۰ کښې دی چه په جنازه کښې سورة فاتحه نشته. او حال دا چه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم لوستلی ده. ص۱۰۹

جواب :- کونړ ملا لږ د هدایه او ویریږه، او حدیث " من کذب علی متعمّداً فلیتبوّء مقعده من النار" ته نظر اوکړه - ته ئے په ایمان اووایه، چه پیغمبر علیه السلام بیشماره جنازے کړی دی، چرته په یو صحیح مرفوع متصل حدیث کښې تر ے په جنازه کښې فاتحه لوستل ثابت دی؟ او که نوی، او واقعی چه نه دی ثابت، نو ته بیا دا جرأت څنګه کوے، چه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم لوستلی ده، بله دا چه دا مسئله دومره عامه ده، چه هر چا ته ئے

پته نکی ، او په کبارو صحابه کرامو کښې دیو نه هم په صحیح سند سره دا خبره ثابته نه ده ، چه کنی پیغمبر علیه السلام لوستی ده ، باقی د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دا وئیل " لتحلموا أنها من السنة " نو ددی نه دا په کوم حدیث سره ثابت دی ، چه لدینه د پیغمبر علیه السلام سنت مراد دی ، ځکه چه د پیغمبر علیه السلام نه خو په صحیح سند ثابت نه دی۔

ګوره کونړ ملا ! تا د خپل دی کتاب په ص۳۹ باندی نقل کړی دی۔

"أن عروة قال لإبن عباس أضللت النّاس یا ابن عباس قال وما ذاک یا عروة قال تفتی الناس أنهم إذا طافوا بالبیت فقد حلوا وکان ابوبکر وعمر یجیئان ملبین بالحج فلا یزالان محرمین إلی یوم النحر قال ابن عباس بهذا ضللتم أحدثکم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم و تحدثونی عن ابی بکر وعمر ،

(ص۳۹ پنځم نمبر دلیل)

یعنی که څوک صرف طواف او کړی نو هغه حلال شو ، او حال دا دے چه مسئله دا سے نه ده ، لکه څرنګه چه تا د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما رد په عبد الله بن عباس رضی الله عنهما

باندی په دی خپل کتاب کښی په ص۴۳ باندی داتم دلیل د
لاندی کړیدے،

"قال ابن عمر نبقول رسول الله صلی الله علیه وسلم
أحق أن تأخذوا او بقول ابن عباس، مسلم (۴۰۵/۱)

عبد الله بن عباس رضی الله عنهما خپلی مسئلے ته د پیغمبر
علیه السلام سنت وائی، اوحال داچه ابن عمر رضی الله عنهما
وائی چه دا سے نه ده. دغه شان دا مسئله هم ده، او تا دا
انصاف کړیدے، چه په ص۳۹ ډ ددغی مسئلے په وجه شیخین
رضی الله عنهما مطعون کړه، چه کښی دوئ د پیغمبر علیه السلام
دعمل نه خلاف کړی، العیاذ بالله.

او په ص۴۳ ډ بیا هم په دغه مسئله د عبد الله بن عمر رضی الله
عنه لهطرفه په عبد الله بن عباس رضی الله عنهما باندی
رد اوکړو او طعن ډ اوکړو، چه د ے کښی د پیغمبر علیه السلام
نه خلاف دے. شاپسے کونړ ملا، ع

ایں کار از تو آید و مردان چنیں کنند

د جنازے په باره کښی د نبی علیه السلام نه تپوس شویدے
نو هغوئ جواب ورکړیدے.

"إذا صلیتم فأخلصوا له الدعاء". رواه ابوداود.

اوکونړ ملا که ته دا وائے چه صحابی چه کله سنت لفظ اووائی،

نومراد تري د پيغمبر عليه السلام سنت وي، نو دا او وايې چې دا په کوم حديث کښې راغلي دي، او که تقليدًا ئې وائي نو بيا د نفاق نه کار اخلي، ځکه چې هم د تقليد په رد کښې کيائې او هم تقليد کوي، بله دا چې دا د اصول حديث خبره ده شوافع ددې قائل دي، احناف ئې قائل نه دي، اوګوره اصول سرخسيؒ - او د دعا په نيت ئې لوستل جائز ځکه دي، چې دا صورت په دعا باندې مشتمل دے۔

(۸۰) کوم ملا وائي، هدايه ۱/۱۸۰ کښې دي، چې په جنازه کښې به ثناء يعني سبحانك اللهم وائي، مونږ وايو دې باره کښې صحيح او صريح حديث راوړئ. ص۱۰۹

جواب :- "مالك عن سعيد المقبري عن أبيه أنه سأل أبا هريرة كيف يصلي على الجنازة فقال أنا لعمر الله اخبرك اتبعها من اهلها فاذا وضعت كبرت فحمدت الله وصليت على نبيه الخ موطأ امام مالك ص۱۶۴-۱۶۵

يعني د تکبير نه روستو د الله پاك حمد به وايم، او ثناء هم د الله تعالى حمد دے۔

## د فاتحې نه لوستل :-

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه ددې حديث نه دا هم معلوميږي، چې د فاتحې قرات

پکښې نشته ، د اهل السنة والجماعة په نيزد د صحابي غير مدرك بالعقل د مرفوع حديث په حکم کښې دے، نو دا حديث په د واړو مسئلوکښې حجت دے، هم په ثناء کښې اوهم په فاتحه نه لوستلو کښې . ځکه امام محمدؒ دد ے حديث دنقل کولو نه روستو وائي ،

" قال محمد وبهذا نأخذ لا قرأة على الجنازة وهو قول ابي حنيفة رحمه الله تعالىٰ" اه موطا امام محمد ص۱۶۵

(۸۱) کونړملا وائي، هدايه ۱/۱۸۱ کښې دی، چه امام به د زنانه اوسړی دواړو سينه ته اودريږی ، اوحال داچې په دی خبره هيڅ دليل نشته ، اوصحيح حديث کښې راځي چه دسړی سرته به نبي عليه السلام اودريدو ، اودزنانه کناټوته به ودريدو ، لکه بخاری ۱/۴۷ . مشکاة ۱/۱۴۷ مفصلاً اوګوره ص۱۱۰ .

جوابـــ :- عن سمرة بن جندب أن امرأة ماتت في بطن فصلى عليها النبي صلى الله عليه وسلم فقام وسطها اه بخاری ۱/۴۷ . مشکاة ۱/۱۴۵ ،

يعنی مينځ ته اودريدو ، اود احنافو مذهب د د ے حديث مخالف نه دے ، ځکه چه د انسان وسط يعنی مينځ ګيډه راځي . اوسينه د دی سره جخته وی ، کونړملا په دی حديث کښې

دکوناتې ذکر نشته، کیدیشي غیر مقلدین وسط (مینځ) ته کوناتې واٸ. او یا کیدیشي چه ددوٸ کوناتې په مینځ کښې وی. والله أعلم بحقیقة الحال۔

باقې پاتې شوه دا خبره، چه دابوداؤد په روایت کښې دکوناتې ذکر راځي، نوکوم ملا عقل د نصیب شه، لیږ د مشکاة په ځاٸے به دِ دابوداؤد دغه روایت مفصل کتلے وے، چه ددې خبرے حقیقت درته معلوم شوے۔ ددې روایت په اخیر کښې دی۔

"قال أبو غالب فسألت عن صنیع أنس في قیامه علی المرأة عند عجیزتها فحدثوني أنه إنّما کان لانه لم تکن النعوش فکان الإمام یقوم حیال عجیزتها یسترها من القوم اھ سنن ابی داؤد باب أین یقوم الإمام من المیت إذا صلی علیه (۲ - ۱۰۰)

یعنې په دغه زمانه کښې په جنازه د پاسه نه د پټولو څه شے نه وُو۔ نو امام به د ښځے کوناتو ته اودریدو، چه دخلقو نه ئے پټ کړي۔ کوم ملا هسے دا عام عادت نه وُو، ځکه خو ابوغالب نافع رحمه الله تعالیٰ د حضرت أنس رضی الله عنه ددی عمل په باره کښې تپوس اوکړو، چه دا ئے ولے اوکړه، نو خلقو ورته ددی وجه بیان کړه، که چرے دا

عمل همیشه او هر ځائے وے، نو بیا به ابو غالب رحمه الله نیوس نه کولو، او صاحب الهدایه هم دیته اشاره کړیده،
"قلنا تأویله أن جنازتها لم تکن منعوشة اه هدایه (۱۸۱/۱)

(۸۲) کوثړ ملا وائی، هدایه ۱/۱۸۱ کښې دی، چه په مسجد کښې جنازه جائز نه ده، او حدیث نه ثابته ده. ص۱۱

جواب :- که د عذر په وجه سره په جمات کښې جنازه او شی، نو خیر دے، اګر که بغیر د څه عذر لکه باد و باران له وجې نه وی نو جائز نه ده، د حضرت ابو هریره رضی الله عنه د حدیث په وجه سره،

"عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من صلی علی میت فی المسجد فلا شئ له اه
أخرجه ابوداؤد وابن ماجه نصب الرایه (۲/۲۸۲)

د دی حدیث په راوی صالح مولی التوءمة باندی اعتراض دے چه په اخیره کښې پرے اختلاط راغلے وو، خو په دی حدیث کښې د صالح نه روایت ابن ابی ذئب کوی، او د دوئی ترے د اختلاط نه مخکښې حدیث وئیلی دی.

"ابن عدی فی الکامل ......... وأسند عن ابن معین أنه قال فیه ثقة إلا أنه اختلط قبل موته فمن سمع منه قبل ذلك فهو ثبت حجة، وممن سمع منه

قبل الاختلاط ابن ابی ذئب" اھ نصب الرایة (۲/۲۸۳)
اوس که د عذر په وجه سره په جماعت کښې او بغیر له عذره د جماعت نه بهر اوشی، نو په دواړو وخدیثونو به عمل اوشی، خو غیر مقلدین یو حدیث اخلی او بل پریږدی، بیا هم ځان ته اهلحدیث وائی۔ ع برعکس نهادند نام زنگی کافور

(۸۳) هدایه ۱/۱۸۵ کښې دی چه په ماشوم زکاة نشته او حال داچه صحابه کرامو اخستی لکه موطاً ۱/۱۰۶، بیهقی ۴/۱۰۶ عبدالرزاق ۴/۶۹، نصب الرایة ۲/۲۳۲، او حدیث د بخاری ۱/۱۸۶ ص ۱۱۰۔

جواب :۔ د حضرت عائشې رضی الله عنها حدیث دے

"عن عائشة رضی الله عنها عن النبی صلی الله علیه وسلم قال رفع القلم عن ثلاثة" : عن النائم حتی یستیقظ وعن الصبی حتی یحتلم وعن المجنون حتی یعقل، رواه ابوداؤد، وابن ماجه والنسائی اھ

نصب الرایة طبع جدید (۲/۲۳۹)

او د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما اثر هم د دې خبرې تائید کوی۔

"عن ابن عباس رضی الله عنه قال لا یجب علی مال الصغیر زکاة حتی تجب علیه الصلاة، رواه الدارقطنی (۱/۲۰۶)

او په مصنف عبدالرزاق کښې د حسن بصري رحمه الله اثر -

"یقول فی زکاة مال الیتیم لیست علیه زکاة کما لیست علیه صلاة اھ مصنف عبدالرزاق (۴ - ۶۹)

الغرض د حسن بصری رحمه الله هم دا مذهب دے، چه په نا بالغه باندی زکاة نشته، ځکه چه یتیم نا بالغه ته وائی۔

(۸۴) کونږملا وائی، هدایه ۱/۱۹۱ کښې دی، چه اسونو کښې زکاة نشته، او حال دا چې دی باره کښې نه کوم نصاب شریعت مقرر کړیدے او نه صراحةً حکم راغلی دی، ص ۱۱۱

جوابٌ :- د حدیث " لیس علی المسلم فی عبده ولا فی فرسه صدقة " مطلب دا دے، چه د غازی په اس کښې زکاة نشته۔

" ذکره ابو زید الدبوسی فی کتاب " الاسرار "، فقال إن زید بن ثابت لما بلغه حدیث أبی هریرة رضی الله عنه قال صدق رسول الله صلی الله علیه وسلم انما أراد فرس الغازی ومثل هذا لا یعرف بالرأی، فثبت أنه مرفوع انتهی، وروی أبو أحمد بن زنجویه فی کتاب " الاموال " .......... عن ابن طاؤس عن أبیه أنه قال سألت عن ابن عباس عن الخیل أ فیها صدقة؟ فقال لیس علی فرس الغازی فی سبیل الله صدقة اھ

نصب الرایه طبع جدید (۲/۳۳۶)

دا دواړه صحابه کرام وائي، چه مراد ترے دغازی اس دے.
نور هم ډیر دلائل شته خود تطویل د ویرے ئی نه شو ذکر کولے، که څوک زیات تفصیل غواړی، نو اعلاء السنن باب الزکاة فی الفرس (۹-۳۱) ته په تفصیل سره اوګوری۔

## دکوثر ملا په بخاری باندې دروغ ـ

کوثر ملا وائي۔" لکه امام بخاری ۱/۱۹۷ حدیث راوړی.
" قد عفوت لکم عن صدقة الخیل " ص۱۱۱
ما مخکښ وئیلی چه کوثر ملا ترڅو پورې دروغ نه وی وئیلی روټئ ئے نه هضمیږی. ګورئ دلته ئے په بخاری باندې دروغ وئیلی دی، ځکه چه دکوثر ملا دغه ذکر کړی الفاظ د بخاری په دغه صفحه هډو د سره شته دے نه، امام بخاری رحمه الله باب تړلے " لیس علی المسلم فی عبده صدقة " او بیائے حدیث
" لیس علی المسلم صدقة فی عبده ولا فی فرسه "
راوړے ص ۱۹۷ ج ۱ دکوثر ملا نه صحیح بخاری هم خلاص نه شو په هغے ئے هم دروغ اووئیل۔

(۸۵) کوثر ملا وائي، هدایه ۱/۱۹۶ کښې دی، چه ضم د سرو زرو په سپینو زرو سره کیږی، او په دی دلیل نشته ص۱۱۱
جواب ۱:- د ضم مسئله اجماعی ده، ابن همام رحمه الله وائی

قوله ويضم، حاصله أن عروض التجارة يضمّ بعضها إلى بعض بالقيمة وان اختلف أجناسها، وكذا تضمّ هي إلى النقدين بالإجماع الخ فتح القدير طبع جديد (۲-۲۲۸)

دغه شان امام علاء الدين الكاساني رحمه الله ليكي.

• ولنا ما روي عن بكير بن عبد الله بن الأشج أنه قال مضت السنة من أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم بضمّ الذهب إلى الفضّة والفضّة إلى الذهب في اخراج الزكاة اه بدائع الصنائع (۲/۱۹)

کوڼ ملا عقل دِ نصيب شه، دا په رأى سره زكات فرض كول نه دى، بلكه په اجماع سره دى، او هيڅ يو صحيح حديث ئے خلاف نشته، تا دلته هم د امام نووئ تقليد كړيدے او هم د تقليد رد كوے، ولے دا تضاد بياني نه ده؟

(۸٦) هدايه كښې راځي، چه په معدن او ركاز يعني خزانه كښې پنځمه حصه وركول دى. او حال داچې په خزانه كښې پنځمه ده او په ركاز كښې زكات دى، بخاري (۱/۲۰۳) مشكاة (۱/۱۵۹) صد ۱۱۱.

جواب :- کوڼ ملا دلته دِ بيا دروغ اووے. تا چه کوم تفصيل او فرق ذكر كړيدے، په دى باندى نه په بخاري كښې

څه حدیث شته - صرف د امام بخاریؒ مناقشه ده، او دا دهغه خپل فهم دے، په بل چا حجت نه دے، او نه دا فرق په مشکاة کښې شته - بلکه د مشکاة په دغه صفحه ۱۵۹ باندې هم د دې دواړو بحث نشته - باقی مونږ دا وايو چه رکاز خزانے او معدن دواړو ته شامل دے، امام زيلعیؒ ليکي،

" والركاز يطلق على المعدن وعلى الركاز المدفون هكذا ذكره المصنف ، فهنا استدل بالحديث على المعدن وفيما بعد استدل به على الكنز ، واستدل لنا الشيخ في " الإمام " بحديث اخرجه البيهقي في المعرفة ......... عن أبي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم في الركاز الذي ينبت بالأرض ، وقال البيهقي وروى عن أبي يوسف رحمه الله ......... عن أبي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم في الركاز الخمس قيل وما الركاز يا رسول الله ؟ قال خلقه الله في الأرض يوم خلقت اھ

نصب الراية طبع جديد (۲/۳۹۳)

دلته د رکاز اطلاق په معدن هم شوی دے، نو څکه

حکم ئے یو دے، او په معدن کښې د زکات حدیث چه په موطا کښې دے، هغه منقطع دے، کما فی نصب الرایه (۲-۳۹۵) نو کونړ ملا تاچه کوم فرق ذکر کړید ے، په دی باندی صرف ستا دروغ دلیل دے، څه صحیح مرفوع متصل حدیث پرے دلیل نشته - اوس که ته خپل دلیل هم په مونږ دلیل کړځوے، نو دا ستا خوښه ده، فعلیک ما علیک

(۸۷) کونړ ملا وائی، هدایه ۱/۲۰۱ کښې دی، چه د ځمکی نه څه شی راووتلو پس په هغی کښې عشر لازم دی، او نصاب نشته، او حدیث کښې دی، "لیس فیما دون خمسة اوسق صدقة" صـ ۱۱۱ -

جواب:- بخاری کښې دی،

" عن ابن عمر قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم فیما سقت السماء والعیون أوکان عشریا العشر الخ

نصب الرایه (۲/۳۹۹)

کونړ ملا عقل د نصیب شه، دا حدیث عام دے، او حدیث "لیس فیما دون خمسة اوسق صدقة" خاص دے، او عام مقدم وی په خاص باندی، او دا حُکه چه د دواړو حدیثونو په مینځکښې تعارض ظاهر دے - په دی باره کښې آثار

اوګوره، نصب الرایة (۲-۴۰۰)

(۸۸) کوم ملا وائي، هدایه ۱/۲۰۱ کښې دي، چه ترکاریانو کښې هم عشر شته، او حدیث کښې دي "لیس فی الخضراوات صدقة" مشکاة ۱/۱۵۹ - ص۱۱۲

جواب :- عن سالم عن أبیه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال فیما سقت السماء والعیون العشر او کان عشریا العشر وما سقی بالنضح نصف العشر رواه البخاری (۱-۲۰۱)

عن جابر بن عبد الله عن أبیه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال فیما سقت السماء والأنهار والغیم العشر وفیما سقی بالسانیة نصف العشر، رواه مسلم (۱-۳۱۶)

اثر ۴- عن عمر بن عبد العزیز قال فیما أنبت الارض من قلیل او کثیر العشر، مصنف عبدالرزاق بحواله اعلاء السنن (۹/۴۵)

دا دوه حدیثونه او دا اثر په دې دلالت کوي، چه د زمکې په هر پیداوار کښې عشر یا نصف عشر شته، باقي پاتې شو حدیث "لیس فی الخضراوات صدقة" نو کوم ملا عقل د نصیب شه دا ضعیف دے، امام ترمذی رحمه الله وائي، لیس یصح عن النبی صلی الله علیه وسلم فی هذا الباب شئ اه نصب الرایة طبع جدید (۲-۴۰۱)

یعنی په دی مسئله کښ د پیغمبر علیه السلام نه هیڅ یو صحیح حدیث نشته - کوږ ملا د صحیح احادیثو په مقابله کښ ضعیف حدیثونه پیش کوی - هغه مثل دے "وائی اخوند له خوچه پټی وی که دخرے اوکه دسپئ وی" کوږ ملالخو اعتراض کول دی، که صحیح وی اوکه غلط - مقصدئے حق بیانول نه دی -

(۸۹)ع- کوږ ملا وائی، هدایه ۱/۲۰۷ کښ دی، چه یو فقیرته پوره نصاب ورکول مکروه دی، داچا مکروهه کړی دی ص۱۱۲ -

جوابُ :- کوږ ملا تاله پکار وُو، چه دپیغمبرعلیه السلام حکم دِ نقل کړیوے، چه د فقیرغنی کول صحیح دی- نو بیا به دی اعتراض کولو -

ابوداؤ د کښی دی - " عن أبی سعید قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا تحل الصدقة لغنی إلاّ فی سبیل الله اوابن السبیل اوجار فقیر یتصدق علیه الخ" (۱/۲۳۸) اعلاء السنن (۹/ ۸۹)

کله چه یو فقیرله پوره نصاب ورکړے شی- نو دورکولو سره هغه غنی شو، نو اداء اوغناء تقریبًا سره یو ځائے شو- کراهت له دی قرب دوجے نه دے۔

فتح القدیر کښې دی۔

"إن الغنی حکم الاداء فیتعقبه لکنه یکثر لقرب الغنی کمن صلی وبقربه نجاسة الخ" (۲۱۶/۲)

(۹۰) کوږ ملا وائی، هدایه کښې دی چه د کافر غلام ده طرف هم سرسایه شته، او محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی "من المسلمین" بخاری (۱/۲۰۵) ص۱۱۲

جواب:- کوږ ملا عقل د نصیب شه. د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په دی حدیث بخاری (۱/۲۰۴) کښې د "من المسلمین" قید ذکر دے، او د بخاری په ۱/۲۰۵ باندی د هغوی "بل حدیث"

قال فرض رسول الله صلی الله علیه وسلم صدقة الفطر صاعًا من شعیر او صاعًا من تمر علی الصغیر والکبیر والحر والمملوک"

ذکر دے او د "من المسلمین" هیڅ قید پکښې نشته او بچپله د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما عمل هم دا وُو.

معارف السنن کښې دی.

"ونقول ایضًا أن راوی حدیث الباب ابن عمر وکان یخرج صدقة الفطر عن کل عبد کافر ومسلم کما فی فتح الباری، والله أعلم - أخرجه من حدیث ابن اسحٰق قال حدثنی نافع أن ابن عمر کان یخرج

عن اهل بيته حرهم وعبدهم صغيرهم وكبيرهم مسلمهم وكافرهم من الرقيق اه معارف السنن (۳۱۲/۵)
او مونږ وايو کله چه راوی دخپل روایت په خلاف عمل اوکړی، نو دا د نسخ علامت دے، کنی بیا د راوی عدالت ساقطیږی، او په صحابه کرامو باندی مونږ دا بدګمانی نه کوُو، چه کنی دوئ به لهٔ قصده دپیغمبر علیه السلام دحکم خلاف کړے وی، ځکه چه اهل السنة والجماعة په "الصحابة کلهم عدول" باندی متفق دی.

(۹۱) کونړ ملا لیکی، هدایه ۱/۲۱۱ کښی دی، چه د رمضان روژے د پاره هره شپه نیت نشته، او حدیث کښی راځی" لاصیام لمن لم یجمع الصیام من اللیل، رواهٔ ابوداؤد ۱/۳۳۳ بسند صحیح.

جوابُ :- کونړ ملا ستر ګے مه پټوه، دا حدیث موقوف دے، مرفوع نه دے، امام نسائی رحمه الله وائی،
"قال النسائی: الصواب عندی موقوف"، نصب الرایة طبع جدید (۲/۴۵۲)
ددی حدیث د پوره تخریج او تفصیل د پاره نصب الرایه اوګوره، نو کونړ ملا دا حدیث موقوف دے، او بل

طرفته مرفوع حدیث دے۔ امام بخاری رحمه الله پرے داسے باب تړلے دے۔

"باب إذا نوى بالنهار صومًا وقالت أم الدرداء كان ابو الدرداء يقول عندكم طعام فان قلنا لا قال فاني صائم يومي هذا وفعله ابو طلحة وابو هريرة وابن عباس وحذيفة، حدثنا ابو عاصم........عن سلمة بن الأكوع أن النبي صلى الله عليه وسلم بعث رجلا ينادي في النّاس يوم عاشوراء أن من أكل فليتم اوفليصم ومن لم يأكل فلا يأكل اه

بخاری (۱ - ۲۵۷)

دا حدیث په دې مسئله باندې صفا دلالت کوي، چه د ورځې هم نیت صحیح دے د شپې نه نیت څه ضروري نه دے، کونړ ملا عقل د نصیب شه، دا د نص په مقابله کښې په قیاس نه بلکه په حدیث عمل دے۔ باقي د کونړ ملا دا دعوی "چه هاں نفلي روژه ددې قانون نه بل حدیث مستثنی کړیده ص۱۱۲ باطله ده۔ ځکه چه دا چه هیڅ یو صحیح مرفوع حدیث کښې نشته۔ چه د فرض او نفلي روژے په نیت کښې فرق دے۔ کنې کونړ ملا له پکار وُو، چه هغه حدیث ئے ښوولے وے، اوګوره امام بخاري پرے باب

نہلے۔ او هیڅ فرق ئے دفرضی او نفلی روژے نه دے
کړے۔ کونړ ملا له ځانه استثناء کانے مه کوه۔ او په خلقو
بےځایه بدګمانئ مه کوه، لهخدایه اوویریږه که په خدائے
ایمان لرے۔

**(۹۲)** کونړ ملا وائی، فقه کښی راځی چه درمضان روژه
او د نذر روژه په بل نیت سره هم صحیح کیږی .....
او حدیث کښی دی "انما الاعمال بالنیات" ص۱۱۳

جواب :۔ کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، درمضان
میاشت دشارع له طرفه مقرر ده، تعیین ئے دشارع
له طرفه شوید ے، یعنی "إذا انسلخ شعبان فلا صوم
إلا رمضان" نوله دی وجے نه هرنیت چه اوکړی نو
رمضان پرے اداکیږی، او ستاد کفارے قیاس کول دقیاس
نه دجهالت علامت دے، ځکه چه درمضان تعیین دشارع
له طرفه شوید ے، او دکفارے تعیین نه دے شوے، فافهم وتدبر

**(۹۳)** کونړ ملا وائی، هدایه ۲۱۸/۱ کښی راځی، چه چا په
ډکه خوله قئ اوکړو، روژه ئے ماته ده، او که په نیمه خوله
ئے قئ اوکړو نه ده ماته۔ او نبی علیه السلام فرمائی "من
استقاء عامدًا فعلیه القضاء" ترمذی ۲۱۹/۱، مشکاة ۱۷۶/۱ ص۱۱۳

جواب :- کنه ملا عقل د نصیب شه، لکه څرنګه چه په ډکه خوله قئ سره اودس ماتیږی، او که ډکه خوله نه وی او کړے نه ماتیږی۔ مصنف عبدالرزاق کښی دی۔

"عن ابن جریج قال قلت لعطاء أرأیت ان قلس رجل فبلغ صدره او حلقه و لم یبلغ الفم؟ قال فلا وضوء علیه الخ" (۱-۱۳۶)

دغه شان د روژے مسئله هم ده، باقی حدیث "من استقاء عمدًا فعلیه القضاء" نو دلته به څه دا اووایم، چه دلته دهم دخپلو مشرانو طریقه اختیار کړیده۔ ستاد مشرانو طریقه داده، چه "یاایها الذین آمنوا لاتقربوا الصلاة" خوانی، او "وانتم سکارٰی" پریږدی۔ تاهم دلته دغه بے ایمانی کړیده۔ چه حدیث خو دِ نقل کړیدے۔ او د حدیث حکم د پریښے دے۔ مشکاة والا د دی حدیث د نقل کولو نه روستو لیکی،

"رواه الترمذی وابوداؤد وابن ماجة والدارمی وقال الترمذی هذا الحدیث لانعرفه الامن حدیث عیسی بن یونس وقال محمد یعنی البخاری لا أراه محفوظًا" مشکاة (۱-۱۷۶)

د دی حدیث په باره کښی هم دا کافی دی چه امام بخاری

ورته غیر محفوظ وائی، ستا شرم له دا هم کافی دی۔ د نصب الرایه نه د مزید تفصیل بیانولو ضرورت نشته۔ ځکه چه نا د مشکاة نه نقل کړے، اوحکم د پریښے دے۔ دا تلبیس ابلیس او تدلیس او د سبسه کاری ستا سوجامه ده، خوشرمیږئ نه۔ او س چه حدیث ثابت نه شو، نو ستا د اعتراض دخر د تیز هومره حیثیت هم نشته۔
مونږ په نیزد قیاس حجت دے، اومونږه دا په اودس باندې قیاس کوو۔ کونړملا ته پرے دځه نه استدلال کوے ځکه چه حدیث خو ضعیف دے۔
(۹۴) کونړملا وائی هدایه ۲۲۲/۱ کښ راځی، چه د مانځه د قضاء فدیه نشته، اوحال دادی، داخبره خو ګک نشی ثابتولے ص۱۱۳۔
جوابٌ :- کونړملا، دلته احناف وائی۔
" النص بالفداء ورد فی الصوم وإنه غیر معقول المعنی فالقیاس أن یقتصر علی الصوم لکن النص الوارد فی الصوم جاز ان یکون معلولا لعلة مشترکة بین الصلاة والصوم وان کان لایدرکه عقولنا والصلاة نظیر الصوم بل اهم منه فامر المشایخ بالفداء فی الصلاة احتیاطا لم یحکموا

بجوازه قطعا مثل ماحکموا فی الصوم بل قالوا یجزیه
انشاء الله کمالو تبرع به الوارث فی الصوم اھ
کفایه علی ھامش فتح القدیر (۲/۲۶۹)

نو داخه ضروری نه ده که ورکړی او کنه - البته په ورکولوکښی
احتیاط دے، د الله پاک نه د قبولوالی امید دے، اوس
که څوك ئے لازم ګڼړی ، او حیلې او بهانے ورله جوړوی
او حیلۂ اسقاط غوندی مسئلے ترے جوړوی - نو دا دهغو
خلقو خپل ایجاد دے - مذهب دا نه دے - یعنی لزوم
پکښی نشته ، که چا ورکړه او که چا ورنکړه، اختیار ئے خپل
دے - البته احتیاط په ورکولوکښی دے -

(۹۵) کوټړ ملا وائی، هدایه ۱/۲۲۳ کښی دی ، چه څوك
مړشو، نو ولی به د هغه په ځای روژه نه نیسی، او بخاری
او مسلم کښی راځی " صام عنه ولیه " مشکاة ۱/۱۷۳ ص۱۱۲

جواب ۱:- کوټړ ملا غوږ به داوی، چه په دی مسئله
کښی ددی حدیث په باره کښی د هغه کسانو تشریح ته غوږ
شو چا چه پخپله د پیغمبر علیه السلام نه احادیث اوریدلی
دی -

(۱) حدیث ابن عباس رواه النسائی فی سننه الکبری
فی الصوم " عن ابن عباس قال لا یصلی أحد عن أحد

ولا يصوم أحد عن أحد ولكن يطعم عنه مكان
يوم مدا من حنطة اه نصب الرايه طبع جديد (۲-۴۸۸)

(۲) حديث ابن عمر رواه عبد الرزاق في مصنفه في
كتاب الوصايا " عن ابن عمر قال لا يصلين أحد
عن أحد ولا يصومن أحد عن أحد ولكن ان كنت
فاعلا تصدقت عنه أو اهديت اه نصب الرايه (۲/۴۸۸)

دا دواړه حديثونه اګرچه موقوف دی. خو دا اصول حديث
دا قاعده ده، چه موقوف د صحابي که غير مدرك بالعقل
وی، او په اجتهاد باندی بناء نه وی، نو دا د مرفوع
حديث په حکم کښی وی، نو د حضرت عائشې رضی الله
عنها د حديث بخاری ومسلم هم دا مطلب شو، چه فديه
به ورکوی، او په فديه ورکولو سره به د مړی غاړه داسې
خلاصه شی لکه څنګه چه په روژه نيولو باندی.

بعضی اهل علمو دا حديث په نذر باندی محمول کړيدی
قال صاحب التنقيح حمل اصحابنا حديث عائشة
على صوم النذر لما روى عن عائشة انها قالت
يطعم عنه في قضاء رمضان ولا يصام اه
او په حديث د ابن عباس رضی الله عنهما کښی د دی تصريح
موجود ده ده.

عن ابن عباس أن امراءة رکبت البحر فنذرت إن الله نجاها أن تصوم شهرًا ، فنجاها الله فلم تصم حتی ماتت فجاءت بنتها أو أختها إلی رسول الله صلی الله علیه وسلم فأمرها أن تصوم عنها اه رواه ابوداؤد فی النذر والأیمان اه نصب الرایه (۲-۲۸۹)

له دینه معلومیږي، چه دا د نذر روژے وے، درمضان قضاء روژے نه وے- کونړ ملا یو حدیث راخلی، او له نورو نه سترګے پټوي -

(۹۶) کونړ ملا وائی، هدایه ۲۲۴/۱ کښي دي، چه که چا قصدًا روژه اوخوړه، کفاره پرې شته، اوکه د سحر نه وړلړه نیت نه کوي نو بیا کفاره نشته ص۱۱۴ -

جواب :- کونړ ملا عقل د نصیب شه - جنایت په روژه باندی هله متصور کیږي، چه روژه وي، او د روژے نیت ئے کړے وي- اوکله چه نیت ئے نه دے کړے نو روژه نه شوه، اوچه روژه نه شوه، نوجنایت په روژه رانغے، نو کفاره له کومه ځایه واجبه شوه ؟

کونړ ملا دلته د رنه حدیث " انما الاعمال بالنیات " جوړے هیرشوېدے، یا دی سترګی پټے کړیدي- بغیر د نیت نه روژه څنګه کیدیشي- تالره پکار وُو چه حدیث

د ذکر کړیوے، چه که چا داسے وکړه، نو هم پرے قضا ءشته او هم کفاره۔ عقل د نصیب شه، دلیل د مدعی په ذمه وی، او مدعی ته ئے۔ ځکه چه ستاگمان داد ے چه کفاره پرے شته۔

(۹۷) کوڼ ملا وائی، هدایه ۲۲۷/۱ کښ دی، چه د اودی زنانه سره چه روژه ئے وی، چا جماع اوکړه، نو د هغے روژه ماته شوه۔ څه دلیل دے؟ په لاڼه کا رنکیږی.

جواب:- کوڼ ملا عقل د نصیب شه، په جماع سره روژه ماتیږی، په دی باندی د حضرت ابو هریره رضی الله عنه حدیث دلیل دے۔

"عن ابی هریرة قال أتاه رجل فقال یارسول الله هلکت قال وما اهلکك؟ قال وقعت علی امرأتی فی رمضان قال هل تستطیع أن تعتق رقبة؟ الخ

ترمذی باب ما جاء فی کفارة الفطر فی رمضان (۱۵۲/۱)

ځکه چه جماع متحقق شوه، او په دی سره روژه ماتیږی، گوره په دی حدیث کښ دا تفصیل نشته، چه ښځه ویښه ده او که اوده، مطلقا د ښځے سره په کور والی باندی روژه ماتیږی۔ کوڼ ملا دا سے معلومیږی، چه په روژه کښ غیرمقلدین د خپلو اوده ښځو سره هم کوی او لا مبی او

هم ئے روژه دی، ع
اند کے اندر رہے ہاتھ سے جنت نہ گئی

## دکوثرملا افتراء ۹-

کوثرملا دخپل عادت مطابق دلته هم په هدایه باندی افتراء کړیده . او دروغ ئے وئیلی دی. چه کنی هدایه والا ددی مسئلے د پاره په "لأنه" سره عقلی دلیل پیش کړیدے. څو ایم کوثرملا چه دروغ او نه وائی، پوری ئے نه هضیږی. خیر- دحساب کتاب ځائے شته -

(۹۸) کوثرملا وائی، هدایه ۱/ ۲۳۹ کښی راځی، چه سړی به مخ نه پټوی په احرام کښی ځکه حدیث کښی راځی " لا تخمروا رأسه ولا وجهه "، صـ ۱۱۴

جوابؒ :- کوثرملا عقل دنصیب شه، لږی سترګے وغړوه .

أخرج الدارقطنی......... عن ابن عباس عن النبی صلی الله علیه وسلم فی المحرم یموت قال خمروهم ولا تشبهوا بالیهود اه

داحدیث اګرچه دسند په اعتبار لږ کمزورے دے خو دارقطنی دا حدیث صحیح دے،

وأصح من هذه الطریق أخرجه الدارقطنی......

......عن ابن عباس قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم خمروا وجوه موتناكم ولا تشبهوا بالیهود اھ
نصب الرایه (۳/۳۲)
کوره په دی حدیث کښی د مخ د پټولو صفا ذکر دے.

## دکونړملا دروغ:-

کونړملا وائی، دا الاهم واوره
چه په دی حدیث کښی وجهه قید صحیح نه دے۔ ص۱۱۵
او حال داد ے چه د مسلم په حدیث کښی دا قید شته.
"قال علیه السلام فی محرم توفی" لا تخمروا رأسه ولا وجهه فانه یبعث یوم القیامة ملبیا اھ قلت أخرجه مسلم الخ نصب الرایة طبع جدید (۳-۲۳)
د تفصیل د پاره اوګوره د مسلم" باب ما یفعل بالمحرم اذا مات" (۱-۳۸۴) کونړملا دومره په جرأت سره دروغ مه وایه. ځکه چه په دروغژن د خدائے لعنت وریږی.

(۹۹) کونړملا وائی، فقه کښی راځی چه د حجراسود د خکلولو وخت کښی به لا إله إلا الله وائی. او حدیث کښی صرف بسم الله الله اکبر راځی. مشکاة ۱/۲۱ بخاری ص۱۱۵

جوابؒ :۔ عجيبه ده کونړ ملا د کلمه توحيد په وينا هم اعتراض کوی۔ کونړ ملا دا سے مه کوه، کافر به شے۔ بله دا چه دا صاحب الهدايه له ځانه نه دی ويلی۔ بلکه له حديث نه ثابت دی۔

" أخرجه الإمام أحمد والبيهقی عن سعيد بن المسيب عن عمر أن النبی صلی الله عليه وسلم قال له يا عمر إنك رجل قوی لا تزاحم علی الحجر فتوذی الضعيف إن وجدت خلوة وإلا فاستقبله وكبر وهلل اه

نصب الراية طبع جديد (۳-۴۳)

کونړ ملا د "هلل" معنی ده لا إله إلا الله ويل، که تا له ددی معنی نه درځی، نو خير په دين کښ شرم نه دے پکار، شفاء العیّ السوال،، له چا نه تپوس اوکړه، خو د حديثو نه انکار مه کوه، او خپل مشران رونړه منکرين حديث مه خوشحالوه ځکه چه انکار حديث کفر دے۔

## دکونړملا دروغ :

کونړ ملا د" بسم الله الله اکبر"

حواله د مشکاة په (۱-۲۲۱) باندی ورکړيده۔ او دغلته داحديث لشته۔ په بخاری ئے هم حواله ورکړيده، او حال دا دے چه په بخاری کښ د عبد الله بن عباس رضی الله

عنهما په حديث کښې دی۔

" أنه عليه السلام طاف على بعير كلما أتى على الركن أشار إليه بشئ في يده وكبر" نصب الرایه (۳/۴۲)

بخاری باب التكبير عند الركن (۱-۲۱۹)

کونړ ملا عقل دِ نصیب شه " بسم الله الله اکبر" به عبد الله بن عمرو ے۔ نصب الرایه (۳-۴۲) دا موقوف دے، او د حضرت عمر رضی الله عنه روایت مرفوع دے۔ معلومیږی دکونړ ملا د حدیث سره څه کار نشته، مقصد ئے تش اعتراض کول دی، اګر که غلط وی۔

(۱۰۰) کونړ ملا وائی، هدایه ۱/۲۵۷ کښې راځی چه حج قران کښې دوه سعی او دوه طواف دی۔ او حال دا چه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم یو سعی کړیدی او یو طواف ئے کړیدی، دا خبره متواتر روایاتو کښې راځی ص۱۱۵

جواب :- کونړ ملا عقل د نصیب شه- دا مسئله د صحابه کرامو په مینځکښې اختلافی ده، بعضے د یو طواف قائل دی او بعضے د دوو- ګوره د حضرات عمران بن حصین رضی الله عنه روایت دے۔

" إن النبي صلى الله عليه وسلم طاف طوافين وسعى سعيين اه " سنن الدار قطنی مطبوعه دهلی (۲-۲۶۳)

باقی د دارقطنی رحمه الله دا اعتراض۔

"محمد بن یحیي حدث من حفظه فوهم فی متنه...... رواه الحافظ علاء الدین فی الجوهر النقی" وقال قوله" حدث به من حفظه فوهم" لم ینسبه إلی أحد ممن یعتمد علیه الخ
معارف السنن (۶-۲۷۵)

محمد بن یحیي ثقه راوی دے۔ او دا حدیث بالکل صحیح دے هم دغه وجه ده، چه د دوو طوافونو او د دوو سعیو حضرت علی او حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنهما هم قائل دی، نصب الرایه طبع جدید (۳-۱۲۹) نو دوه طوافه او دوه سعی د حدیث نه ثابت دی۔

(۱۰۱) کونړ ملا وائی، هدایه ۱/۲۵۸ کښی دی، چه قران په غیر د بوتلو دهدی نه هم کیږی، او حال دا چی نبی علیه السلام سوق دهدی شرط کړیدی د قران د پاره، بخاری ۱/۲۱۲۔ مشکوٰة ۱/۲۲۲، ص ۱۱۵ ۔

جواب:۔ کونړ ملا دلته دوه دروغ ویلی دی، اول ئے په هدایه، ځکه چه دهدائے په دغه صفحه باندی هدو دسره دا مسئله شته دے نه، بلکه د تمتع په باب کښی په ص ۲۶۲ ج ۱ باندی بیکی۔

"وإن اراد المتمتع أن یسوق الهدی أحرم وساق هدیه

وهذا أفضل لأن النبي صلى الله عليه وسلم ساق الهدايا مع نفسه الخ ۱/۲۶۲

او بل يې په مشكاة او بخاري باندې بيا د دروغ وېلې دي، ځکه چه د مشكاة په ۱/۲۲۲ او بخاري ۱/۲۱۲ کښې هډو دسره دا سې څه حديث نشته، چه په هغې کښې دا صراحت وي، چه سوقِ هدي د قران د پاره شرط دې، که چا سوني هدي او نکړو نو حج قران يې و نشو. کونړ ملا که پتا کښې واقعي ايماني جرأت وي نو ښکاره يې کړه.

(۱۰۲) کونړ ملا وائي، هدايه ۱/۲۶۲ کښې راځي چه د بدنې وينې کول مکروه دي، او حال دا دي چه نبي عليه السلام دا کار کړيدې. ترمذي ۱/۱۸۱، مشكاة ۱/۲۳۱ ص۱۱۵

جواب: ـ امام ابوحنيفه رح د مطلق اشعار نه انكار نه کوي. امام طحاوي رح چه د امام ابوحنيفه رح د مذهب نه د نورو نه زيات خبر دې، وائي،

"إنه لم يكره أصل الإشعار وإنما يكره ما فعل على وجه يخاف منه هلاك البدن كسراية الجرح ام التعليق الممجد على موطأ للإمام محمد ص۱۹۷

باقي پاتې شوه د وكيع رحمه الله غصه. نو کونړ ملا ځان خبر کړه، په دې قول د نيا خبر ده، چه وكيع رحمه الله

په دامام ابوحنیفهؒ په قول فتوی ورکوله۔

"ثم إن وکیعًا کان یفتی بمذهب أبی حنیفة کما فی التهذیب عن ابن معین الخ معارف السنن (٦-٢٥٧)

نو دا څه داسې خبره نه ده چه کونړ ملا ئې پورته کوی۔

(۱۰۳) کونړ ملا وائی، هدایه ۱/۲۹ کښې راځی، چه دمیاشتو دحج نه مخکښې احرام تړل جائز دی۔ ص ۱۱۶

جواب :- کونړ ملا! عقل د نصیب شه۔ دا مسئله بے اساسه نه ده۔ ځکه چه په نیزد قیاس دلیل شرعی دے، دامسئله دقیاس نه ثابته ده۔ هدایه کښې دی۔

"وهو شرط عندنا فاشبه الطهارة فی جواز التقدیم علی الوقت الخ"

کونړ ملا تاله پکار وه، چه ددی قیاس خلاف دې څه صحیح حدیث پیښی کړیوے، خو تا هیڅ هم نه دی ذکر کړی۔ او هسې له ځانه غړیږی، چه دا بے اساسه دی، نه ګورے چه داساس معنی هم پیژنے اوکنه؟ او تا نه دا پته هم شته اوکنه؟ چه قیاس داهل السنة والجماعة په نیزد حجت دے، که ستا په نیزد نوی حجت۔ نو څه اوشو۔ ګوره یهود یان نزول قرآن نه منی خو مونږ ئې څه کولے شو؟

(۱۰۴) کونړ ملا وائي، " فقه کښې راځي لکه هدایه ۲/۳۰۵
چه په نکاح کښې لفظ د ماضي شرط دے په شریعت کښې
دارنګه لفظ د مضارع ، او حال دا دے چه شرط په منزله
د فرض دے ، الخ صـ۱۱۶

جواب :- کونړ ملا په دې سوال کښې څو دعوې کړیدي
(۱) وائي شرط په منزله د فرض دی صـ۱۱۶ تپوس :- کونړ ملا
ته خو وائي چه فرضیت په قرآن او حدیث راځي، نو ته چه
شرط ته په منزله د فرض وائي ، دا د کوم آیت یا حدیث
نه ثابت دی ؟ جواب ضروری دے۔
(۲) کونړ ملا ته وائي " نبي علیه السلام صحت د نکاح عرف
ته سپارلی (کونړ ملا همدغسې لیکلے دے صحیح لفظ "سپارلے"
دے ) دی، څه وایم هغه حدیث به دِ ذکر کړیوے، چه په
کوم کتاب او کوم باب کښې دے ؟ چه په هغې کښې دا تصریح
وی چه د نکاح صحت په عرف باندې دے ، کونړ ملا په
پیغمبر علیه السلام باندې دروغ مه وایه۔ په حدیث شریف
کښې راځي ،

" من کذب علیّ متعمدًا فلیتبوأ مقعده من النــار "

او کونړ ملا زور لګوی ، چه کله به جهنم ته ځي که خدائے سته
منظوره وی ، کونړ ملا ستا دا جهنم د ومره ولے خوښ

دے، فما أصبرهم على النار ۔

(۳)، کونړ ملا تا حدیث "کل شرط لیس فی کتاب اللہ باطل رواہ البخاری ۳۷۷/۱ نقل کړید ہے۔ لېن دا او وایه محدثینو چه د صحیح او صحیح لغیره، حسن او حسن لغیره وغیره دپاره کوم شرطونه ذکر کړیدی، دا د کوم آیت یا حدیث نه ثابت دی، شاید کونړ ملا لېن وغیرږه چه مونږ نه هم پته اوکړی۔

کونړ ملا عقل د نصیب شه، دماضی په صیغه سره د نکاح انعقاد پخپله د نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم نه ثابت دے۔

"عن سهل بن سعد أن رسول الله صلى الله عليه وسلم جاءته امرأة فقالت يا رسول الله إني وهبت نفسي لك فقامت طويلاً، فقال رجل يارسول الله زوجنيها إن لم تكن لك فيها حاجة فقال هل عندك من شيئ تصدقها فقال ما عندي إلا ازاري هذا قال فالتمس ولو خاتماً من حديد فالتمس فلم يجد شيئاً فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم هل معك من القرآن شيئ فقال نعم سورة كذا وسورة كذا فقال قد زوجتكها

بما معك من القرآن وفي رواية قال انطلق فقد زوجتكها علمها من القرآن ، متفق عليه مشكاة (۲/۲۷۲)

او په بخاري کښې دي۔

" ملکتکها بما معك من القرآن ، بخاري (۲ - ۲۶۲)

کوره د ماضي په صيغه سره د نکاح انعقاد د پیغمبر علیه السلام نه ثابت دے، عجیبه ده ، د خوارلس سوو کالو نه زیات تیر شو ، خو یو منکر حدیث هم په دے مسئله اعتراض نه دے کړے ، سیوا د کونړ ملا نه ۔ شاباسے کونړ ملا ع

ایں کار از تو آید و مردان چنین کنند

د مسئلے د مزید تفصیل د پاره فتح القدیر کتل پکار دي۔

(۱۰۵) کونړ ملا لیکي، فقه کښې راځي لکه هدایه ۲/۳۰۹ چا چه یو پردی زنانه په شهوت سره مسه کړه۔ نو مور او لور ئې پرې حرامه شوه ، او دلته پدې خبره کوم قوي دلیل نشته ص ۱۱۶

جواب :- د الله پاك فرمان دے "........ الذی یتخبطه الشیطان من المس" په کونړ ملا هم هغه کار نه شو یده ، وائي پدې مسئله باندې څه قوي دلیل نشته، کونړ ملا لږ سے ستر ګې وغړوه ۔ دا او ګوره ۔

(۱) عن جرير بن عبد الحميد عن حجاز عن أم هانی قالت قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من نظر إلی فرج امرأة لم تحل له امها ولا بنتها اه مصنف ابن ابی شیبة (۲/۱٦٥)

(۲) عن ابن هانی الخولانی قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من نظر إلی فرج امرأة لم تحل له امها ولا بنتها اه ابن ابی شیبة (۲ - ۱٦٥)

(۳) عن یزید الضبی قال سألت الحسن البصری عن رجل ضم إلیه صبیة بشهوة أیتزوج امها قال لا۔ رواه الامام محمد فی "الحجة علی اهل المدینة" اعلاء السنن (۱۱ - ۱۱۳)

(۴) عن ابراهیم قال إذا اقبل الرجل أم امرأته او لمسها من الشهوة حرمت علیه امرأته، أخرجه الامام محمد فی "الحجة علی اهل المدینة" اعلاء السنن (۱۱-۱۳۱)

کونړ ملا ددی احادیثو او آثارو نه سترګی پټوی، باقی دانزال په صورت کښی دا کټل چونکه مفضی إلی الجماع نه دی، لهٰذا حرمت مصاهرت نه ثابتیږی. کونړ ملا عقل دِ نصیب شه نو تناقض له کومه راغے ؟ ۔

(۱۰٦) کونړ ملا وائی، هدایه ۲/۳۱۳ کښی راځی چه یو زنانه خیل په خپله بی د اجازی د اولیا، خپل ځان په

نکاح ورکولی شی، اوحال داچه نبی علیه السلام فرمائی " لا نکاح إلا بولی " مشکاة ۲/۲۷۰ ص۱۱۷

جواب :- موبن ددی آیت " حتی تنکح زوجاً غیره " نه استدلال کوُو، په دیکښی د نکاح نسبت ښځے ته شوی دے، او دا ظاهره خبره ده، چه کتاب الله په حدیث باندی مقدم دے۔ دویم موبن د مسلم شریف د حدیث،

" عن ابن عباس أن النبی صلی الله علیه وسلم قال الأیم أحق بنفسها من ولیها الخ مشکوٰة شریف ص۲۷۰ ج۲

نه استدلال کوُو، او د مسلم دا حدیث د ترمذی وغیره د دغه حدیث نه مقدم دے، ځکه چه دابوموسی اشعری رضی الله عنه په دغه حدیث کښی اختلاف دے، لکه امام ترمذیؒ چه وائی، او د مسلم په دی حدیث کښی هیڅ اختلاف نشته۔ نو د کتاب الله او سنت نبوی په رڼړا کښی داحنافو مسلک ډیر مضبوط او مستحکم دے۔ کونړملا، هسے دغره سره سرمه د یچوه، سر به د مات شی۔

کونړملا مخکښی لیکی، چه " بیا په دی (یعنی د زنانه پخپله ځپل نکاح کول) مسئلی د کفو مسئلی تفریع کوی الخ ص۱۱۷

ځه وایم دا خبره کونړملا په خپل جهالت تفریع کړیده، ځکه چه د کفاءت مسئله په دغه مسئله متفرع نه ده۔ د هغے

خان له بحث دے او عمان له دلائل، ادکه یوځائے ذکرکول
د تفریع تقاضا کوی، نو دا د کوز ملا خپل خانه ساز اجتهاد
دے۔

**عجیبه** ۷۔ دا عجیبه ده چه په کومو ورځو یعنی مارچ
۱۹۹۶ء کښی ما دا اخبائے لیکلو، هم په دغه ورځو کښی د غیر
مقلدینو یو لوړ خاندان یعنی روپړیانو یوے جینئ چه نوم
ئے صائمه دے، او دراشد نوم سړی سره ئے پخپله نکاح کړے
وُو، او د لاهور هائی کورټ کښی مقدمه زیر سماعت وه.
د جینئ وکیلے عاصمه جهانګیر دا مقدمه اوګټله. او د جینئ
پلار غیر مقلد مولوی عبدالوحید روپړی دغه کیس او بائللو،
او د غیر مقلدینو په مخ ئے خاورے او نو ستلے. ع

تیاس کن زگلستان من بهار مرا

دا خبره د ملک ټولو اخبارونو په تفصیل سره ذکرکړیده،
او نن صبا پورے هم په جنلو اخبارکښی بحث مباحثے راځی
او لا راځی به. (راقم الحروف عفی عنه ۲۰ ذی قعده ۱۴۱۷ھ مطابق ۳۰ مارچ
۱۹۹۶ء) د غیر مقلدینو په نیز د کفاءت اعتبار نشته،
ځکه خو یو غیر مقلد خپله لور د مرزا قادیانی په نکاح کښی
ورکړیوه. او د غیر مقلدینو شیخ الکل فی الکل مولوی
نذیر حسین دهلوی ئے نکاح تړلی وُو. او مرزا قادیانی

ورله پنځه روپۍ او يو جانماز ورکړے وُو، د تفصيل دپاره د مرزا سيرت تأليف د بشيرالدين محمود ص۱۰۵ اوګوره يعنې د دوئ د ښځو نکاح د قاديانو سره هم کيږي. إنا لله وإنا إليه راجعون.

(۱۰۷) کونړ ملا ليکي، هدايه ۲/۳۲۶ کښې راځي، چه اقل مهر لس روپۍ دی، او نبي عليه السلام يوکوټي هم مقرر کړيده ص۱۱۷.

## د کونړ ملا دروغ :-

کونړ ملا وائي چه په هدايه کښې لس روپۍ مهر ذکر دے. او دا خالص دروغ دی. په هدايه کښې د لسو درهمو ذکر دے، د لسو روپو نه، که په کونړ ملا کښې د واقعي رتيټ هومره هم ايمان وی. نو په هدايه کښې دې او ښائي، ګني دروغ دِ نه وائي. باقي پاتے شوه، د لسو درهمو خبره، نو علامه ابن همام رحمه الله وائي.

"ثم اوجدنا بعض أصحابنا صورة السند عن الحافظ قاضي القضاة العسقلاني الشهير بابن حجر قال ابن أبي حاتم حدثنا عمرو بن عبد الله الأودي حدثنا وكيع عن عباد بن منصور قال حدثنا قاسم بن محمد قال سمعت جابرًا يقول قال

رسول الله صلى الله عليه وسلم "ولا مهر اقل من عشره" من الحديث الطويل، قال الحافظ إنه بهذا الإسناد حسن" ولا اقل منه اه فتح القدير ص ۲۸۱-۲۸۲ ج ۳

(۱۰۸) کونړ ملا ئیکی، هدایه ۲/ ۳۴۹ کښی دی چه سړی نوی واده اوکړی، نو د مخکینی اونوی ښځې په نوبت کښی فرق نشته۔ او حدیث د بخاری او مسلم کښی راځی۔ چه نوی پیاره به اوه شپی میلمستوب ورکول شی۔ ص ۱۱۷

جواب :۔ دام سلمة رضی الله عنها حدیث دے۔

عن أم سلمة رضي الله عنها أن رسول الله صلى الله عليه وسلم لما تزوجها أقام عندها ثلاثا وقال لها ليس بك على أهلك هوان، إن شئت سبعت لك، وإن سبعت لك سبعت نسائي اه رواه مسلم وابوداؤد وابن ماجة والدارمي ومالك وأحمد،

نصب الرايه طبع جديد (۲۸۳/۳)

په دی حدیث کښی دی، چه پیغمبر علیه السلام کله د أم سلمه رضی الله عنها سره نکاح اوکړو، نو او یې فرمایل چه که ته غواړے نو اوه شپے به تا سره یم، او که ستا سره اوه شپے پاتے شم نو بیا به د نورو ببیا نو سره هم اوه

شپے پاتے کیږم۔ ددے حدیث نه دا معلومیږی، چه په نوی او زړه کښ هیڅ فرق نشته، په دی حق کښ ټولے بیبیانے شریکی دی۔ نو د احنافو مذهب په صحیح حدیث باندی بناء دے۔ کوږ ملا هسے په " یوسوس فی الصدور الناس " باندی عمل کوی۔

(۱۰۹) کوږ ملا لیکی، هدایه ۲/۳۵ کښ دی چه د رضاعت مده دوه نیم کاله ده الخ ص۱۱۷

جواب:۔ د مذهب حنفی مفتی به قول دوه کاله دے د دوه نیم کاله قول غیر مفتی به دے۔ نو اعتراض غلط دے۔

# دکوږملا دفقے په ټولو

## ابوابو تبصره

(۱) کوږ ملا وائی " د فرضی مسائلو نه په حدیث کښ منع راغلی ده، لکه حدیث کښ راځی، حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی۔

" أصبح أهل الرأی أعداء السنن أعیتهم الاحادیث أن یعوها وتفلتت منهم أن یروو ها فاشتقوا

الرأی او جامع بيان العلم ۲/ ۱٦٤ - ص ۱۱۸

په دی اعتراض کښ دوه خبری دی، اوله دا چه مسئله لا پیښه شوی نه وی، اوله مخکښ نه ورله تیاری اوشی، کونړ ملا په دی اعتراض کوی خوحال داد ے، چه دا اعتراض خبره نه ده، دکمال خبره ده، چه دسوال د راتلو نه مخکښ ورله جواب تیار پروت وی ـ صاحب الکشاف علامه زمخشریؒ د

"سیقول السفهاء من الناس ما ولّهم عن قبلتهم التی کانوا علیها"

په ذیل کښ لیکی "فإن قلت أیّ فائدة فی الاخبار بقولهم قبل وقوعه؟ قلت أن المفاجأة المکروه أشدّ والعلم به قبل وقوعه أبعد من الاضطراب إذا وقع لما یتقدمه من توطین النفس، وأن الجواب العتید قبل الحاجة إلیه اقطع للخصم وأردّ لشغبه، وقبل الرمی یرأش السهم او تفسیر کشاف (۱-۳۱۷)

کونړ ملا غشے دویشتو نه مخکښ تیا رولے شی، ټوپک دچلولو نه مخکښ ډکولے شی اوس چه مسئله ډِ په سر راشی، هلته سائل تا دی کوی ـ او دلته نه اجتهاد شروع کړے، نو موقع به درنه تیره شوی وی، نو ځکه وایم چه دمخکښ نه تیارے دقرآن کریم د دے انداز نه ثابت

دے، او ددی د فایدے نه انکار د کوم ملا غونډے یو بهیمة الأنعام خو کولے شی، معمولی عقل والا ترے هم انکار نشی کولے.

(۲) بله خبره دا ده، چه په رأی او اجتهاد عمل کول جائز دی او کنه؟ نو په دی باره کښ هو بز مخکښ هم د حضرت معاذ رضی الله عنه حدیث دے.

"أن رسول الله صلی الله علیه وسلم لما أراد أن یبعث معاذا إلی الیمن قال کیف تقضی إذا عرض لك قضاء قال أقضی بکتاب الله قال فإن لم تجد فی کتاب الله قال فبسنة رسول الله صلی الله علیه وسلم قال فان لم تجد فی سنة رسول الله صلی الله علیه وسلم ولا فی کتاب الله قال أجتهد برأیی ولا آلو فضرب رسول الله صلی الله علیه وسلم صدره، فقال الحمد لله الذی وفق رسول رسول الله صلی الله علیه وسلم لما یرضی رسول الله اه ابوداؤد باب اجتهاد الرأی فی القضاء (۲/۱۴۹)

دا حدیث اګرچه ضعیف ګڼړلے شو یدے خو ددی شواهد شته. په سنن کبری للبیهقی کښ.

(۱) عن میمون بن مهران قال کان ابوبکر رضی الله عنه

إذا اورد عليه خصم نظر فى كتاب الله فان وجد
ما يقضى به قضى به بينهم فان لم يجد فى كتاب
الله نظر هل كانت من النبى صلى الله عليه وسلم سنة
فان علمها قضى بها وإن لم يعلم خرج فسأل المسلمين
فقال أتانى كذا وكذا .......... وإن اعياه ذلك دعا
رؤس المسلمين وعلماء هم فاستشارهم فإذا
اجتمع رأيهم على الأمر قضى به قال جعفر وحدثنى
ميمون ان عمر بن الخطاب كان يفعل ذلك ........
دعا رؤس المسلمين و علماء هم فاذا اجتمعوا على
الأمر قضى بينهم"

(٢) عن شريح أن عمر بن الخطاب كتب إليه ......
فان جاءك ماليس فى كتاب الله ولم يكن فيه
من سنة من رسول الله صلى الله عليه وسلم ولم
يتكلم فيه أحد قبلك فاختر أى الأمرين شئت إن
شئت أن تجتهد برأيك ثم تقدم الخ

(٣) عن حريث بن ظهير قال قال عبد الله بن مسعود
رضى الله عنه ........ فان أتاه أمر ليس فى
كتاب الله عزوجل و لم يقض به رسول الله
صلى الله عليه وسلم فليقض ما قضى به الصالحون

فان أتاه امر ليس فى كتاب الله ولم يقض به رسول الله صلى الله عليه وسلم ولم يقض به الصالحون فليجتهد رأيه الخ

(۴) قال زيد (بن ثابت) اقض بكتاب الله عزوجل فان لم يكن فى كتاب الله ففى سنة النبى صلى الله عليه وسلم فان لم يكن فى سنة النبي صلى الله عليه وسلم فادع أهل الرأى ثم اجتهد الخ

(۵) عن عبيد الله بن ابي يزيد قال سمعت عبد الله بن عباس إذا سئل عن شئ هو فى كتاب الله قال به وإذا لم يكن فى كتاب الله وقاله رسول الله صلى الله عليه وسلم قال به وإن لم يكن فى كتاب الله ولم يقله رسول الله صلى الله عليه وسلم وقاله ابوبكر وعمر رضى الله عنهما قال به وإلا اجتهد رأيه اه سنن كبرى للبيهقى كتاب ادب القاضى ص ۱۱۴-۱۱۵ ج ۱۰ .

گوره په دې آثارو کښې د حضرت ابوبكر، حضرت عمر، حضرت عبد الله بن مسعود، حضرت زيد بن ثابت او عبد الله بن عباس رضى الله عنهم أجمعين نه په رأى باندې فيصله ثابته ده. نو كوم ملا تا چه د حضرت عمر رضى الله عنه كوم اثر نقل كړيدې، د هغې

مطلب ددی آثارو په رڼا کښې دادے، چه که په کتاب الله
او سنت نبوی کښې دلیل موجود وی، او بیا هم په رائی عمل
کوی، او کتاب الله او سنت نبوی پریږدی. نو داسے خلق
دوعده اثر لاندی راځی. او که داسې نه وی. لکه د امام ابو حنیفه
نه تصریح ده. چه اول کتاب الله اخلم بیا حدیث نبوی،
بیا د صحابه کرامو اقوال، او کښې بیا اجتهاد کووُم، نو
دا دوعده اثر لاندی چرے هم نه راځی، لکه د حضرات صحابه
کرامو آثار مو درته وړاندے کړل.

## د تقلید اثبات:-

د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما ددی اثر نه
تقلید هم ثابتیږی، ځکه چه هغه وائی چه که په کتاب الله
یا سنت نبوی کښې نه وی، نو بیا د حضرت ابو بکر او حضرت
عمر رضی الله عنهما قول اخلم، او ددوی قول ظاهره خبره ده
چه په رائی او اجتهاد به مبنی وی، ځکه چه په کتاب الله
او سنت نبوی کښې نه وی، نو اجتهاد به وی. عبد الله
بن عباس رضی الله عنهما د دومره علم سره بیا هم تقلید
کوی، او س راشه کونړ ملا او وینه. هغه وائی چیندخه
دلو تے سرته اوخته وی ما کشمیر اولید و، یو دوه

کوشے بہ ئے وئیلی وی، وائی څہ تقلید نہ کووم۔ او حال دا دے چہ عاجز ټول ژوند د ابن قیم او شوکانی د لمنے لاندی تیر دی۔ ؎ بدیں عقل و دانش بباید گریست

## (۲) د کونړ ملا رجماً بالغیب

وائی۔ د غہ مسئلی نہ واقع شویدی، او نہ بہ واقع شی تر قیامتہ پوری الخ ص۱۱۸

جواب۷:۔ دا د علم غیب دعوی دہ۔ او علم غیب صرف اللہ تعالیٰ لرہ ثابت دے۔ کونړ ملا د علم غیب دعوی مہ کوہ، مشرک بہ شے۔

(۳) وائی د غہ مسئلے اکثر پہ عربیت بنا دی لکہ لفظ کلما وان او حقیقت او مجاز او دین د ټول امت د پارہ نہ صرف د عربو د پارہ ص۱۱۹

کونړ ملا د جہالت علمبردار دے۔ قرآن کریم او احادیث نبویہ پہ عربئ ژبہ کښی دی۔ او سیوا د ملحدانو نہ چا ہم دا اعتراض نہ دے کړے، چہ دین صرف د عربو د پارہ نہ دے، او دا اعتراض غلط ہم دے، ځکہ چہ ترجمہ دیوشی ہم ھغہ شے ګڼړلے شی۔ بلہ دا چہ دا اصطلاحات پہ ھرہ ژبہ کښی شتہ۔ کہ کونړ ملا د خپل جہالت پہ وجہ

ترے بے خبرہ دے، نو څه اوشو؟ ﷺ

گر نہ بیند بروز شپرہ چشم چشمۂ آفتاب راچہ گناہ

(۴) کوڼر ملا مخکښې ليکي۔ د نکاح نه مخکښې طلاق نه واقع کيږي نه تنجيزًا او نه تعليقًا، حديث شريف کښې راځي" لا طلاق قبل النکاح"

جواب:۔ بد کوڼر ملا عقل د نصيب شه، د طلاق د پاره ملک نکاح ضروري دے۔ او د تعليق په صورت کښې کله چه شرط واقع شي نو مشروط موندلے کيږي۔ او د شرط د موجوديدو په وخت کښې ملک نکاح موجود وي، نو مشروط يعنی طلاق به هم موجود شي۔ د حديث نه ستا د تعليق په صورت باندې انکار هسے بوس باد ول دي۔ حديث شريف پرے دلالت نه کوي۔

(۵) په شريعت کښې طلاق بائن نشته الخ ص ۱۱۹

جواب:۔ دا د کوڼر ملا بل حماقت دے۔ گوره د عبد الله بن عباس رضي الله عنهما په حديث کښې دي۔

"عن مجاهد قال کنت عند ابن عباس فجاءه رجل فقال إنه طلق امرأته ثلاثا قال فسکت حتى ظننت أنه رادها إليه ثم قال ينطلق أحدکم فيرکب الحموقة ثم يقول يا بن عباس يا بن عباس

وان الله قال ومن يتق الله يجعل له مخرجًا وانك لم تتق الله فلا اجد لك مخرجًا عصيت ربك وبانت منك امرأتك الخ سنن ابي داؤد (۱-۲۹۹)

کونړ ملا عقل د نصيب شه، عبد الله بن عباس رضي الله عنهما د درې طلاقو نه روستو وائي "بانت منك امرأتك" د دې جملې ستا په نيز څه معنې ده، حافظ ابن حجرؒ وائي چه دا حديث صحيح دے. نو د دينه د غير مقلدينو دا دعوې هم باطله شوه، چه کنې د درے طلاقو نه يو طلاق واقع کيږي - لکه روستو به تفصيل راشي، إنشاء الله

دا حديث د غير مقلدينو او د کونړ ملا په مخ څپيړه ده، دے وائي طلاق بائن نشته، نو په دې حديث کښې د "بانت منك" الفاظ د طلاق بائن په وجود دلالت کوي کونړ ملا د دې مسئلې د پاره د اغاثة اللهفان په ځائے د حديثو کتاب ابوداؤد شريف اوکوره، د تقليد رد هم کوے، او د ابن قيم تقليد هم کوے، وائي "کارغه غول خوري او مېښو که ځنډي" عقل دِ نصيب شه، دا مه کوه. کارغه مه جوړېږه، انسان لره کارغه جوړېدل د شرم کار دے.

(۶) کونړ ملا ليکي، د درے طلاقه په يوځل ورکول دا

مادواودی، او راجح قول پس داختلاف نه وادی چه یو
طلاق رجعی واقع کیږی، دلیل په دی خبره حدیث دمسلم
او دا رنګه حدیث دابورکانه په ابوداوُد کښی دی ص۱۱۹
جواب:- کونړ ملا عقل د نصیب شه، کله چه دا درے
واړه طلاقه نا رواشو نو دا یو طلاق تر ے څنګه رواشو،
ولے له ځانه شریعت جوړوئ؟ او د صحیح حدیثو او دصحابہ
کرامو داجماع نه خلاف کوئ، او خلق په زنا کښی اچوئ
او په "ہم تو ڈوبیں ہیں صنم تم کو بھی لے ڈوبیں گے" باندی عمل کوئ.
کونړ ملا راشه لږ دحافظ ابن حجر رحمه الله تعالیٰ فیصله
کښی خبر ے ته غوږ اونیسه.
"وفی الجملة فالذی وقع فی هذه المسئلة نظیر ما
وقع فی مسئلة المتعة سواء اعنی قول جابر أنها کانت تفعل
فی عهد النبی صلی الله علیه وسلم وأبی بکر وصدرًا من خلافة
عمر قال ثم نهانا عمر فانتهینا فالراجح فی الموضعین تحریم
المتعة وایقاع الثلاث للإجماع الذی انعقد
فی عهد عمر علی ذلک، ولا یحفظ أن أحدًا فی عهد
عمر خالفه فی واحدة منهما (سوی الروافض الکبار
والصغار فی زماننا، اعنی الشیعة واللامذهبیین ۱۲
راقم الحروف غفرله) وقد دل اجماعهم علی وجود

ناسخ وإن كان خفي من بعضهم قبل ذلك حتى ظهر بجميعهم في عهد عمر، فالمخالف بعد هذا الإجماع منابذ له والجمهور على عدم اعتبار من احدث الاختلاف بعد الاتفاق، والله اعلم اه فتح الباري

(۹ - ۳۶۵) باب من اجاز الطلاق الثلاث.

او کوم ملا تکیا دے، د دې اجماع خلاف کوي. او دسواد اعظم نه اوځي. او "من شذ شذ في النار" نه غاړه بږدي. "فما أصبرهم على النار" کوم ملا دا دِ شو په مسلم شریف کښې د عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما د حدیث جواب، اګر چه دغه حدیث مضطرب هم دے. خو بیا هم مونږه د حافظ ابن حجر رحمه الله فیصله نقل کړه، چه په دې د صحابه کرامو اجماع ده او د ائمه اربعه پرے هم اجماع ده، او د عبد الله ابن عباس رضي الله عنه دا حدیث او د حضرت جابر رضي الله عنه حدیث د متعے په باره کښې تقریبًا یو شان الفاظ دي. خوځه وایم لکه څنګه چه غیر مقلدین په نورو بعضو خبرو کښې د شیعه ګانو موافق دي، بلکه د دوئ یو مشر مولوی وحید الزمان خو وائي "ما شیعګان علي هستیم"، (دریں چه شک ۱۲ راقم الحروف عفي عنه) څه بعید نه

دی، چه د متعې په مسئله کښې هم د شیعه گانو هم پیاله او هم مشرب دی " الجنس یمیل الی جنسه " " کند هم جنس با هم جنس پرواز " او که داسې شي، نو بیا خو دوی ټول د متعې پیداوار دے۔ " چشم بد دور " د عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما نه په سنن ابی داؤد کښې په صحیح سند سره د مسلم د دې حدیث نه خلاف هم ثابت دی، بلکه مخکښې دغه حدیث تیر شو، حافظ ابن حجر رحمه الله هم دغې ته اشاره کوی او وائی"

" وأخرجه ابو داؤد بسند صحیح من طریق مجاهد قال کنت عند ابن عباس، الحدیث، فتح الباری (۹/۳۶۲)

باقی پاتے شو د رکانه رضی الله عنه حدیث، نو حافظ لیکی۔

" أن أبا داؤد رجح أن رکانة إنما طلق امرأته البتة کما اخرجه هو من طریق آل رکانة وهو تعلیل قوی لجواز أن یکون بعض رواته حمل البتة علی الثلاث فقال طلقها ثلاثا الخ (۹/۳۶۳)

د دینه دا خبره لکه د نمر ښکاره ده چه د درې طلاقو نه روستو ښځه بغیر د حلالے نه نه حلالیږی۔ د الله پاك فرمان دے " فان طلقها فلا تحل له من بعد حتی تنکح

زوجاً غیره، او په صحیح بخاري کښې د حضرت عائشې رضي الله عنها حدیث دے۔

"عن عائشة أن رجلا طلق امرأته ثلاثا فتزوجت فطلق فسئل النبي صلى الله عليه وسلم أتحل للأول قال لا حتى يذوق عسيلتها كما ذاق الأول اهـ

فتح الباري (۹-۳۶۲)

دا بحث طویل الذیل دے، خو چه څوک د حق طالب وي. او د صحیح حدیث په مقابله کښې ضعیف اقوال پریږدي د هغوی دپاره دومره هم کافي دي۔ وما علینا إلا البلاغ.

کوثر ملا عقل د نصیب شه، شاذ اقوال پریږده، راشه صحیح احادیث واخله۔ کښې بیا به پخپله وعده دروغژن وے، او دروغژن یې.

(۷) د کوثر ملا اووم اعتراض :-

د امسائل اکثر په حقیقت او مجاز باندې بناء دي، او حقیقت او مجاز په باره کښې نه نبي علیه السلام څه ویلي، نه صحابه کرامو او نه تابعینو الخ ص۱۲۰

جواب:- ۱. کوثر ملا ستا د دې اعتراض جواب صرف دا دے، چه قرآن کریم کښې دي" من کان في هذه أعمى فهو في الآخرة أعمى وأضل سبيلا" څما په خیال ئے بهترین

مصداق نه ے۔ او لوستونکو ړو نړو ته به ستا د اعتراض
جواب او حقیقت معلوم شي۔

کونړ ملا د اصول حدیث په باره کښې به څه وایئ؟ حال
داچه په یو حدیث یا په یو اثر کښې هم چړ نه یو حدیث ته
صحیح یا ضعیف یا معضل یا منکر یا شاذ نه دی وئیلې شوې،
دا ټول محدثینو له ځانه جوړ کړي اصطلاحات دي، او
ټول خلق ئے مني، غیر مقلدین ئے هم په پټو سترګو مني۔ خو
ستا غوندې یو بهیمة الانعام هم دا نه دي وئیلي، چه دا
د پیغمبر علیه السلام یا صحابي یا تابعي نه ثابت نه دي
نو ځکه ئے نه منم۔ ع ایں کار از تو آید و مرداں چنیں کنند

چه په منلو شي، نو د شوکاني چه زیدي شیعه دے خبره
په پټو سترګو مني، او چه د نه منلو شي، نو د ټول امت
نه مني، بلکه د صحابه کرامو هم نه مني، ځکه چه د غیر مقلدینو
په نیز د صحابي قول حجت نه دے۔

(۱۱۰) کونړ ملا لیکي، قاضي خان ۴/۴۰۷ کښې دي، چه
یو سړي د خپل لور یا خور یا مور سره نکاح وکړه، او
جماع ئې هم ورسره وکړله نو ده باندي حد نشته، او
پیغمبر علیه السلام د داسې سړي د سر پریکولو حکم وکړو ص۱۲۱

جواب: کونړ ملا عقل دِ نصیب شه۔ د زنا حکم

الله تعالیٰ بیان کړېدے.

"الزانية والزاني فاجلدوا كل واحد منهما الخ"

قتل د زنا حکم نه دے. او په دې حدیث کښې چه د قتل حکم دے، نو وجه ئې داوه، چه دې سړي داسې نکاح جائز ګڼړلو، او حرام حلال ګڼړل کفر او ارتداد دے، او د مرتد دپاره قتل دے، هم دا وجه ده چه امام صاحبؒ وائي "يوجع عقوبة" یعنې سزا به ورکولے شي، بله دا چه مذهب د مفتي به قول نوم دے. او د احنافو مفتي به قول دا دے، چه حد پرې شته. نو بیا ستا د اعتراض مقصد صرف د "الذي يوسوس في صدور الناس" مشن پوره کول دي، نو رښته نه دي. فتاوی شامي کښې دي،

"وقالا إن علم الحرمة حد وعليه الفتوى خلاصة الخ وفي القهستاني عن المضمرات على قولهما الفتوى اه"

شامي (۴-۲۳۲)

کونړ ملا چرته دهوکه نشي، او داسے او نکړے. کښې حد به دربانډي لګي، او بېړۍ به د ډېپه شي.

(۱۱۱) کونړ ملا لیکي، قاضي خان ۴/۴۰۷ کښې دي چه یو سړي یوه زنانه په کرایه راولي، او زنا ورسره اوکړي نو حد پرې نشته ص ۱۲۱ -

جواب :- کونړ ملا عقل د نصیب شه، دلته هم مفتی به قول دحد دے، نو ته غیر مفتی به اقوال ولے راخلے ؟

درمختار کښې دی۔

" والحق وجوب الحد کالمستأجرة للخدمة ، فتح

درمختار علی هامش رد المحتار (۲۴۲/۴)

اوس که څوك اووائی چه بیا دا غیر مفتی به اقوال ولے په کتابونو کښې ذکر کولے شی ؟ نو جواب ئے دا دے، چه ګوره دحدیث په کتابونو کښې ضعیف اوشاذ اومنکر بلکه موضوع احادیث هم موجود وی - خو خلق تری صحیح حدیث راخلی، او ضعیف پریږدی - ارشاد نبوی دے، " دع ما یریبك إلی مالا یریبك " یا " خذ ما صفا ودع ما کدر " خو دا سی هغه څوك کوی، چه په زړه کښې ئے ایمان اوخوف خدا وی - دکونړ ملا پشان نه وی، أعوذ بالله من هفوات کونړ ملا وتلبیساته -

(۱۱۲) کونړ ملا لیکی، قاضی خان ۶/۲۰۷ کښې دی چه یو حربي کافر دمسلمانانو ملک ته راشی، او دمسلمانی زنانه سره زنا وکړی حد پرے نشته الخ ص۱۲۱

جواب :- کونړ ملا عقل د نصیب شه ، د رجم دپاره احصان ضروری دے، او داحصان دپاره اسلام شرط

دے۔

عن ابن عمر قال قال رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم لا یحصن الشرک باللہ شیئًا اھ اعلاء السنن (۱۱ - ۵۱۴)

دارقطنی رحمہ اللہ دیتہ موقوف وئیلی، خوخہ پاک نشتہ، ځکہ چہ ځمونږ پہ نیز د مرسل او موقوف دواړہ حجت دی۔

نو او س حربي کہ د مسلمانے ښځے سرہ زنا وکړہ، نو پہ حربي رجم نشتہ، ځکہ چہ محصن نہ دے۔ البتہ جلد پرے شتہ پہ رد المحتار کښې دی۔

"حتی لو اسلم او اعتق بعد الزنا ثم صار محصنا لا یرجم بل یجلد اھ (۳-۱۷)

نو کونړ ملا کہ ستا دا خیال وی، چہ کھلاؤ چھټی دہ حربي تہ، نو دا ستا جھل دے۔ حد پرے شتہ خو رجم نہ بلکہ جلد۔ یعني پہ درو بہ ئے وهي، ارشاد خداوندی دے۔

" الزانیۃ والزانی فاجلدوا کل واحد منھما مائۃ جلدۃ"

خو د کونړ ملا مقصد چونکہ د" الذی یوسوس فی صدور الناس" مشن پورہ کول دی، او خلق د فقھے نہ بدگمانہ کول دی۔ د پارہ د دی چہ مشر غیر مقلد ابلیس ترے خوشحالہ شی ځکہ مطلقا وائی۔ چہ پہ حربي حد نشتہ، او حال دا دے چہ دا دروغ وی۔ حد جلد پرے شتہ، کونړ ملا ستا پہ دعوی

او دیل کښې مطابقت نشته، دعوی دا ده چه که حربي د مسلمانې ښځې سره زنا وکړه. او په دیل کښې د یهودي د یهود تورېت سره په زنا رجم ثابت دے، ولے کوم ملا یهودیان ستا په نیزد د مسلمانانو پشان دي. بله دا چه په دغه یهودیانو د رجم حکم د تورات مطابق وُو، فتدبر

(۱۱۳) کوم ملا لیکي" قاضي خان ۴/۴۰۷ کښې دي، چه یو سړی د ماشومې جینۍ سره زنا وکړه، نو حد پرې نشته. ملخصا

جوابُ :. دا سے جینۍ چه د جماع قابله نه وي، نو د زنا تعریف پرې نه صادقیږي. لهذا وجے نه پرے حد نشته البته تعزیر پرے شته، او دا زمونږ روایت دا براهیم نخعي رحمه الله نه هم دے.

"عن ابراهیم فی رجل افتض قال علیه عقرها اه مصنف ابن ابی شیبة (۱۰/ ۱۳۴)

او که جینۍ لږه لویه وي، د جماع قابله وي خو بالغه نه وي نو په جینۍ د نابالغتوب په وجه حد نشته، او په زاني باندې حد شته. په فتاوی قاضي خان کښې دي.

"والبالغ الصحیح إذا زنی بصبیة أو مجنونة أو نائمة علیه الحد ولا حد علیها اه قاضي خان علی هامش العالمکیریه (۳-۴۶۸)

(۱۱۴) کولی ملایکی" قاضی خان کښی دی چه شراب ساتل جائز دی د سرکے په نیت، دا رنګه شرابو نه سرکه جوړول هم جائز دی، او په حدیث کښی تری منع راغلی ده مشکاة ص۱۲۲

جواب :- په ابتداء کښی د دغه لوښو د استعمال نه هم منع شوی وه، چه په کوم کښی به شراب جوړولے شو، لکه حدیث کښی راځی "حنتم، مزفت، نقیر او الدباء" دپاره دی چه د خلقو د زړونو نه د شرابو مینه اوځی، او کله چه مقصد حاصل شو، نو بیا د دغه لوښو په استعمالولو پابندی ختم کړے شوه، دغه شان د سپو ساتلو مسئله ده، او قبرونو له د تلو مسئله هم ده، نو د شرابو نه د سرکے د جوړولو ممانعت هم ابتدائی حکم دے، او مقصد ئے په ظاهره هم دغه دے، کوم چه په لوښو د پابندئ لګولو وو، ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کښی د دغه حدیث په شرحه کښی لیکی۔

"إن القوم كانت نفوسهم الفت بالخمر وكل مالوف تميل اليه النفس فخشى النبي صلى الله عليه وسلم من دواخل الشيطان فنهاهم عن اقترانهم نهى تنزيه كيلا يتخذوا التخليل وسيلة اليها واما

بعد طول عهد التحريم فلا يخشى هذه الدخائل
ويؤيده خبر" نعم الادام الخل رواه مسلم، وخبر
خلكم خل خمركم رواه البيهقي في المعرفة عن جابر
مرفوعا وهو محمول على بيان الحكم لأنه اللائق
بمنصب الشارع لا بيان اللغة اه مرقات (۱۹۲/۷)

(۱۱۵) کونړ ملا لیکی" فقه کښې راځی، لکه قاضی خان
۳۸۰/۴، چه څوك سرود ونه وهی، او ته ورله پیسی ورکوې
خیر دی جائز ده۔

جواب: قاضی خان کښې دی،
"رجل استأجر رجلا ليغني به لا يجوز ذلك ولا أجر
فيه وكذا النائحة والمغنية اه قاضی طبع نول کشور
(۳-۱۸) وقاضی خان علی هامش الفتاوی الهندية
(۲-۳۲۳)

کونړ ملا قاضی خان خوورته ناجائز وائی، تاله پکار وو
چه عربی عبارت د پیش کړے وے، خوکه داسی دکړے وے
بیا به ستا دروغ په ډاګه شوی وے، او د تلبیس پرده
به دے تار تار شوی وے۔ خو خیر اوس هم د قاضی
په صحیح حواله سره ستا ایمان خلقو ته ښکاره شو، چه
ته څومره دروغژن یې، واخله په دی مسئله د فقه حنفی

نور سے حوالے درتہ ورانداے کووم ، چہ خلقو تہ د دروغ
او بے ایمانی المنشرح شی ، فتاوی شامی کبنی دی .

" ولا تصح الاجارة لعسب التیس وهو نزوه علی
الإناث ولا لأجل المعاصی مثل الغناء والنوح والملاهی
" (۶/۵۵)

فتاوی عالمگیری کبنی دی ۔

" ولا تجوز الإجارة علی شئ من الغناء والنوح و
المزامیر وغیره ولا أجر فی ذلك اه عالمگیری (۴/۴۹۹)

دا تول ورته په یوساه ناجائز وائی ، نوکونړ ملا دا تا
لکومه نه راوړه چه فقه حنفی ورته جائز وائی ؟ ځما
په خیال په " لعنة الله علی الکٰذبین " ایمان نه لرے ،
او صرف په " وإذا حدث کذب " باندی عمل کوے .

(۱۱۶) کونړ ملا لیکی " خلاصة الفتاوی کبنی دی " چه څوك
قرآن دشفا په نیت په متیازو اولیکی یا په وینه نو بالك
نشته صـ۱۲۲

جواب :. کونړ ملا مونږ مخکښی ذکر کړی ، چه مذهب
حنفی د مفتی به اقوالو نوم دے ، کومه مسئله چه د دلائلو
اربعهؤ نه ثابته نه وی ، د هغی هیڅ اعتبار نشته ، بل
مونږ د امام ابوحنیفه رح د مذهب مقلد یو د هرهرچا نه ، نوکه

ځوندئ چه په احادیثو کښې ضعیف بلکه موضوع روایات شته، لکه بخاری جلد ثانی کتاب التفسیر کښې" باب قول الله تعالیٰ نساءکم حرث لکم فأتوا حرثکم أنیٰ شئتم،، کښې امام بخاریؒ د ابن عمر رضی الله عنهما روایت ذکر کړے چه د ښځې سره وطی فی الدبر جائز دی، حالانکه داسې کول حرام دی، خو دد ی غلطې مسئلې په وجه سره ځوك ټوله بخاریؒ نه پرېږدی، دغه شان که په فقه حنفی کښې یو غیر مفتی به مسئله راشی، نو دلته به هم په "خذما صفا ودع ما کدر" باندی عمل کیږی۔

(۱۱۷) کونړ ملا وائی، خلاصة الفتاوی ۴/۳۸۸ کښې دی چه چا د سورة فلق او سورة الناس نه انکار اوکړو، نو نه کافر کیږی، ځکه چه ابن مسعود ترے انکار کړیدی ص۱۲۲۔

جوابؒ:- کونړ ملا - عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ترے انکار کړے او کنه؟ د تفصیل د پاره د بخاری جلد ثانی ص۷۴۲ باندی د احدیث او حاشیه اوګوره- حافظ ابن حجرؒ وائی چه د اانکار روایات صحیح دی- البته مخکښې ئے ددې خبرې تاویل کړیدے۔ هاں ځمونږه مذهب دا دے، چه دا دواړه سورتونه د قرآن پاك حصه ده، او انکار ترے جائز نه دے- د خلاصة الفتاوی قول مفتی به قول نه دے۔

او نه د صاحب المذهب قول دے، نو الزام غلط دے،
بلکه خبره داده چه تقلید په فروعي مسئلو کښې کیږي، چه
اصولو او عقائدو کښې نه۔ او د قرآن کریم مسئله د عقیدے
سره تعلق لري۔

(۱۱۸) فقه کښې راځي چه وریښمنو کینا ستل او څملاستل
حلال دي قاضي خان ۳۰/۴ او حدیث د بخاري کښې ترې منع
راغلې ده، مشکاة ۲/ ۳۷۴ - ص۱۲۲

جواب:- کوم ملا عقل د نصیب شه، په دی حدیث
کښې، نهې د تحریم دپاره ده او که د تنزیه دپاره؟ د امام صاحب
په نیزد دلته نهې د تنزیه دپاره ده۔ ځکه چه د کینا ستلو
او اغوستلو دواړو حکم یو نه دے۔ فافهم و تدبر

(۱۱۹) کوم ملا لیکي، فقه کښې راځي لکه فتاوی هندیه،
چه عقیقه مکروه ده، حالانکه د حدیثو نه ثابته ده ص۱۲۳۔

جواب:- د کراهت قول غلط دے۔ صحیح قول دادے
چه عقیقه کول په نیزد مسنون او مستحب ده۔

(۱) والحق أن مذهبنا استحبابها لسابع بعد يوم
الولادة، العرف الشذي شرح ترمذي على هامش
الترمذي (۱/ ۲۷۷)

(۲) وإنما أخذ اصحابنا الحنفية في ذلك بقول الجمهور

وقالوا باستحباب العقيقة لما قال ابن المنذر وغيره أن الدليل عليه الاخبار الثابتة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم والتابعين اھ اعلاء السنن (۱۷/۱۱۳)

(۳) عقيقة أى ذبيحة مسنونة وهى شاة تذبح عن المولود اليوم السابع من ولادته اھ المرقات لعلى القارى (۸/۱۵۴)

(۴) والعمل على هذا عند اهل العلم يستحبون أن يذبح عن الغلام العقيقة يوم السابع اھ عمدة القارى شرح البخارى للعينىؒ (۱۱-۸۸)

دفتاوى هند يه قول دحديث نه خلاف دے۔ اوغلط ئے كونړملا ياخوله دى اقوالو نه بے خبره دے، اوجاهل دے. يائے مقصد تلبيس دے۔ وهذا هوالراجح.

(۱۲۰) كونړملا ليكى" مرقات ۷/۹۱ كبنى دى، چه يو سړى دچا دكور دروازه كبنى بى اجازته اوګوري، اوكوروالا ترى سترګه ويستله نو قصاص پرى لازم دى۔ او ديت به هم وركوى، اونبى عليه السلام فرمائى ولا دية ولا قصاص، مسند احمد ومسلم - ص۱۲۳

جوابُ :- كونړملا عقل دنصيب شه، حديث په زجر وتوبيخ باندى محمول دے. نكه ملا على قارىؒ مرقاة (۷/۹۲) كبنيكى، ددى مثال شننه، ګوره بخارى باب ليرد المصلى من

مرموتين بين يديه ...... وقال إن أبى إلا أن يقاتله
قاتله (۱-۴۲) لا ندى حديث نقل کوی.....
فان أبى فليقاتله فانما هو شيطان (۱-۴۳)
کوماتی اوعینی تولو ددی دامعنی کریده،
"يضربه ضربًا شديدًا، إنما هو كشيطان"
اوگوره ددی حدیث لا ندی حاشیه، نو دلته د قتال حکم دے
خو ددی هیڅوک قائل نه دی، بلکه زجر بلیغ تری مراد دے
ولے کونړ ملا نا داسے څومره کسان قتل کړیدی، چه ستا
مخکښې او ړیدل، کونړ ملا که پخپله نه پوهیږے او واقعی نه
پوهیږے، نو "إنما شفاء العيّ السؤال" خانه دِ خرابه
شه له چانه تپوس کوه، هسے خلق ولے گمراه کوے؟
(۱۲۱) کونړ ملا لیکی "فقه کښې راغلی، چه یوسړی هبه
خپل ځوی ته ورکړه. (عقل دِ نصیب نشه، شے هبه کیږی، هبه
نه ورکولے کیږی، افسوس چه ترجمه دِ هم غلطه ده، ددا سی
قسم غلطو نه کتاب ډک دے، خو په هره غلطئ گرفت او
تبصره خبره اوږدوی ۱۲ راقم الحروف غفرله) نو دا واپس
نشی اغستے، او که بل چاته ورکړی، نو واپس اغستے شی،
او حدیث کښې راغلی" لا يحل للرجل أن يعطي العطية ثم
يرجع فيها إلا الوالد فيما يعطي ولده اھ مشكاة ۱/۲۶۱ ص ۱۲۳

جواب ۲:- کوم ملا چه د مشکاة دکوے صفحے نه حدیث نقل کړے۔ هم په دغه صفحه په دی حدیث باندی دویم نمبر حاشیه کښې دی۔

"هو مذهب الثوری واحتجوا بقوله علیه السلام إذا کانت الهبة لذی رحم محرم لم یرجع فیها وبقول عمر من وهب هبة لذی رحم جازت ومن وهب لغیر ذی رحم فهو أحق بها ما لم یثب منها، ومعنی هذا الحدیث أن قوله لا یحل أراد به التحذیر عن الرجوع لا نفی الجواز کما فی قولك لا یحل للواجد رد السائل الخ

(۱- ۲۶۱)

په دی حدیث باندی طیبی شرح مشکاة (۱۸۲/۶) کوره - ملا علی قاری رحمه الله لیکی - چه لا یحل دلا ینبغی په معنی دے. لکه حدیث " لا یحل لرجل إن کان یؤمن بالله والیوم الآخر أن یبیت شبعان وجاره طاویا " مرقاة شرح مشکاة (۶- ۱۵۵)

وړاندی نور دلائل راځی

(۱) عن أبی هریرة قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم الرجل احق بهبته ما لم یثب منها اه ابن ماجه ص۱۷۲ ودارقطنی۔

(۲) عن ابن عمر عن النبی صلی الله علیه وسلم أنه قال من

وهب هبة فهو أحق بها مالم يثب منها اهـ مستدرك
(۲/ ۵۲) دارقطنی (۳/ ۴۳)

نور هم احادیث شته، خوخبره او بزدیږی، په دی اکتفاء کوم،
او س که ذی رحم محرم ته هبه شوی وی، نو په هغی کښی د رجوع
نه کولو دلائل۔

(۱) عن سمرة قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم
إذا كانت الهبة لذي رحم محرم لم يرجع فيها اهـ
مستدرک (۲-۵۲) دارقطنی (۳-۴۴)

(۲) ان عمر بن الخطاب قال من وهب هبة لصلة رحم
او على وجه صدقة فإنه لا يرجع فيها اهـ طحاوی (۲-۲۶۷)

**(۱۲۲)** کوڼر ملا لیکی، هدایه ۱/ ۳۰۰ کښی راځی چه مدینه
حرم نه دے، او حال داچه احادیث متواتر راغلی دی په دی
باره کښی، مشکاة (۱/ ۲۳۸) صـ۱۲۳

جواب:۔ کوڼر ملا عقل د نصیب نشه، مدینه حرم
ضرور دے۔ خو داسے لکه د مکے مکرمے، نو دا له احادیثو
نه ثابت نه دی۔ د حرم مکی و نے غنے هر څه چه پریکړی نو ضمان
پرے راځی۔ او د مدینے منورے دا حکم نه دے۔ یعنی
ضمان پرے نشته، صرف د خائست والی په وجه غوښول
نه دی پکار۔

(۱) عن ابن عمر قال نهی رسول الله صلی الله عن آطام المدینة أن تهدم اھ طحاوی (۲ ـ ۲۴۳)

(۲) عن ابن عمر أن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لا تهدموا الآطام فانها زینة المدینة اھ طحاوی (۲ـ۲۴۳)

(۳) عن أنس قال کان لأبی طلحة ابن یدعی اباعمیر فکان له نغیر فکان رسول الله صلی الله علیه وسلم إذا دخل یا اباعمیر مافعل النغیر اھ طحاوی (۲ ـ۲۴۳)

حالانکه دحرم مکی ښکار ینول حرام دی۔ نو د مدینے منورے احترام لازم دے۔ لکه دحرم مکی، لیکن په حکم کښی یعنی په جزا وغیره کښی فرق دے۔

**(۱۲۳)** کوږ ملا لیکی: هدایه ۹۳/۱ کښی دی ـ چه دزنانه خلورمه حصه فرج او د امام ابویوسفؒ په نیزد نیم فرج ښکاره شی۔ نو مونځ کیږی۔ نو په دی څه دلیل دے؟ ص۱۲۳

جوابؔ :۔ دهدایے عبارت دادے۔

"فان صلت وربع ساقها مکشوف اوثلثها تعید الصلاة عند أبی حنیفة ومحمد وإن کان اقل من الربع لاتعید وقال ابویوسف لاتعید إذا کان اقل من النصف" (۱)

هـدایه ۹۳/۱

یعنی که په مانځه کښی د ښځے د پنډۍ خلورمه حصه یا دریمه

حصه سنکاره وه. نو د امام ابوحنیفه" او امام محمد" په نیزد به مو غږ بیا د سره کوی، او امام ابویوسف" وائی که د پنډی سنکاره حصه د نیمي نه کمه وه، نو مو غږ به نه راګرځوی.

## د کونړ ملا دوه غلطئ

کونړ ملا د لته دوه غلطئ کړیدی، یو ئے په ترجمه کښې غلطي کړیده، او بل ئے د ساق ترجمه په فرج سره کړیده، حالانکه ساق پنډی ته وائي فرج ته نه وائي.

**تپوس :-** کونړ ملا چرته د اسی خونه دی. چه د غلته فرج په پنډو کښې وی، او تاڅکه د پنډی په ځائے د فرج ترجمه کړیوی؟ بیّنوا توجروا.

باقی پاتی شوه دا خبره چه په ربع باندی څه دلیل دے؟ نو د حضرت مغیرة بن شعبه رضی الله عنه په حدیث کښې راځی "ومسح علی ناصیته" او ناصیه د سر څلورمه حصه ده. د ربع مسئله ئے له دی حدیث نه اغستی ده. فافهم وتدبر،

بله دا چه ستا سو په نیزد خو ورون هم عورت نه دے د حضرت انس رضی الله عنه د حدیث بخاری "باب ما یذکر فی الفخذ" بخاری (۵۳/۱) په وجه سره. او ورون د ړنګنانو نه واخله تو سپوغږ پوری حصے ته وئیلے کیږی. نو پکار

دی، چه که ستاسو د سړو یاد ښځو ورون تر سیوغزوری برېنډ وی، او د ښځې صرف لوېښته په سر وی، نو هم ئې مونځ کیدل پکار دی، ځکه کونړ ملا تاسو نر ښځې د سیلمنی نه په دی حدیث عمل نه کوئ۔ هسې چیغې وهئ چه ورون عورت نه دے، تاسو لوه پکار دی، چه نر ښځې صرف تبان یعنی جانګے اغوندئ او مونځ کوئ۔ ښځې د صرف لوپټه په سر وی، چه د بخاری په دی حدیث باندی مکمل عمل اوشی او مونږ او منو چه واقعی داخلق په حدیث عمل کوی، په ولاړے متیازے کوئی۔ او صرف جانګے ا غوندئ چه په یوه کپړه کښی د مونځ په حدیث عمل اوشی، کونړ ملا ولے دا سے کولے شے؟ کونړ ملا کید ے شی چه د ربع فرج یا نیم فرج دا مسئله ستاسو وی، ځکه چه ستاسو په نیزد ورون عورت نه دے۔

(۱۲۴) کونړ ملا بیکی فقه کښی راځی، چه په عطیه او هدیه کښی داولاد فرق کول جائز دی۔ او حدیث د مسلم ۲/۲۵ د نعمان بن بشیر نه نقل دی، چه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د دی کار نه منع کړیده الخ ص۱۲۳

جواب:۔ مونږه وایو چه په عطیه او هدیه کښی تسویه یعنی برابری کول مستحب دی، فرض یا واجب نه دی، که

چا اوکړه نو دیره مینه او کړی گناه پرے نشته، په دې خبره دا (غوره)
ده چه د صحابه کرامو عمل نه او کتے شی، ځکه چه دوی براه راست
د پیغمبر علیه السلام نه دین ایزده کړیدے

(۱) عن أبي بكر أنه وهب عائشة رضي الله تعالى عنها جاد
عشرين وسقا. أخرجه مالك اه اعلاء السنن (۱٦-۹۵)

(۲) أن عمر نحل ابنه عاصماً دون سائر ولده، ذكره الطحاوي
وغيره (فتح الباري (۵/۱۹۵) اعلاء السنن (۱٦-۹۴)

(۳) أن عبد الرحمن (بن عوف) فضل بني مكتوم بنحل قسمه
بين ولده اه اعلاء السنن (۱٦-۹۳)

نو که د نعمان بن بشیر رضی الله عنه په حدیث کښې تسویه
بین الاولاد واجب وے. نو شیخین رض په دې حُما اوستا نه
زیات پوهیدل. خود هغوئ عمل هم د تسویې خلاف دے
نو معلومه شوه چه تسویه مستحب ده، فرض یا واجبه نه ده.

**(۱۲۵)** کونړملا لیکی" مرقاة ٦/۲۳۰ کښې دی. چه یو
سړی دوه خویندے په نکاح اخستلی وې په جاهلیت کښې،
نو دویمه حرامه ده. او حدیث کښې راځی چه یو لری کړه کومه
چه ستا خوښه وی. مشکاة (۲-۲۷۴)

جواب: د کونړملا عقل د نصیب شه، داحرمت خو هم
د دویمې نه راغلے، ځکه چه جمع بین الأختین تو ے لازمیږی.

نو دوېمه نکاح د آيت "وأن تجمعوا بين الأختين" په وجه سره هډو دسره منعقد نه ده - حکم به دوېمه پرېږدي

د مشکاة دغه حديث ترمذي نقل کړے، او په دېکښې ابن لهيعه راوي دے او ابن لهيعه ضعيف دے. علامه ذهبيؒ په ميزان کښې ليکي.

(۱) عن يحي بن سعيد أنه كان لا يراه شيئًا (۲) عن ابن مهدى قال لا أحمل عن ابن لهيعة شيئًا (۳) قال ابن معين هو ضعيف قبل أن تحترق كتبه وبعد احتراقها (۴) قال ابو زرعة سماع الأوائل والأواخر منه سواء إلا ابن المباركؒ (۵) قال النسائى ضعيف (۶) قال الجوزجانى لا نور على حديثه ولا ينبغى أن يحتج به اهـ ميزان الاعتدال (۳ - ۱۹۰ - ۱۹۱)

زيات تفصيل هلته کتے شي - نو دا حديث ضعيف دے احتجاج ترې نشي کېدے. او په مصنف ابن أبي شيبة کښې د حسن بصريؒ روايت دے -

"إذا أسلم وعنده اختان حبس الاول منهما إن شآء اهـ مصنف (۲ - ۳۱۷)

(۱۲۶) کوثر ملا ليکي" فقه کښې راځي چه چا په کفر په حالت کښې پنځه شپږ ښځې کړې وي او اسلام راوړي نو روستني به پرېږدي، مرقاة ۶/۲۳۰ - او نبي عليه السلام

فرمائی، چه کومی خوښه وی هغه به پرېږدی۔ مشکاة (۲-۲۴۳)
ص۱۲۳۔

جوابُ :۔ دحدیث الفاظ دادی۔" فقال فارق واحدة و أمسك أربعًا" یعنی یوه پرېږده او څلور اوساته۔ کونړملا تادا "چه کومی خوښه وی هغه به پرېږدی،" ترجمه دحدیث دکومو الفاظو کړیده۔ لږ شرم پکار دے۔ دا تحریف معنوی دے، او حرام دے۔

(۱۲۷) خلاصه کیدانی کښی دی، چه دقدمونو مینځ کښے مسافة دڅلورو ګوتو په مقدار پکار ده، او حدیث کښی دی هیڅ ثبوت نشته، بلکه حدیث کښی راځی، چه څپلۍ دخپو مینځ کښی کیږدئ۔ مشکاة ۱/۷۳ ص۱۲۵

جوابُ :۔ کونړملا داحدیث ابو داؤد نقل کړیدے، او په دیکښی یو راوی صالح بن رستم دے۔ دده په باره کښی حافظ ابن حجرؒ لیکی" صدوق کثیر الخطاء" اوګوره حاشیه د ابی داؤد (۱-۹۶) طبع ایچ ایم سعید۔

بله دا چه کونړملا تاسو خو دومره ارتبیرت اودریږئ چه څپلۍ څه چه موچی سره دخپل دوکانه پکښی راتلے شی، کونړ ملا فام کوه موچی درکښی رینه اونه تومبی۔ نو به دی دومره ارتو او دریدو باندی څه دلیل شته؟

باقي خلاصه كيداني د مذهب معتبر كتاب نه دے۔ هغه خو
اشارے ته هم حرام وائي، او دا غلط دى، ملا على قاري رحمه الله
پرے رد كړيدے۔ صحيح خبره داده، چه په ديكښي څه تحديد
نشته، معارف السنن كښي دى۔

"واما الفصل بين القدمين فالحق عدم التحديد في ذلك
وإنما الأنسب بحال المصلي ما يكون أقرب إلى الخشوع
وأوفق بموضوع التذلل........قال في رد المحتار
(۱/۴۱۲) وينبغي أن يكون بينهما مقدار أربع اصابع
اليد لأنه أقرب إلى الخشوع اه معارف السنن شرح
سنن ترمذى (۲- ۲۹۸، ۲۹۹)

نو د څلورو ګوتو دا خبره دخشوع په اعتبار سره ده۔ څه فرض
يا واجب نه ده۔

(۱۲۸) كونړ ملا ليكي۔ "مشكاة ۲/۳۵۸ كښي راځي، چه
"ذكاة الجنين ذكاة امه" چه دحيوان مور ذبح شوه، نو
دخيټي بچے هم حلال شو۔ او فقه كښي راځي چه نه حلاليږي
ص ۱۲۵۔

جواب:۔ كونړ ملا عقل د نصيب شه، ستا دا معنى به هله
معتبره وى۔ كه د حديث هم دا معنى شي۔ ليكن مونږ وايو
چه د حديث معنى داده، چه د جنين ذبح د هغه د مور پشان

ده لکه څنګه چه نه مورذ بح کیږی دا شه به سګه بچی هم ذبح
کیږی، او دا معنی ابراهیم نخعیؒ هم اغستی ده، وائی
" لایکون ذکاة النفس ذکاة النفسین" رواه الامام محمد فی الموطا
نو کوم ملا عقل د نصیب شه، نو خپل سوچ او خپله معنی په
نورو مه مسلط کوه. تا خو د "ساق" ترجمه په ترجیح سره کړیده
لکه مخکښی دا بحث تیر شو، ستا خو دغه مبلغ علم دے. نو په
د آیت "یوم یکشف عن ساق" څه ترجمه کوے؟ ګمان
دے هم ګمراه کړو او نور خلق هم ګمراه کوے.

(۱۲۹) نقه کښی راغی چه په سورلئی وتر نه کیږی، او
حدیث کښی راغی چه نبی علیه السلام کړیدی، او ابن عمر به
هم کول ص۱۲۵

جواب :- د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه ددی خلاف
هم ثابت دی.

"عن نافع عن ابن عمر رضی الله عنهما أنه کان یصلی
علی راحلته و یوتر علی الأرض ویزعم أن رسول الله
صلی الله علیه وسلم یفعل کذلك" ا ه شرح معانی الآثار
باب الوتر هل یصلی فی السفر علی الراحلة أم لا (۱-۲۹۹)
طبع مصر.

امام طحاویؒ وائی په سورلئی باندی وتر په وترو کښی د تاکید

راتلو نه ممکښي دي۔

(۱۳۰) کونړ ملا ليکي "فقه کښې راځي چه يو حوض کښې نهه گزه په نهو گزو کښې او به وي، او يو وړو کی څاڅکی متيزي پکښې واقع شوے، نو او دس پرے نه دے جائز ص۱۲۵

جواب:۔ کونړ ملا عقل د نصيب شه، متيازو ته متيزي نه وئيلے کيږي، بل ته دا ابن قيم په تقليد کښې په سترگو شمکور شوے څه نه وينې، دوه مسئلې دے يو ځائې کړي، او بيا دے په هغے کښې هم غلطي اوکړه۔

اوله غلطي:- د حوض په باره کښې عشر فی عشر دي نهه په نهو کښې نه دي، هدايه کښې دي۔

وبعضهم قدروا بالمساحة عشرا فی عشر ذراع الکرباس توسعة للأمر علی الناس اه (۱ - ۳۷)

دويمه غلطي ماء راکد او ماء جاري ديو کړي۔

دريمه غلطي د ماء راکد حکم دے ماء جاري له ورکړو۔ په فقه د دخپل موروثي عادت مطابق دري دروغ اووئيل۔ د ماء راکد په باره کښې هدايه کښې دي۔

"وكل ما وقعت النجاسة فيه لم يجز الوضوء به قليلا كانت النجاسة او كثيرًا"

او په دليل کښې ذکر کوي.

"ولنا حديث مستيقظ من منامه وقوله عليه السلام لا يبولن أحدكم فى الماء الدائم ولا يغتسلن فيه من الجنابة اه هدايه (۱/۳۵)

او دحوض په باره کښې وائي.

"والغدير العظيم الذى لا يتحرك أحد طرفيه بتحريك طرف الآخر إذا وقعت نجاسة فى أحد جانبيه جاز الوضوء من جانب الآخر اه هدايه (۱-۳۶)

کوم ملا که د ابن قيم د تقليد په ځائے د هدايه کتلے وے نو ضال او مضل به نه وے جوړ شوے، ولكن حقت كلمة العذاب الخ

**عجيبه:** په هدايه کښې د مطلق نجاست ذکر دے، که متيازے وي او که منی وي، او کوم ملا ترې صرف متيازے مراد واغستې، ځکه چه د او بنانو او گډو بزو متيازے د دوئ په نيز د پاکے دی. او شايد چه تلی به ئے هم. نو په دے ورله غصه ورغله او ذکرئے کړے، او د منی ذکرئے هم او نکړو، ځکه چه منی د غير مقلد ينو په

نیرزد پاکه ده، د دوی کتاب " فقه محمّدی " (چه اوس مے له شرمه نه سنکاره کوی) کښې دی، چه منی پاکه ده، او په یو روایت کښې ئے خوراک هم جائز دے. شابه دنو بچو، منی خوری او متیازے پسے څکئ، صحت به مو ډیر ښه وی، تبا لکم -

کونډملا ستا په نیرزد خوکه ټول پیښبور درته په منګی کښې متیازے اوکړی، خوچه خوندرنګ ئے نه وی بدل شوی، ستا سو په نیرزد پاکے دی. هم دا استعمالوئ، چه صحت مو ښه شی

(۱۳۱) کونډملا لیکی" هدایه ۲/۳۱۳ کښې دی- چه که دوه کسان ګواهی ورکړی، چه فلانی سړی دا ښځه په نکاح اخستی ده او حقیقت کښې هغه ورسره نکاح نه وی کړے. داورته جائز ده- او نبی علیه السلام فرمائی " فمن قضیت له من حق أخیه شیئًا فلا یأخذه"[۱۲۵]

جواب :- دقاضی کار دے، دګواهانو (چه دګواهئ قابل وی) په ګواهئ فیصله کول - اوچه نصاب شهادت موجود وی، نو فیصله شرعی فیصله شوه، ستا د دی ذکر کړی حدیث " فمن قضیت له من حق أخیه الخ" نه هم دغه حقیقت معلومیږی- ځکه چه اصل حقیقت خو الله

تعالی تہ معلوم دے، باقی پہ دی عمل در آمد د شرعی فیصلے پہ وجہ سرہ دے۔

ابن همام د دی مسئلے د پارہ د حضرت علی رضی اللہ عنہ یوہ فیصلہ ذکر کړیدہ۔

"والذی روی عن علی رضی اللہ عنہ وھو أن رجلاً أقام بینۃ علی امرأۃ أنھا زوجتہ بین یدی علیّ فقضی علی بذلک، فقالت المرأۃ إن لم یکن منہ بدّیا امیر المؤمنین فزوجنی منہ فقال شاھداک زوّجاک اھ فتح القدیر (۳-۲۴۵) طبع جدید۔

باقی پاتے شوہ د قضاء بالیمین والشاهد خبرہ، نو مونږ وایو، چہ دا حدیث د آیت قرآنی نہ خلاف دے.

(۱) واستشھدوا شھیدین من رجالکم (سورۃ البقرۃ)

(۲) فان لم یکونا رجلین فرجل وامرأتان (سورۃ البقرۃ)

(۳) وأشھدوا ذوی عدل منکم (سورۃ الطلاق)

پہ دی آیتونو کښی د دوؤ ګواھانو ذکر دے، د ګواہ او یمین خبرہ د دی آیاتونو خلاف دہ۔ او د نورو احادیثو ھم خلاف دہ۔

(۱) البینۃ علی المدعی والیمین علی من أنکر، مشکاۃ (۲/۳۲۶)

(۲) فقال النبی صلی اللہ علیہ وسلم شاهداك او یمینه اھ صحیح بخاری (۱ - ۳۶۷)

(۳) عن ابن عباس أن رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم قضی بالیمین علی المدعی علیه اھ مسلم (۲ - ۷۴)

(۵) عن ابن عباس ........ لکن الیمین علی المدعی علیه اھ مسلم (۲/۷۴)

گوره په دې حدیث کښې یمین د مدعی علیه سره خاص دے، نو دی ایا تونو او احادیثو په وجه موږ وایو چه په مدعی باندې یمین نشته، یمین یعنی قسم د مدعی علیه سره خاص دے۔ کوږ ملا عقل د نصیب شه د تصویر یو رُخ خلقو ته مه ښایه۔ بل مخ ئې هم ښایه۔ چه د تلبیسی پرده دِچاک کیږی۔

(۱۳۲) کوږ ملا لیکی "حدیث کښې راځی" من وجد متاعه عند رجل مفلس فهو احق به "رواه البخاری، مسلم، مشکاۃ ۱/۲۵۵ ص ۱۲۶ او فقه کښې دی، چه دا به د نورو قرضدارو سره برابر وی

جواب:- کوږ ملا چونکه د فقې سره د دشمنۍ په وجه سره د عقل وخرد نه عاری دے۔ له دی وجے نه دیوے مسئلے حکم بلے مسئلے له ثابتوی۔ او بیا ئے د تلبیس د پاره فقې ته منسوبه وی۔ دلته دوه مسئلے دی۔ یوه مسئله د غصب ده۔ هغه دا چه چا د چا څه شے غصب کړو،

یائے پټ کړو، او په بل چا ئے خرڅ کړو، او مغصوب منه هغه څیز د مشتری سره او مونده، نو هغه ته داخستلو زیات حقدار دے۔ او ګوره مشکاة کښې هم دغه حدیث دے

"من وجد عین ماله عند رجل فهو أحق به ویتبع البیع من باعه" (۱ / ۲۵۵)

او ددې حدیث په حاشیه کښې دي۔

"أی من غصب مال أحد ثم باعه من آخر فصاحب المال إن وجده فی ید المشتری أخذه ورجع المشتری علی البائع بثمنه" او حاشیه ۱۰ مشکاة (۱ - ۲۵۵)

## دکونړ ملا دهوکه او دروغ :-

کونړ ملا لیکی، رواه البخاری ومسلم. حالانکه صاحب مشکاة وائی، رواه احمد وابوداؤد والنسائی۔ دائے په مشکاة باندې دروغ شو، او ذحدیث نه ئے "ویتبع البیع من باعه" الفاظ پرېښې دی۔ دائے دهوکه کړیده. چه اصل مسئله چاته معلومه نشی۔ ځکه چه خلق مشکاة نه ګوری، او اصلی خبره معلوموی، نو کونړ ملا به دنیا ګمراهه کړیوی۔ د پښتو متل دے۔ "چه رښتیا راځی دروغو کلی وران کړی وی"۔

دویمه مسئله دقرض ده، مثلاً چا په بل چا یاندی څه شے خرڅ کړو، او هغه یاندی نور هم قرضونه دی۔ او هغه مفلس شو، او دی خرڅوونکی سړی هغه خپل مال ددی مفلس سره اوموندو، نو آیا ده لره داحق شته چه دے دغه خپل مال واخلی اوکنه دے د نورو قرضدارو سره برابر دے۔ داجدا مسئله ده، کونړ ملا د واړه یو کړیدی۔ ددی حکم دا دے، چه دے دنورو قرضدارو سره برابر دے، ځکه چه ده کله دغه شے خرڅ کړو، اوقیمت ئے وانه غستلو، نو قیمت د مشتری په ذمه دین یعنی قرض شو، نو دے دنورو قرضدارو سره برابر شو۔ دلیل ئے دا آیت دے۔

"وإن كان ذوعسرة فنظرة إلى ميسرة (سورة البقرة)

او حدیث۔

"عن ابی بکر بن عبد الرحمن أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قضى بالسلعة يبتاعها الرجل فيفلس وهي عنده بعينها لم يقض صاحبها من ثمنها شيئًا فهو أسوة للغرماء او شرح معانی الآثار طبع مصر (۴-۱۶۵)

عن أبي هريرة عن النبي صلى الله عليه وسلم من باع بيعًا وقد افلس الرجل فهو ماله بين غرمائه

رواه ابن حزم فی المحلی (۸ - ۱۲۸) اعلاء السنن
(۱۴ - ۴۵۳)

او دحضرت علی رضی الله عنه اثر۔

وعن علی رضی الله عنه هو فیها أسوة الغرماء

اه رواه المحلی (۸ - ۱۲۷) اعلاء السنن (۱۴ - ۴۵۳)

نو ددینه صفا معلومه شوه، چه دا د واړه جدا جدا مسئلې دي
او د دواړو حکم جدا جدا دے، کوم ملا دخپل عادت
نه مجبوره دے، او دتلبیس نه کار اخلی۔

(۱۳۳) کوم ملا بیا لیکی "دا ټول فرضی مسائل دی. ص ۱۲۶

جواب:- ددی خبرے مخکښ هم جواب تیر شویدے
چه "قبل الرمی یراش السهم" دغشی ویشتو نه مخکښ
غشے تیاریږی۔ او وګوره تفسیر کشاف د آیت "سیقول
السفهاء الخ" لاندی۔ بل په مشکلو مسئلو باندی ځان
پوهه کول فائده لری، چه ذهن پری تیزیږی، باقی
د مویانو خبرے ذکر کول بے فائدے نه دی، دا جدا
خبره ده چه نن صبا مسلمانانو جهاد پریښی دے، نو
ددی مسئلو ضرورت نه پیښیږی، کوم ملا که ستادا
مشوره او منلے شی، نو بیا پکار ده چه دحدیث دکتابونو
نه کتاب الاعتاق مکمل او ویستلے شی۔

کونړ ملا دا اعتراض هم کوی، چه اصول فقه کښی دی، چه کتاب الله شل قسمه د ے. ص۱۲۶

جواب :- ۱- دکتاب الله حقیقت او مجاز او استعاره وغیره نه بحث کول. دقرآن کریم په بلاغت او فصاحت دلالت کوی. امام رازی رحمه الله لیکی.

"......... وجب علی القائل أن یبحث عن تلك المزایا والبدائع ما هی وکم هی وکیف هی ولا یمکن ذلك إلا بالبحث عن حقیقة الحقیقة والمجاز والاستعارة والتشبیه والتمثیل وحقیقة النظم الخ

نهایة الایجاز فی درایة الإعجاز، ص۷

لیکن کونړ ملا داصول فقه په دښمنئ کښی په دی هم اعتراض کوی.

(دوییم) کونړ ملا لیکی. دوی دیوی مسئلے د پاره لس قاعدی ایخودلی وی چه بل ځائے نه جاری کیږی ص۱۲۶

جواب :- ۱- کونړ ملا مثال به د ورکړیو ے، چه دا یوه مسئله ده، او دا دا ئے لس قاعدے دی. بلکه دا چه که داسی وی، نو دا د وسعت علم دلیل د ے. اهل علم ئے ستاینه کوی. خو ستاغوندی غبی ئے د خپل غباوت په وجه سره غندنه کوی واقعی "النّاس اعداء لما جهلوا"

(دریم) کونړ ملا وائی" دکتاب وسنت د قواعدو دومره اهتمام نشته، او د قیاس ډیر اهتمام دے۔ ص۱۲۶

جواب:۔ دا الزام هم غلط دے، دکتاب وسنت هم ښه التزام شته، اوګوره اصول سرخسی وغیره، باقی د قیاس التزام که څه لږ ډیر شوید ے په حسامی، نو داځکه چه یو خو دا بحث مشکل دے، نو تفصیل غواړی۔ بل ستا غوندی بهیمة الانعام د قیاس نه انکار کوی۔

(څلورم) کونړ ملا وائی" پکار داوه چه دا اصول او قواعد اتفاقی وے"۔ ص۱۲۷

جواب:۔ ع سخن شناس نهٔ دلبرا خطا اینجاست

کونړ ملا عقل دِ نصیب نشه، اختلاف په اجتهادی مسئلو کښی وی او تفریعاتو کښی اختلاف په اصولو کښی د اختلاف په وجه راځی۔ لکه د حدیث ربا نه هر مجتهد د خپل خپل فهم په اعتبار سره اصول مقرر کړیدی۔

(پنځم) کونړ ملا لیکی" پکار داوه، چه اصول د قرآن او حدیث نه مأخوذ وے الخ ص۱۲۷

جواب:۔ کونړ ملا د هرے قاعدے د پاره څه نه څه اصل ضرور وی، دکتاب نه یا د سنت نه۔ بے اصله نه وی۔ اوګوره داشباه والنظائر شروح۔ اوس که

تاته ئے پته نه وي، نو دا ستا د جهل تصور دے، بله دا چه
ستا د اخيره ستا مشران رونړه منکرين حديث د اصول حديث
په باره کښې کوي. او وائي، کوره د ا اصول حديث محدثينو
له ځانه جوړ کړيدي. د کتاب الله نه پرې هيڅ دليل
نشته. د غه شان د جرح وتعديل د ا اصول. او بيا دا
ټول اصول اتفاقي هم نه دي، بلکه اختلافي دي، د بعضے
په باره کښې د امام بخاريؒ يا علي بن المدينيؒ او امام مسلمؒ
اختلاف اوکوره، ترڅو چه امام مسلمؒ علي بن المدينيؒ
او امام بخاري ته نام نهاد محدث وائي. نو کونړ ملا دا
ستا سندره نه ده، دا د مشرانو رونړو يعني منکرين
حديثو نغمه ده، د احنافو په د ښمنئ کښې د ومره مخکښ
لاړے چه د منکرين حديثو په صف کښې اودريدے.
باقي د معتزلهؤ سره تشبيه د احنافو مناسب نه ده، بلکه
ستاسو مناسب ده، ځکه چه هغوئ هم تقليد نه مني، او
تاسو هم نه منئ. بلکه ستاسو تشبيه د ابليس سره
زياته مناسبه ده، ځکه چه هغه هم غير مقلد دے، او تاسو
هم.

(شپږم) کونړ ملا ليکي، اصول فقه کښې څه واضحي قاعدے
نشته، چه سړے ترې فائده واخلي، بلکه سخت سخت او مجمل

عبارتونه دی الخ ص۱۲۷

جواب :- کونړ ملا، هغه خلق وائی "دروغ گو را حافظه نباشد" د دروغژن سړی حافظه نه وی، اوس ئې د دویم اعتراض لاندی لیکل ص۱۲۶، چه دیوے مسئلے د پاره لس قاعدے پروی او دلته وائے چه قاعدی نشته - باقی تا نه واضحه ځکه نه ښکاری چه ته پری نه پوهیږے، او ځما په خیال ته هم دی مشکل عبارتونو غیر مقلد کړے ئے - په ابتداء کښی خو ته تصوف طرفته مائله وی، بیا خدائے خبر چه چا گمراه کړے، هاں رښتیا، اوس را یاد شو، ته خو درهم ودنا نیر د مذهب نه اړولی ئے، او بې مذهبه کړے - ستا سو ایمان خو په دوه ریاله خرڅیږی، یره کونړ ملا یره که ستا کښی واقعی ایمان وی، نو په ایمان ئے او وایه چه خبره هم دا ده او کنه ؟

## دکونړ ملا اضلال :-

کونړ ملا لیکی " داخبری حُسن الضاف کوُنکو او علماؤ ته وایم چه ستاسو فائده اوشی (کونړ ملا ؛ د درهم ودنا نیر او ریالونو فائده او که نور څه ؟ ۱۲ راقم الحروف) ځکه چه مؤمن هغه خوښوی کوم چه د ځان د پاره خوښوی ص۱۲۷

جواب :- دکونړ ملا داخبره د" کلمة الحق أُرید بها الباطل "

دقبيل نه ده، کونړ ملا پخپله لا مذهبه دے، نو رخلق
هم لا مذهبه کول غواړي، يعني ؎
ہم تو ڈوبے ہیں صنم تمکو بھی لے ڈوبینگے

کونړ ملا ليکي "د ضرورت په وخت کښي به دی مسئلو بحث
کوئ، ورنه چه بحث او مباحثے تا سو د الله تعالیٰ د ذکر او
عبادت نه مشغول نکړي، صرف د نهي عن المنکر په درجه کښي
بحث کولے شئ. ص ۱۲۸

جواب:- کونړ ملا! امر بالمعروف دِ ولے هير کړو،
او دا ځکه چه ستا ټول کتاب د اُمر بالمعروف ضد دے،
کونړ ملا وائي، دا ځکه مسئلي په ښه لهجه سره دِ دين
طالب ته ښايئ. ص ۱۲۸ کونړ ملا ته خو په غير عالم باندی
هم تقليد حرام ګڼړے، نو چه هغه په هيڅ نه پوهيږي
او ته ورته څه وائے او هغه ئے او مني نو دا خو عين
تقليد شو. کونړ ملا "لم تقولون ما لا تفعلون"

کونړ ملا مخکښي ليکي "عنادی سړی سره بحث مه کوئ،
ځکه بحثونو سره زړه سختيږي. ص ۱۲۸

جواب:- کونړ ملا حقيقت بدلول عناد دے او کنه؟ او
که عنادوی او واقعي عناد دے، نو تا په دی کتاب کښي
څومره دروغ ويلي او څومره دِ دهوکي کړی دی، ولے

دا هرڅه جائز دي . ځکه چه حديث کښې دي " واذا حدث كذب "

کونړ ملا وائي ، "تاسو کښې په بې خلق دا سې مسئلې بې ادبي

ګڼي او بد اخلاقي په ورنه وائي صـ ۱۲۸

جواب :- کونړ ملا ! دروغ او فريب او دهوکه او تلبيس

بد اخلاقي ده او کنه ؟ که ده نو ته يې ولې کوې ؟

کونړ ملا ليکي ، دو يمه بد اخلاقي دا ده ، چه د قرآن په

اياتو نو کښې دځانه تحريف کول . صـ ۱۲۸

جواب :- کونړ ملا تا خو مره ځايه معنوي تحريف کړے ،

لږ داکتاب دِ بيا اوګوره .

کونړ ملا د حضرت عمر رضي الله عنه په باره کښې ليکي ،

" کان وقافا عند كتاب الله " صـ ۱۲۹

جواب :- په دې کښې هيڅ شک نشته ، خو دا وقاف

عند کتاب الله تا په صـ ۴۲ باندې د محمد رسول الله صلی

الله عليه وسلم د قول مخالف ګرځولے دے ، دا ستا

بد اخلاقي ده او د مسئلې نه د جهالت علامت دے ، تا

د طواف په مسئله صرف دا وقاف عند کتاب الله نه

بلکه د پيغمبر عليه السلام نه روستو په ټول امت کښې

غوره انسان حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه هم

د محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم د قول مخالف ګرځولے

دے، "تالیکلی" کلہ چہ د ابوبکر او عمر رضی اللہ عنہما قول او فعل د محمد رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم د قول او نعل پہ مقابلہ کښی نہ دی قبول الخ ص۲ د خدائے ظالمہ ولے د طواف پہ دی مسئلہ کښی د ابوبکر او عمر رضی اللہ عنہما قول او نعل د محمد رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم د قول او نعل نہ مخالف دی؟ دا نو رځہ نہ دی، خو دا دوہ عظیمی هستئ دِ د خلقو پہ نظر کښی غور ځول غوښتل، او خپل د زړہ رونړه شیعہ ګان د خوشحالول۔ چہ کښی دوئ هم د پیغمبر علیہ السلام د قول او فعل خلاف کول۔ خو د ابن عباس رضی اللہ عنہما سرہ دِ هم څہ عقیدت نہ وُو، نو پہ ص۴۴ دِ هغہ راو پر ځولو، پہ۔

"قال ابن عمر: فبقول رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم أحق أن تأخذ أو بقول ابن عباس، إن کنت صادقا" ص۴۴

هم هغہ د طواف مسئلہ دہ، یو ځائے دِ پرے شیخین رض او غورځول او بل ځائے دِ پری ابن عباس رضی اللہ عنہ کونړ ملا تالہ شرم پکار دے۔ تہ پہ کوم وسترګو د عمر رض نوم اخلے؟ بلکہ صرف دا نہ، بلکہ پہ تراویح او طلاق ثلاثہ کښی هم د دی عمر الوقاف عند کتاب اللہ مخالفت

خپل فرض گڼړي. او دجمعې ددویم اذان په باره کښې ددریم
خلیفه راشد حضرت عثمان رضی الله عنه مخالفت کوئ. او
پاتې شو څلورم خلیفه راشد حضرت علي رضی الله عنه،
نو په هغوئ دا الزام لګوئ چه هغوئ په کلوکښې دجمعې
مونځ څکه بند کړیوو، چه خلق د هغه دخلافت خلاف
تقریرونه اونکړي، اوګوره دغیر مقلد عبدالعزیز نورستاني
کتاب د" پیغمبر علیه السلام مونځ"،
کونړملا لیکي،" دا بد اخلاقي نه ده، چه سړی دعلماء کرامو
خبرې په قرآن وحدیث پیش کړي، حق تري راواخلي او
خطاء پرېږدي، او دعلماء کرامو احترام په ځائې ولري ص۱۲۹
جواب:- کونړملا دالله تعالیٰ ارشاد دے" لم تقولون
مالا تفعلون "کاش چه تا هم داسې کولے، او په دې آیت
باندې ستا هم ایمان وے. ته خو مرجوح او غیر مفتی به
اقوال تلاشي کوے. او بیا ئې پیش کوې، مقصد دې دا
دے، چه مذهب حنفي څومره چه کیدے شي په غلط
رنګ کښې پیش کړې شي، چه خلق تري متنفره شي.
مثلاً تا دعقیقې په باره کښې دکراهت قول نقل کړے،
حالانکه نه ځائې په ځائې دمرقاة نه نقل کوے. اوهم
په دغه مرقاة کښې دي، چه عقیقه مستحب اوسنت ده

نو که نه په دی خپل قول کښې ربښتینې وے ، او په دی مذکوره
ایت د واقعی ایمان وے، نو تا به وئیلی وے، چه د کراهت
قول صحیح نه دے، د سنت او استحباب قول موجود دے.
دا تا د علماؤ احترام ښه په ځای وکړو۔ واقعی چه تاسو
په دی ځان نه اهلحدیث وایئ چه په "إذا حدث کذب"
باندی مو پوره عمل دے۔
کونړملا لیکی" د علماء کرامو بې ادبی کول د الله تعالیٰ
دشمنی ده۔ ص۱۲۹
جواب:۔ کونړملا! پیچا دروغ وئیل بې ادبی ده
او که؟ نو نه د خپل قول مطابق د الله تعالی دشمن
شوے "المرأ یؤخذ بإقراره" کونړملا لیکی "إذا لم
یکن العلماء اولیاء الله فلیس لله ولی" ص۱۲۹
کونړملا دا حدیث دے او که د چا قول؟ او که د چا قول
وی، نو تقلید د اوکړو، نو بیا هم د "لم تقولون مالا
تفعلون" مخالف شوے، نو هم د آیت مخالف شوے
هم د علماء کرامو بې ادبه شوے، نو په کرات مرات
سره د خدائ د دشمن شوے۔
کونړملا لیکی "مانه د علماء بې ادبی د اسکاری چه یو
سړی ځان د یوعالم پوری وتړی الخ" ص۱۲۹

جواب :- کونړ ملا په تقلید شخصی رد کوی۔ او لخبړ خوداده چه کونړ ملا خو هلوو دسره مطلق تقلید نه منی. او دلته صرف د تقلید شخصی رد کوی۔ نو گویا مطلق تقلید ئے دلته او منلو، او دا صرف دے نه بلکه د دوئ شیخ الکل فی الکل مولوی نذیر حسین دهلوی صاحب هم په معیار الحق کښ مطلق تقلید منی۔ خو دلته ئے په دی څه دلیل ذکر نه کړو، بله دا چه د تقلید شخصی لوئ لوئ محدثین قائل دی، د مثال په طور حافظ ابن حجرؒ چه غیر مقلدین هم د هغه د کتابونو نه ځان نشی مستغنی کولے۔ هغه د امام شافعیؒ پوخ مقلد دے، دا رنګه امام بیهقیؒ او کوره۔ لیکن په چا کښ دا جرأت شته، چه هغه دی حضراتو ته بی ادبه او وائی، کونړ ملا لږ ځان ته سے او به واچوه، دوړ په تاؤ مه څه۔

کونړ ملا لیکی" اکثر خلق ټول دین په څلورو مذهبونو کښ منحصر ګنړی ص۱۳۰

جواب :- کونړ ملا دا حصر چا کړے؟ معلومیږی" لعنة الله علی الکاذبین" دِ په نظر کښ نه دے۔ مخکښ لیکی" او حال دا چه ډیری مسئلے حقی شته د څلورو مذهبونو نه بهر لکه د امام بخاری او سفیان ثوری الخ" ص۱۳۰

جوابؒ :- کونړ ملا خو تراوسه مذهبونه داسلام په مقابل کښې متوازي دينونه ګڼړل - او دلته دامذهبونه هم څه نه څه په حق ګڼړي - بل دڅلورو امامانو د تقليد په رد کښې کتاب ليکي، او د امام بخاريؒ و غيره د تقليد اجازت ورکوي،

او ليکي" او خصوصًا د امام اسحق بن راهويه او ابن حزم او داؤد ظاهري رحمهم الله ص۱۳۰ يعنې دامام مالک، امام ابوحنيفه، امام شافعي او امام احمد رحمهم الله تقليد خو شرک دے د کونړ ملا دزعم مطابق، او دمشرکينو په باره کښې نازل شوي ايا تونه ،" اتخذوا احبارهم ورهبانهم اربابًا من دون الله " وغيره پرې چسپان کوي- خو دابن حزم او داؤد ظاهري تقليد کونړ ملا ته د موريې سنکاري - کونړ ملا دلته دِ ابن تيم او شوکاني ولے هيرکړ؟ داخو دِ بے وفائي ده - تراوسه خو کونړ ملا دشوکاني په دغه پوري ځانګيدو ، او نورستاني ورله تالئ ورکولے، تالئ کونړ ملا و ځنګوئ- داخو دِ بے وفائي او دغاده، هسے چغے سوري وهئے - ع ما اهل حديثيم ورغا را نشناسيم

داعجيبه ده چه دخيرالقرون دائمه کرامو تقليد خو کونړ ملا شرک ګڼړي، ليکن دابن حزم تقليد ته جائزوائي-او حال دا چه ابن حزم پخپله غير مقلد دے-

کونړ ملا که ته د امام بخاریؒ په مسئلو باندې عمل کوے او چرته امام ئې نو دخلقو بیړه دِ غرقه کړه.

(۱) امام بخاریؒ د "إنما الماء من الماء" قائل دے، غسل ته احوط وائي، فرض ورته نه وائي. (بخاری ۱/۴۳) حالانکه دا حدیث منسوخ دے. او که ته په دی عمل کوے، نو نه ستا مو ځ او شو او نه دِ د هغه د یا نو، ځکه چه هر وخت به په جنابت کښې ئې.

(۲) او متیازے به هم په ولاړے کوے، ځکه چه باب ئې اکړ چه د قاعدا هم تړلے، خو حدیث ئې صرف د قائما ذکر کړے (۱/۳۵) ستا دا اعتراضات روافض هم کوی، او د هغوئ دا خیال دے، چه د دوئ د دولسو امامانو په ځائے دنورو ولے تقلید کیږی، او د کونړ ملا دا اعتراضات هم صرف په دې وجه دی. چه د ابن حزم او داؤد ظاهری تقلید ولے نه کیږی؟

کونړ ملا حقیقت اوس معلوم شو. چه ته صرف د حسد په وجه ګلیا ئې اختلاف کوے، کنې تقلید خو ته هم کوے، خو د ابن قیم او شوکانی او اوس پکښې ابن حزم او داؤد ظاهری هم راغله

**دکونړ ملا لسم تپوس:-** کونړ ملا لیکی "کله چه

عیسی علیه السلام راشی او مهدی راشی، نو د چا په مذهب به روان وی. ص ۱۳۰

جواب :- دیوجلیل القدر پیغمبر په باره کښی داسے تپوس څه توهین کنړم - پیغمبر د امتی نه تابع کیږی، امتی د پیغمبر تابع کیږی، نو کونړ ملا دا سوال د ے دیو پیغمبر په بی ادبئ او گستاخئ باندی مشتمل د ے - په دیکښی ستا نه هم تپوس کیدے شی، خو څه په دی باره کښی څه وئیل د پیغمبر توهین کنړم - " سلام علیکم لا نبتغی الجاهلین "

## دکونړ ملا بوٗولسم تپوس :-

کونړ ملا وائی، چه نه مقلد ئے که مجتهد که نه وائی چه څه مقلد یم نو بیا د تقلید د اثبات د پاره څرنګ استدلالونه بعیده کوی - الخ ص ۱۳۱

جواب :- کونړ ملا تقلید او استدلال دواړه جمع کیدلی شی د تدریب الراوی په حواله سره مخکښی دا خبره تیره شوی ده چه په حدیثو کښی د علل خفیه د پیژندګلو ماهران په شماریو څو تنه دی هر محدث په دی نه پوهیږی، او دا ظاهره خبره ده، چه څوک په دی نه پوهیږی، نو هغه په دی مسئلو کښی د پوهیدو نکو تقلید کوی - او یو عقلمند هم دا نه دی

وئیلی، چه فلانکے دومره آغت محدث او عالم دے۔ دے پخپله ولے ملا خفیه نه پیژنی، چه د نورو تقلید کوی، او نه چاد عنه محدث نه جاهل وئیلی دی۔ کونړ ملا لیږه ترمذی اوگوره، امام ترمذیؒ ځائ په ځائ وائی " ما په دی باره کښی د امام بخاریؒ نه تپوس اوکړو۔ اوستاعونده یو عقلمند هم په امام ترمذیؒ اعتراض نه دکړے۔ نو کونړ ملا عقل د نصیب شه، تقلید او استدلال جمع کیدیشی۔ دواړه ضدین نه دی۔ کونړ ملا په خپله خود داحال دے، چه د تقلید په تعریف کښی هم کله د ابن قیم په لمن پوری ځانګے او کله د شوکانی په هغے پورے ځانګے۔ اوبیا هم وائے چه تقلید حرام دے۔ هم د ابن حزم وغیره تقلید جائز ګڼړے، او هم وائے چه تقلید حرام دے آخر دا تضاد بیانی ولے کوے؟ د حسد او تعصب پټئ له سترګو نه پرانیزه، نو دا حالت به د ے سنه شی، انشاء الله تعالی۔

کونړ ملا لیکی چه استدلال خو د مجتهد کار دے۔ ص۱۳۱
کونړ ملا دا چا وئیلی چه استدلال د مجتهد سره خاص دے، کونړ ملا دروغ مه وایه له خدایه اوویریږه۔

## دکونړ ملا دولسم تپوس ۹۔ کونړ ملا لیکی "ته

د تقلیدو علماؤ خبری منی اوکه د یو عالم - صـ۱۳۱

جواب ۱:- کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، د شرق نه تر غرب پوری د تقلیدو علماؤ په مسئلو باندی علم د چا را تلے شی؟ کونړ ملا دا خو پریږده، په ایمان سرهٔ وایه ستا د احکامو سره متعلق په تمامو نصوصو علم دے، او د صحابه کرامو تمام آثار ستا په علم کښی دی؟ دا د هیچا په وس کښی نه ده، او واقع نه دی. نو عقل د نصیب شه، د نورو نه ولے تپوس کوے؟ او بله دا چه په قول ستا د تقلیدو علماؤ خبری منضبط نه دی صـ۱۳۱ نو چه منضبطے نه دی۔ او علم پری نشی راتلے، نو تپوس تری جهل شو.

کونړ ملا مخکښی لیکی " دا رنګه کومی خبری نه منی بی دلیله او که د دلیل والا صـ۱۳۱، کونړ ملا عقل د روزی شه، کومه مسئله چه دا دله اربعه نه ثابته وی، هغه مونږ منو، بی دلیله خبره څوك منی؟

## دکونړ ملا اوتے بوتے :-

کونړ ملا لیکی: که دی د لیله خبری منی، خو نه د خواهش تابع سے، او د بیته تلفیق واقع - صـ۱۳۱

کونړ ملا ! اول د تلفیق تعریف ایزده کړه، چه تلفیق

څه قدر وائي، بيا هله د تلفيق حکم لګوه. نه خو هسې د سره د تلفيق معنی نه پېژنې.

کونړ ملا ليکي" او تلفيق ناروا دی ص۱۳۱. کونړ ملا د تلفيق په عدم جواز دِ نه آيت پيش کړو، او نه حديث او نه دِ پکښې خپلې فتاوی الدين الخالص ته اشاره اوکړه. اخير داولې. بله دا چه دا اجماعي حکم دے او که افرادي؟ او ستا دا خبره بې دليله ده، او س که څوک ستا دا بې دليله خبره او مني، نو هغه په تلفيق بلکه په ناروا کښې مبتلا شو اوکنه؟ کونړ ملا هغه آيت يا حديث او ښايه چه په هغې کښې تلفيق ته ناروا وئيلي وي.

## عجيبه توقه:- د کونړ ملا دے ساده ګئ ته اوګوري. هم وائي، چه د ټولو علماؤ خبرې منضبط نه دی. او هم ليکي، چه ته ئے کومې خبرې مننے؟ کونړ ملا اول د سوال او تپوس ځل ايزده کړه، هله تپوس کوه،

کونړ ملا ليکي" او که ديو عالم ټولے خبرې منے چه ديته تقليد شخصي وائي. ص۱۳۲

جواب:- کونړ ملا د تقليد شخصي خو ته هم قايل ئے. په ص۱۳۰ دِ ليکلي، خصوصًا د امام اسحق بن راهويه

وغیره ـ کونړ ملاوائۍ په دیکبنی خو بے شماره نقصانات دی، ص۱۳۲ ـ کونړ ملا که دابن حزم یا داؤد ظاهری تقلید اوشی، یا دشوکانی تقلید اوشی ـ نو بیا خو به څه نقصان نه وی کنه ؟ بلکه فائده فائده به وی، بیا خو به دا حبار ورهبان ایاتونه نه چسپان کیږی کنه ـ کونړ ملا !" لم تقولون ما لا تفعلون "

کونړ ملا لیکی" چه یو عالم دین ته ټول دین نه وی معلوم ص۱۳۲ ـ کونړ ملا که ستا دا خبره او منلے شی، نو د دی مطلب خو دا شو، چه پوره دین ور ته نوی معلوم، نو په نیم دین باندی عمل شو ـ او په نیم دین باندی عمل دآیت " ادخلوا فی السلم کافة " خلاف دے، نو ستا څه خیال دے، ستا په خیال دا قسم عالمان مسلمانان دی؟ او ستا ته خو هم ټول دین نه دے معلوم، نو ته پوره مسلمان ئے د خپل زعم مطابق او که نیم کوئے مسلمان ئې؟ بینوا تؤجروا ـ

او کونړ ملا لیکی" صحابه کرامو باندی مسئلے پټی پاتے شویدی ص۱۳۲ ـ که ستا مطلب د دی مسئلو نه دین وی، نو ستا د قول مطابق صحابه کرامو ته پوره دین نه وو معلوم، العیاذ بالله ـ نو په پوره دین عمل نشو ـ

کوږ ملا ستا علم خو هم په تمامو مسئلو باندې محیط نه دے، نو تا ته هم پوره دین معلوم نه دے، نو ستا د قول مطابق ته هم په ټول دین باندې عمل کوونکې نشوے بلکه په بعضے دین باندې شوے۔ نو کوږ ملا دا خو ته د "أفتؤمنون ببعض الكتاب وتكفرون ببعض" مصداق شوے۔ ع اتسع الخرق على الراقع ۔

کوږ ملا د احنافو په دشمنئ کښې دومره وړاندې دے چه هیڅوک ورته مسلمانان نه ښکاری، بلکه صحابه کرامو ته یې خبره اورسوله لپاره د دی چه شیعه گان خوشحاله کړی، دا بعینه د شیعه گانو مدعاده، خو انداز بدل دے۔

کوږ ملا لیکی" امام صاحب په ۱۵ مسئلو کښې د لا ادری جواب ورکړی دی۔ ص۱۳۲

جواب:۔ کوږ ملا دا د تقوی او دیانت خبره ده۔ له ځانه بې دلیله مسئلے ئے چا ته نه ښوولے۔ سنن ترمذی کښې د امام بخاری په باره کښې هم راځی، امام ترمذیؒ وائی ما تری تپوس اوکړو، نو څه جواب ئے رانکړو۔ او دا د نقص او توهین خبره نه ده۔ اوله دی سره سره چا هم دا نه دی وئیلی، چه دا مسئلے ورته نه وے معلومے؟

نو دومره دین ترې پټ وُو، او په دومره مسئلو کښې به دینه وُو، العیاذ بالله، کوڼه ملا ستا د بیان نه خو هم د غه معلومیږي.

کوڼه ملا لیکي "المجتهد یخطی ویصیب نو ستا ټول دین دې ټول په شک بنا دی ص۱۳۲

جواب:- کوڼه ملا عقل د نصیب سئه، تقلید په اصول دین کښې نه وي، په فروعي او اجتهادي مسئلو کښې وي. لکه په اصول حدیث او جرح وتعدیل ټوله دنیا د محدثینو او ائمه جرح وتعدیل کښې تقلید کوي، او انکار ترې مکابره ده- د اصول حدیث او جرح وتعدیل د ا مسئلې هم اجتهادي دي- منصوصې نه دي. په دیکښې هم خطا او صواب شته، نو که ستا د ا خبره او منلې شي نو بیا خو ستا هم ټول دین په شک باندې بنا دے- ځکه چه ته هم د محدثینو تقلید کوے، نو کوڼه ملا که تقلید ګناه دي، نو ځ این ګناهیست که در شهر شما نیز کنند

کوڼه ملا لیکي" نو ثابته شوه چه د ټولو علماؤ خبرې بالدلیل منل پکار دي" ص۱۳۳

جواب:- کوڼه ملا لږ ددے تفریع بیان دِ اوکړه" نو ثابته شوه" نو څنګه ثابته شوه- ستا د ا عمارت خو د تار عنکبوت نه هم کچه دے، نو ثابته څنګه شوه؟ فتدبر

کوڼه ملا لیکي" چه تقلید شخصي کښې بیشماره نقصانات

دی صـ۱۳۲۔

اوشاه ولی الله رحمه الله لیکی، چه په دی کښ ډیری فائدی دی،

"ومما يناسب هذا المقام التنبيه على مسائل ضلت في بواديها الأفهام (كفهم كونړ ملا) وزلت الأقدام (كقدم كونړ ملا) وطغت الأقلام (كقلم كونړ ملا) منها أن هذه المذاهب الأربعة المدونة المحررة قد أجمعت الأمة او من يعتد به منها على جواز تقليدها إلى يومنا هذا وفي ذلك من المصالح ما لا يخفى لا سيما في هذه الايام التي قصرت فيها الهمم جدا و اشربت النفوس الهوى وأعجب كل ذي رأي (ككونړ ملا) برأيه اهـ حجة الله البالغة (۱-۱۵۴)

## دکونړ ملا دیار لسم تپوس :-

کونړ ملا لیکی" ته تقلید ولے کوے؟ صـ۱۳۳

کونړ ملا ته په اصول حدیث او جرح و تعدیل کښ ولے تقلید کوے؟ ستا څه جواب دے؟

## دکونړ ملا جهل :- کونړ ملا وائی۔ صحابه کرامو

او تابعینو ترخلورمې صدئ پورې تقلید نه دی کړی صـ۱۳۲

کونړ ملا لیږ دا اووایه چه هغه کوم صحابي یا تابعي دے، چه ترخلورمې صدئ پورې ژوندے پاتے شوی وی، عاجز ته داهم نه دی معلوم چه صحابه کرام په کومه صدئ کښې ختم شوی وُو او تابعین په کومه صدئ کښې؟ باقي پاتے شو دصحابه کرامو په زمانه کښې د تقلید خبره نو شاه ولی الله لیکی۔

"ان الناس لم یزالوا من زمن الصحابة إلی أن ظهرت المذاهب الاربعة یقلدون من اتفق من العلماء من غیر نکیر أحد یعتبر انکاره ولو کان ذلك باطلاً لأنکروه اھ عقد الجید صـ۵

یعني دصحابه کرامو د زمانے نه واخله تر ائمه اربعه د مذهبونو د ظاهرېدو پورې خلقو همیشه د چا نه چا تقلید کولو، او په دی تقلید باندې چا داسې کس اعتراض نه دے کړے، دچا اعتراض چه اعتبار وی۔ او که تقلید باطل وے، نو ضرور به ئې پرې انکار او اعتراض کړے وے واذا لیس فلیس۔

کونړ ملا وائی "که ته وائی چه څه نه پوهیږم، نو څه وایم چه علماء خو پېردی دایو د ولی خاص کړے. صـ۱۳۳.

جواب :- کونړملا په صفحه ۱۳۰ چه تاویلی " او خصوصاً دامام اسحق بن راهویه او ابن حزم او داؤد ظاهری الخ آخر تا دا تخصیص په کوم دلیل کړے؟ او کنه دا صرف ستا د پاره روا دی، د نورو د پاره ناروا دی " لاتنه عن خلق وتاتی مثله" کونړملا دبل نه دلیل غواړی او پخپله هرڅه چه کوی . د ه لره جائز دی .

## دکونړملا دماغی حالت :-

وائی که بی دلیله در ته پته لږ یدلی وی نوزمونږ جھګړه هم تا سره په دی ده صفحه ۱۳۳

کونړملا اول د دلیل معنی ایزده کړه ، او بی دلیله هم چا ته دڅه شی پته لګی . څه مجنونانه خبری کوے که ته وائی چه هغه دټولو علماؤ نه ښه پوهیږی ، نوځه وایم چه دصحابه کرامو نه هم ښه پوهیږی صفحه ۱۳۳

جواب :- کونړملا اول دا اووایه ، چه ته دصحابه کرامو اقوال حجت ګنړے؟ ستا زیدی شیعه مقتدا شوکانی خو لیکی ، چه دصحابه کرامو اقوال حجت نه دی - بله دا چه تا داسحق بن راهویه او ابن حزم او داؤد ظاهری تخصیص کړے صفحه ۱۳۰ ، نو ولی د وئ واتعی دصحابه کرامو نه زیات

پوهیده، کونړملا هسې ولې خلق تیر باسې۔ او د " الذی یوسوس فی الصدور الناس ،، طریقه تاته دومره خالسته ولې ښکاري؟ چه لدینه هلو اوړې نه ۔

کونړملا ته چه دا تپوس کوې، چه تاته دکومه پته اولګیده چه د ټولو خلقو نه هینه پوهیږي صـ۱۳۳۔ نو د اسحق بن راهویه په باره کښې تاته څنګه پته لګیدلې ده چه هغه د ټولو علماؤ نه بلکه د صحابه کرامو نه هم زیات پوهیدو ولې تاته د ټولو علماؤ اقوال سره د دلائلو نه یاد دي؟

کونړملا لیکي " ته خو مقلد ئې، دلیل تا ته څه معلوم دی صـ۱۳۴۔

جواب :- کونړملا که ستا دخیال مطابق د اسحق بن راهویه یا ابن حزم یا داؤد ظاهري مقلد شي۔ نو بیا خو به ورته دلیل معلوم وي او کنه؟ بلکه دلیل ته به ئې حاجت هم نوي۔ څه دخیال دے؟

## څوارلسم تپوس :-

کونړملا لیکي" دفقې په کتابونو کښې د تقلید رد موجود دے،، صـ۱۳۴۔

جواب :- کونړملا هغه د جامد او ړوند تقلید رد دے

کوم چه ته د شوکانی وغیره کوسه، او دا مونږه نه کوُو.

## دکونړ ملا پنځلسم تپوس :-

کونړ ملا لیکی" ته چه کومی فتوی ورکوی، د خپل امام د مذهب مطابق آیا ته په دی فتوو کښی د الله او د رسول دحکم مطابق ے اوکنه؟ که ته وائی چه هاو ځه د الله تعالی دحکم مطابق فتوی ورکوم، نو ځه وایم چه دا خبره باطله ده، ځکه چه تا خو د خپلی ناپوهئ نه تقلید شروع کړیدی ص۱۳۲-

جواب :- کونړ ملا ستا په باطل وئیلو سره یو حقیقت نشی باطلیدے- دا خبره مکرره تیره شوه، چه په حدیثو کښی دعلل خفیه پیژندونکی په ټول امت کښی صرف په شمار یو څو کسان دی، لکه علامه سیوطی رحمه الله په تدریب الراوی کښی ذکر کړی، حواله مخکښی تیره شویده دغه شان دجرح وتعدیل یو څو کسان دی، او باقی ټول امت چه پکښی لوئی لوئی محدثین شته د دغه څو کسانو تقلید کوی- لکه سنن ترمذی اوګوره- امام ترمذیؒ ځائ په ځائ د امام بخاریؒ نه تپوس کوی- خو ستا په شان یو عقلمند هم دی تقلید کوُونکو نه ناپوهه او جاهل

نه دی و یئلی. کونړ ملا نور پر بره ده، گمان واخله د تقلید په تعریف کښې د خومره کسانو تقلید کړے، او په تیره تیره د شوکانی چه زیدی شیعه دے، په هر کام دده تقلید کوے، نو بیا خو ته دخپل قول مطابق په دنیا کښې د ټولو نه زیات ناپوهه شے۔

کونړ ملا لیکی "او په دی خبره اتفاق دے د علماؤ چه مقلد سړی خپلی مسئلی ته دالله حکم نه شی ویلے ص ۱۳۴۔

کونړ ملا لږ دا او وایه چه دا علماء مقلدین دی او که غیر مقلدین؟ بله داچه ستاسو په نیزد خود صحابه کرامو اقوال معتبر نه دی، بلکه د صحابه کرامو اجماع هم ستاسو په نیزد معتبر نه ده. گوره د جمعے په ورځ په دویم اذان باندی د صحابه کرامو اجماع ده، په یو مجلس کښې دری طلاقه ورکولو نه دری طلاقه واقع کیدلو باندی حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری کښې اجماع نقل کړیده۔ او که د صحابه کرامو دا د واره اجماع گانے څوک نه منی. نو هغه صرف او صرف تاسو یئے. نو د علماؤ چه نوموړه ئے هم نه دی معلوم دا اتفاق ستا په نیزد څنګه حجت شو؟

بل تا په ص ۴۸ لیکلی، چه د اجماع د پاره مأخذ ضروری دے۔ د لته دد ی اجماع مأخذ څه دے؟ کونړ ملا "لِمَ

تقولون مالا تفعلون "

کونړ ملا لیکی" اوکه ته ولې چه څه خوبه دی خپلو

فتوؤ کښې خبر نه یم چه د الله د حکم مطابق به وی اوکنه؟ ص۱۳۲

جواب ۷:- کونړ ملا دا هرڅه ستا دخپل ذهن اختراع

ده- له ځانه سوال جوړوے، او له ځانه جواب، د مفتی

په باره کښې چه ستا کومه نظریه ده، دا صرف ستا ده، بل

چا نه ده، دا ستا د کور خبره ده، او ستا د کور خبری څه

حقیقت نه لری-

## د کونړ ملا شپاړسم تپوس:-

کونړ ملا لیکی" ستا د امام نه چه مخکښې کوم خلق تیر شوی

دی، هغه په کوم مذهب وُو- ص۱۳۵

جواب ۷:- کونړ ملا دا خو بعینه دا سے سوال دے، لکه

ستا مشران رونړه منکرین حدیث چه ئے کوی- دوئ وائی،

چه د صحاح ستة نه مخکښې به حدیث د کوم ځائے نه اغسته،

کونړ ملا دا خو ستا موروثی سوال دے- په میراث کښې درته

رسیدلے دے، خو خیر بیا ئې هم جواب درکوُم-

شاه ولی الله رحمه الله لیکی-

" إن الناس لم یزالوا من زمن الصحابة إلى أن ظهرت

المذاهب الأربعة يقلدون من اتفق العلماء الخ

(عقد الجيد مترجم ص۵)

کونړ ملا تقلید د صحابه کرامو د زمانے نه راروان دے۔ او
یو سړی څوئی هم تری انکار نه دِکړے، البته په د غه
زمانه کښی مطلق تقلید وُو، تقلید شخصی نه وُو، د مذاهب
اربعه د تدوین نه روستو تقلید شخصی شروع شو۔

شاه ولی الله رحمه الله لیکی۔

إعلم أن الناس كانوا في المائة الأولى والثانية غير
مجتمعين على التقليد لمذهب واحد بعينه اه

الانصاف ص۱۴

کونړ ملا ستا دا تشقیق " آیا هغه په غلطه روان وُو۔ او
که په هدایت، ص۱۳۴ ۔ دا ستا خیال دِے ستا گمراهی ده۔ که
ته د دوئ د خطا او غلطئ قائل ئے نو کافر هم ته شوے ۔
مونږ د دی قائل نه یو۔ او س مخکښی تیر شو۔ چه تا سوخو
د عامو صحابه کرامو څه چه د خلفاء راشدینو نه منئ ۔
(۱) د حضرت عمر رضی الله عنه مخالفت په تراویح او طلاق
ثلاثه کښی کوئ، او سینه په جهر ئے کوئ۔ ولے؟
(۲) د حضرت عثمان رضی الله عنه مخالفت د جمعے د پاره اذانِ
ثانی کښی کوئ۔

(۳) په کلوکښې دجمعه نه کولو په مسئله کښې د حضرت علی رضی الله عنه مخالفت کوئ۔

لږ داووايه چه دا خلفاء راشدين په دی مسئلوکښې تاسو ولې پرېښې؟ او د شوکانی وغيره خبرې منئ۔ د دوئ په باره کښې ستاسه خيال دے؟ ولے دوئ العياذ بالله په غلطه وُو؟ اوکه په حقه وُو، اوواقعی چه په حقه وُو۔ نو تاسو ددی هدايت نه مخ اړولے دے؟ هم مو تری پخپله مخ اړولے دے، اوهم تری نورخلق اړوئ۔ فماذا بعد الحق إلاّ الضلال۔

# دکونړملا اولسم تپوس :-

کونړملا ليکی" صبا به د الله تعالیٰ په دربارکښې اوديوبنئ اوستاسو نه به ددی فتوو تپوس کيږی اوکنه؟ ص۱۳۵

جوابؒ :- کونړملا لږ دجرح و تعديل اوګوره، يوراوی به ثقه وی، يو به ورته ثقه وائ، اويل به ورته ضعيف وائ۔ بنيه پوخ مسلمان به وی، اوثقه به هم وی۔ بيا به هم بعضے دهغه په باره کښې وائ،"أيصلی هو" يعنی ولے هغه مونځ کوی؟ يو به ورته اميرالمؤمنين فی الحديث وائ، اويل به ورته وهمی او ضعيف بلکه دجال وائ۔

نوکونړملا نه په دی خبره ایمان لری چه صبا به د الله تعالیٰ په دربار کښی اودریږی، او تپوس به ترینه کیږی، چه تا داخبری ولی منلی؟ او تا په دی خبرو کښی د محمد ﷺ تقلید ولی کړو؟ نو په ایمان ئې وایه ستا به څه جواب وی؟

کونړملا عقل د نصیب شه- داخبره څومره مضحکه تیره شوه- چه تقلید په اجتهادی مسئلو کښی کیږی، په اصول دین یا منصوصو مسئلو کښی نه کیږی. هان! که چرته نصوص متعارض راشی- نو له هغه د لوئ عالم تقلید پکښی کیږی، او دفقی کتابونه هم په دی بڼه دی- نو چه کومه نقشه دی کتابونو پیش کړی، هغه ستا دخپل عادت مطابق افتراء ده-

کونړملا ستاسو دا لامذهبه فرقه کله نا کله داهم وائی چه ماته به صرف د بخاری یا مسلم نه مسئله سیائی- ولی دا پیغمبر علیه السلام فرمائیلی، چه په بخاری یا مسلم کښی وی نو هغه منه او نور مه منه؟

## دکونړملا اتلسم تپوس:-

کونړملا لیکی "چه قرآن و حدیث آسان دی، او که ستاسو داماما نو کتابونه؟ ص۱۳۶

جواب :۔ کونړ ملا د خپلې بدې عقیدې له کبله، دفقې د کتاب وسنت په مقابله کښې متوازي یو بل دین گڼړي، العیاذ بالله۔ نو ځکه دا او تے بوتے وائی۔ کونړ ملا موږ فقهی کتابونه ځان له جدا دین نه گڼړو، او نه جدا دین دے، بلکه د قرآن و سنت تشریح ئے گڼړو۔ بلکه د تفسیر د کتابونو په باره کښې د یو ملحد هم دا نظریه نه ده، چه کښې دا د قرآن په مقابله کښې یو بل قرآن دے۔ بلکه د قرآن کریم تشریح ئے گڼړي، د غه شان دفقے د کتابونو حال دے۔ چه دا احکامو تشریح کوی۔

کونړ ملا لیکی " که نه وائی چه قرآن او حدیث آسان دی، لکن موږ پری نه پو هیږو. الخ ص۱۳۶۔ کونړ ملا دا سوال هم ستا خانه ساز دے، او ستا په جهالت باندې شاهد عدل دے۔ ځکه چه یو شے آسان وی، نو بیا پری د نه پو هیدو سوال نه پیدا کیږی، نو سوال او جواب دواړه د له ځانه جوړ کړیدی۔ او گمراه شوے یې پکښې۔ اللّٰهم زد فزد

## دکونړ ملا نولسم تپوس :۔

کونړ ملا لیکی "کله چه یو آیت یا یو حدیث میلاؤ شی، او ستا د مذهب موافق وی، نو تاسو وایئے چه زموږ

دلیل دادی او مقصود ستاسو عمل کول دی په خپل مذهب باندی، ص۱۳۶۔

جواب :- کوڼړ ملا عقل د نصیب شه، چه مذهب د آیت یاحدیث موافق وی، نو دا عمل په دغه آیت یاحدیث شو، هم د دغے آیت یاحدیث نه مذهب جوړ شو، نو ستا دا خبره چه " مقصود ستاسو عمل کول دی په خپل مذهب باندی " ستا په د ماغو کښې په خلل باندی دلالت کوی، کوڼړ ملا د دماغو علاج د اوکړه۔

کوڼړ ملا لیکی " اوکه دبل امام د مذهب موافق ایت یا حدیث راشی نو بے شماره تأویلونه او محملونه ورلره لټوی. ص۱۳۶

جواب :- کوڼړ ملا نه خو مذهب د کتاب وسنت نه مخالف ګنړ مے، نو ولته د خنګه دا اووے، که آیت یاحدیث د مذهب موافق راشی الخ کوڼړ ملا دا تضاد بیانی ستا د دماغی خلل نتیجه ده، ځاخبره اومنه، د دماغو علاج د اوکړه، که په کوڼړ کښې دا سے ډاکټران نه وی۔ ځکه چه کوڼړ خو طالبانو ستاسو د ناپاکه وجود نه دا سے پاک کړو، لکه د سپی جوته کړے لوښے چه اوه ځله په اوبو اووینځلے شی۔ اوګویا ټولو ته دا اعلان اوشو، چه " اخرج فانک رجیم وان علیک الخ اوس هائی کوڼړ کانفرنسونه کوئی، او خاوره

په سرا چوئ۔ یوځل نیم تاسو بیا هم څه کمښه کړي وُو، خو داسے ئے برابر کړئ، چه ستاسو نسلونه به تل یاد لري، او هم که طالبان په خوب کښې ویښ نو هم به له یرے بګنیږی۔ نو پیښبور کښې داسے څه واکټران شته، امید دے چه ستیکړه به د اوشی۔ او یا بیا د تعصب او ضد پټئ له ستر کو نه پرانیزه، نو سم دم مسلمان به شے۔ ع

مراد ما نصیحت بود و گفتیم حوالت با خدا کردیم و رفتیم

# دکونړ ملا دشبهاتو او وسوسو جوابونه

اوس څه جوابونه ذکر کوو م د هغه شبهاتو کوم چه کونړ ملا د اهل السنة والجماعة د دلائلو په مقابله کښې پیش کوی، او د ساده ذهن عوامو او طلباء کرامو ذهنونه پری خرابوی، او د غه شان د " الذی یوسوس فی صدور الناس " په سنت باندې عمل کوی۔

## اوّله شبهه :-

اهل السنة والجماعة د آیت۔

" فاسئلوا اهل الذکر ان کنتم لا تعلمون "

نہ د تقلید پہ جواز باندی استدلال کوی، کونړ والی ملا چہ دا
آیت د یہود و پہ بارہ کښی نازل شوے، ولکہ تفسیر ابن جریر
او گورہ صـ۱۳۷

جواب :- کونړ ملا عقل د نصیب شہ پہ صـ۲۲ دے دا احبار
ورھبان آیت پہ مسلمانانو چسپان کولو، او وئیل دے "دا اتفاقی
قانون دے چہ العبرۃ لعموم اللفظ لا لخصوص السبب" صـ۲۲
اوّل خو تا ھغلتہ د متفقینو نوم نہ دے نیکلے، بلہ دا چہ
ستا پہ نیزد د صحابہ کرامو اقوال حجت نہ دی، نو د امتیانو
اقوال او اتفاق ستا پہ نیزد څنگہ حجت شو، خو خیر دا ستاسو
پوخ عادت دے، چہ د خپل مطلب د پارہ بیا ھرڅہ منی۔
نو د لتہ ولے آیت پہ عموم باندی نہ بر دے؟ او سرہ د دی
چہ د ابن جریر طبری رحمہ پہ دغہ تفسیر کښی دا اقوال ھم شتہ

(۱) لمّا نزلت فاسئلوا اھل الذکر ان کنتم لاتعلمون
قال علی نحن اھل الذکر"

(۲) قال ابن زید فی قولہ فاسئلوا اھل الذکر ان کنتم
لاتعلمون قال أھل القرآن، والذکر القرآن و
قرأ: إنا نحن نزلنا الذکر وانالہ لحافظون اھ

: تفسیر ابن جریر طبری (۱۷-۵) سورۃ الانبیاء

نوکونړ ملا ھمیشہ د خپل عادت مطابق "لاتقربوا الصلاۃ"

اخلی، او " وانتم سکاری " پرېږدی - بلہ دا چہ کونړ ملاخوله
چہ ستانہ د مسئلے تپوس کوی، نو هغه تا یهودی گڼړی او کہ عیسائی؟
بیّنوا۔

## د کونړ ملا دویمہ شبهہ او وسوسہ :-

کونړ ملا لیکی " کہ دا او منم چہ آیت عام دے، نو بیا وایم
چہ پہ دی آیت کښی اللہ تعالیٰ فرمائی (إن کنتم لا تعلمون)
یعنی کہ تہ نہ پوهیږے - ص ۱۳۷

جواب :- کونړ ملا عقل د نصیب شه - دا خبره م څو څو
ځله ذکر کړه، چہ دا ضروری نہ دہ چہ یو سړے عالم وی، او
پہ هره هره مسئلہ باندی پوهیږی، هغوره صحابہ کرامو
بہ دیو بل نہ تپوس نہ کول، نو ولے ستا د دوئ پہ باره کښی
څه خیال دے؟ د غه شان تابعینو بہ د صحابہ کرامو نہ
تپوس نہ کول، او ګوره مصنف عبد الرزاق او ابن ابی شیبة،
نو ستا د لتہ څه خیال دے؟ امام ترمذیؒ بہ د امام بخاری
نہ تپوس نہ کول، او ګوره سنن ترمذی۔ ولے ستا دا امام
ترمذیؒ پہ باره کښی څه خیال دے؟ ولے دا امی محض وُو
نو کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، دا سے کید یشی، او کید ے
څه چہ دا سے دی - چہ پہ بعضو مسئلو کښی ورنہ علم وی

او په بعضو کښې نه وی، او په هغې کښې تپوس اوکړی، نو تپوس د علم منافی نه دے۔ او دغه تپوس تقلید دے، نو تقلید او علم دواړه جمع کیدے شی۔ جمع ئې منعه نه ده، ولے کونړ ملا ستا په خپل ځان دا ګمان دے، چه ګنی ته په هره هره مسئله پوهیږے، ځکه تقلید نه منے۔ خو دا خبره په ډاګه شوه، چه ته هسے خوا نکار کوے، خو تقلید ضرور کوے۔ خصوصًا د شوکانی۔

## د کونړ ملا دریمه شبهه او وسوسه:-

کونړ ملا لیکی آیت کښې (اهل الذکر) لفظ راغلی دی یعنی عوام خلق به د علماؤ نه تپوس کوی ص۱۳۷۔

جواب:- کونړ ملا ستا په نیز د خو په عامی باندی هم تقلید نشته نو بیا؟ بله دا چه ته په ص۱۳۶ باندی وائے "قرآن وحدیث آسان دی" نو کله چه آسان شو، نو د تپوس څه مطلب شو؟ کونړ ملا مخکښې لیکی" او هغوئ به د الله او د رسول د حکم تابع کیږی۔ ملا او عالم به صرف واسطه جوړیږی ص۱۳۶۔

جواب:- کونړ ملا عقل د نصیب شه، مونږ هم دا وایو چه په اجتهادی مسئلو کښې مجتهد صرف واسطه وی

اوحکم دادلہ اریحہ نہ چہ شرعی دلائل دی، ثابت وی، حکم دشریعت وی۔ مجتهد لہ ځانہ دین نہ جوړوی، بلکہ دین ښوونکے وی۔

کوثر ملا لیکی "دائي نہ دی وئیلی" فاسئلوا اهل الرأی" ۔ ص۱۳۸۔

جواب :۔ کوثر ملا دآیت " لعلمہ الذین یستنبطونہ منهم" نہ هم دا مجتهدین او اهل الرأی مراد دی۔ کوثر ملا عقل د نصیب شه، آیت بے ځایہ تہ استعمالوے مونږ نہ۔

## دکوثر ملا څلورمہ وسوسہ

امی سړی بہ دچا نہ تپوس کوی، آیا دمړو نہ بہ تپوس کوی، اوکہ د ژوندو نہ؟ دمړی نہ خو تپوس نشی کیدے نو د ژوندو نہ بہ تپوس کوی، نو دا سړے نہ حنفی شو نہ شافعی الخ ص۱۳۸۔

جواب، کوثر ملا تا پہ ص۱۳۰ باندی لیکلی" اکثر خلق دین پہ څلورو مذهبونو کښی منحصر گنی، اوحال داچہ ډیری مسلی حقی شتہ د څلورو مذهبونو نہ بهر لکہ د امام بخاری او سفیان ثوری، اوحسن بصری، ابن سیرین، قتاده، عطاء بن ابی رباح، اوزاعی، عبدالله بن مبارک اوخصوصًا د امام اسحق بن

راهویه او ابن حزم او داؤد ظاهری رحمهم الله او

کوم ملا دا حضرات چه تاذکر کړه، دا ژوندی دی او کړه دی، دلته درته داخیله وسوسه ولی یاده نه شوه؟ چه له دوی نه خو تپوس نشی کید ے۔ کوم ملا عقل د نصیب شه، د مجتهدینو د تقلید دا معنی نه ده، چه کنی د دوئ نه تپوس کیږی، بلکه د دوئ اجتهادی اقوال اغستے کیږی،

شاه ولی الله رحمه الله لیکی۔

"واذا تعین الاعتماد علی أقاویل السلف فلا بد من أن یکون اقوالهم التی یعتمد علیها مرویة بالإسناد الصحیح اومدونة فی کتب مشهورة وأن یکون مخدومة بأن یبین الراجح من محتملاتها وتخصیص عمومها فی بعض المواضع ویقید مطلقها فی بعض المواضع ویجمع المختلف فیها ویبین علل احکامها والا لم یصح الاعتماد علیها ولیس مذهب فی هذه الازمنة المتأخرة بهذا الصفة إلا هذه المذاهب الأربعة إلا المذهب الإمامیة والزیدیة (کالشوکانی ومتبعوه) وهم اهل البدعة لا یجوز الاعتماد علی أقاویلهم اه عقد الجید مترجم (ص ۵۵-۵۶

کوم ملا د شاه ولی الله د دے بیان نه په مذاهب اربعه کښی د حصر وجه هم معلومه شوه، او تاچه د کومو حضراتو نومونه

لیکلی، دد وئ نه اقوال مرتب شوی، نه پری کار شوی دے
خو داحنافو په ضد او د بهمتیٔ کښی دوه محکښی یے، چه د مرتب
او مدون مذاهبو په مقابله کښی غیر مرتب او غیر مدون مذهبونه
وړاندی کوی۔

کونړ ملا د مجتهد یئو اقوال اغستل ددی دا مطلب نه دے
چه کښی د دوئ نه تپوس کیږی، او کوم نبی کریم صلی الله علیه
وسلم وفات دے۔ او احادیث ئے معمولی بها دی، خوستا په شان
یو عقلمند هم دانه دی ویلی، چه ما د پیغمبر علیه السلام
نه تپوس او کړو، نو کونړ ملا خبره دتپوس نه ده، بلکه د
اقوالو دمنلو ده، ځکه عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی،

"من کان متبعًا فلیتبع من مضی اھ عقد الجید مترجم
للشاه ولی الله رحمه الله ص۵۹

او په سنن کبری کښی دی۔

"عن أبی لبابة أن ابن مسعود رضی الله قال ألالا یقلدن
رجل رجلًا دینه فان آمن آمن وان کفر کفر فان کان
مقلدا لا محالة فلیقلد المیت ویترك الحی فان الحی لاتؤمن
علیه الفتنة اھ سنن کبری للبیهقیؒ (۱۰ / ۱۱۶)

یعنی څوك دِ دچا دا سے تقلید نه کوی۔ که هغه مسلمان وی بے
به مسلمان وی، او که هغه کفر اختیار کړی۔ دے دِ هم کفر اختیار

کړي، هاں! که څوك لازمًا تقليد کول غواړي، نو د تللو (مړو) تقليد دې کوي، او ژوندي دې پرېږدي، ځکه چه ژوندي په فتنه کښې مبتلا کيدېشي - نو کوم ملا د صحابه کرامو نه ځان زيات هوښيار ګڼړه - صحابي خو وائي چه د مړو تقليد دِ کوي، د ژوندو نه - او کوم ملا وائي نه د ژوندو به کوي د مړو نه،

**تنبيه :-** بعضې بې مذهبه وائي، چه د تقليد لفظ چرته ثابت نه دے، او په اتباع او تقليد کښې فرق دے. عبد الله بن مسعود رضي الله عنه دا دواړه لفظونه استعمال کړي. د سنن کبرىٰ په دې حديث کښې ئے د تقليد لفظ استعمال کړے، او د شاه ولي الله رحمه الله په حواله "من کان متبعًا فليتبع من مضى" عقد الجيد ص۵۸ کښې ئے لفظ اتباع ذکر کړے - د دې نه معلومه شوه، چه د دواړو مطلب يو دے، لکه مخکښې دا بحث تېر شويدے

## د کوم ملا پنځمه شبهه :-

قرآن کريم کښې دي " أطيعوا الله وأطيعوا الرسول وأولى الأمر منكم" دلته د اولى الأمر نه علماء مراد دي - او دآيت د تقليد دپاره دليل دے-

کونړ پری د خلقو په زړونو کښی داسے وسوسه اچوی، والیٔ داایت رد دے په تقلید باندی، د ډیرو وجهانو نه، (۱) اول داچه د "اولی الأمر" سره اطیعوا نشته ص۱۳۸

جوابؔ :- دکونړ ملا ګوټیٔ د علم نحو نه داسے خالی ده لکه د خوس د خکرو نه، عاجز ته دا پته نشته، چه عطف څه کارکوی؟ دکونړ ملا د دے وسوسے په کمزوریٔ د نحو میر یو طالب هم پوهیږی- د عطف په وجه سره تبول په یو حکم کښی شو، او مطاع شو-

## دکونړ ملا تضاد ۶-

د دے پسے کونړ ملا لیکی" د مشرانو خبر منل شته لکن دالله اورسول د حکم لاندی ص۱۳۸

جوابؔ :- دکونړ ملا داول بیان نه معلومه شوه چه چه اولی الأمر مطاع نه دی، محکه چه د دویٔ سره "اُطیعوا" نشته او دلته وائی منل ئے شته- او دا تضاد نه دے نو څه دی؟ باقی داچه د علماؤ خبره دالله تعالیٰ اودرسول د حکم لاندی منل، نو مونږ وایو چه د علماؤ خبره به هله منلے کیږی چه د ادله اُربعه یعنی کتاب الله، یا سنت، یا اجماع امت یا د قیاس نه ثابت وی- کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، دا

هیڅوک، نه وائی، چه د مجتهد یوا طاعت ځان له مستقل
اطاعت دے، بلکه د دوی اطاعت هله دے، چه په ادلهٔ
اربعه سره ثابت وی، او کله چه د دوی خبره د ادلهٔ اربعه
نه ثابته وی نو د هغې مثل هم د الله تعالیٰ او رسول حکم مثل
دی، عالم یکښې واسطه شوه، کونړ ملا هم دغه خبره ده چه

گفته او گفتهٔ الله بود  گرچه از حلقوم عبدالله بود

کونړ ملا وائی" بیا د نبی علیه السلام او د دوی په اتباع
کښې څه فرق شو، چه د دوی خبره هم مطلقاً منئی صـ ۱۳۸
جواب :- کونړ ملا چه د ادله اربعهٔ ثابته وی نو
دا هم د شریعت اتباع ده۔
کونړ ملا وائی چه د نبی علیه السلام خبره خو تا سو
په تأویلونو خرابه کړی صـ ۱۳۹
جواب :- کونړ ملا دا د دروغ او وئیل- تأویل هله
کیږی. چه یو حدیث یا د کتاب الله نه خلاف وی یا
د حدیث مشهور نه۔

## دریمه وجه :-

کونړ ملا وائی، دریمه وجه دا ده
چه د لله د اُولی الامر نه حکام مراد دی، صـ ۱۳۹
جواب :- کونړ ملا عقل د نصیب شه، د واړه خبری

ثابتے دی، دواړه اقوال شته او څه تعارض پکښې نشته

کونړ ملا وائي، که علماء پکښې داخل شي، نو د هغوی

د معروف تابعداری به کولے شي، نو بیا خو تا سو په تلفیق

کښې واقع شوئ ص۱۳۹

جواب :- شاید کونړ ملا، ستا نه هم د دغه رنګه خبرو

امید دے، افسوس چه تا له د تلفیق معنی هم نه درځی

د تلفیق په مطلب هم دسره پوهیږے نه۔

تپوس :- کونړ ملا تلفیق څه ته وائي، او د

کتاب وسنت په رڼا کښې ئے څه حکم دے؟ تا ورته په ص۱۴۱

هم ناروا ویلی دی، ستاسره د دی په عدم جواز د کتاب

وسنت نه څه دلیل دے؟

کونړ ملا لیکی چه علماء پکښې داخل شی نو بیا به د هغوی

د معروف تابعداری کولے شی۔ نو کونړ ملا ستا څه خیال

دے که یواځے حکام تری مراد واغستے شی، نو د هغوی

به د معروف اتباع نه کیږی؟۔

کونړ ملا عقل دِ نصیب شه، دواړه جمع کیدیشی،

چه هم عالم وی او هم حاکم وی، لکه په کونړ کښې طالبان،

چه ستاسو مفسدینو ته ئے کلک درپسر کړے۔ او اوی

وئیل "اخرج فانك رجیم وان علیك اللعنة الی یوم الدین"

اوس ځائ په ځائ د "هائ کورټ" چټې اوباسئ، او "هائ کورټ" کانفرنسونه منعقد کوئ.

کوثر ملا ليکي "أولى الأمر" خو کله خطاء کيږي هم. ص ۱۳۹

جواب: دکوثر ملا مطلب داد ے، چه که داولی الأمر اطاعت هم لازم شي، نو دوئ خو خطا کيږي هم. افسوس چه کوثر ملا ته د بخاري شريف دا حديث،

"عن عمر بن العاص انه سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا حكم الحاكم فاجتهد فأصاب فله اجران واذاحكم فاجتهد ثم اخطاء فله أجر اه صحيح البخاري باب اجر الحاكم إذا اجتهد فأصاب او اخطأ (۲-۱۰۹۲) واللفظ للبخاري.

نه دے معلوم کنې داسے او تے بوتے به ئے نه وے.

او سيف الدين آمدي رحمه الله ليکي.

"اتفق اهل الحق على أن الإثم محطوط عن المجتهدين في الاحکام الشرعية اه الاحکام (۴/۲۱۲)

کوثر ملا که تفسير د ويلے وے، نو دومره غلطئ به درنه نه کيدے.

## دکوثر ملا څلورمه وجه؟-

کوثر ملا ليکي "چه تاسو خو ديو ملا په تهولو خبرو پسي

روان یئ، او آیت کښې د اولی الأمر جمع ده ص ۱۳۹

جواب ۷: کونړ ملا تقلید په اجتهادی مسئلو کښې کیږي او چه دچا په نیز د کوم مذهب راجح وي، هغه اخلي، ستا په شانتے نه- ته خو چاله د ترجیح حق هم نه ورکوے-

**تنبیه**: کونړ ملا تر دې پورې د علماؤ د خبرو د منلو نه انکار کوؤ، او د لته ئے او منله چه منل ئے شته خو د توله بواځے د یو عالم نه- د خیره سره کونړ ملا لږ لږ مسلما نیږي- ع اور کھل جائیں گے دو چار ملاقات کے بعد

کونړ ملا لیکي " فان تنازعتم فی شیئ فردوه إلی الله والرسول ان کنتم تؤمنون بالله والیوم الآخر الآیة ص ۱۳۹

جواب: کونړ ملا دا هله دي، کله چه حکم په قرآن کریم کښې یا حدیث کښې موجود وي، کښې بیا به د مجتهد اجتهاد اغستے شي. لکه د حضرت معاذ رضی الله عنه حدیث په دې باندې دلیل دے.

"إن رسول الله صلی الله علیه وسلم لما أراد أن یبعث معاذا إلی الیمن قال کیف تقضی إذا عرض لك القضاء قال اقضی بکتاب الله قال فان لم تجد فی کتاب الله قال فبسنة رسول الله صلی الله علیه وسلم قال فان لم تجد فی سنة رسول الله ولا فی کتاب الله

قال اجتهد برأی ولا آلو الحدیث سنن ابی داؤد باب
اجتهاد الرأی فی القضاء (۲-۱۴۹
ددی حدیث سند اګر چه کمزورے دے ، خو شواهد ئے
شته ، بل ددی حدیث په باره کښی اعلاء السنن کښی دی.
"ثم قال ابن القیم قال ابوبکر الخطیب قد قیل ان عبادة
بن نسی رواه عن عبد الرحمن بن غنم عن معاذ و
هذا اسناده متصل ورجاله معروفون با لثقة على
أن اهل العلم نقلوه واحتجوا به فوقفنا بذلك على
صحته عندهم کما وقفنا على صحة قول رسول الله
صلی الله علیه وسلم "لا وصیة لوارث" وغیره المعرفة
عند اهل العلم الخ اعلاء السنن (۲۰-۱۹۸)
نوکونړ ملا عقل د نصیب شه - د مجتهد د اجتهاد د منلو
نه سیوا به لاره نشته ۔

## دکونړ ملا شپږمه وسوسه :-

قرآن کریم کښی راځی " لعلمه الذین یستنبطونه منهم "، او
دا په تقلید باندی دلالت کوی - ځکه چه که د مستنبط او
مجتهد خبره او نه منلے شی ، نو بیا مجتهد ته د ورلو
فائده څه شوه ، کونړ ملا په دی باندی داسے شبهه

وارد وی، او دخلقو په زړونو کښې وسوسې اچوی. لیکی، تاسو خود تقلید د وجوب قائل یئے، نفس جواز خو تا سو نه وائیے ص۱۲۱

جواب :- شکر چه کونړ ملا د تقلید د نفس جواز خو قائل شو۔ ع کفر ٹوٹا خدا خدا کر کے۔

تر او سه خو ئے په تقلید د احبار ورهبان آیاتونه چسپانول.

کونړ ملا لیکی" دویم دا چه په دی آیت کښی دا شته چه تاسو تقلید اوکړئ؟ دا نشته. ص۱۲۰

جواب :- کونړ ملا عقل د نصیب نشه. که د مجتهد تقلید اونشی نو بیا مجتهد ته د وړلو فائده آخر څه شوه! افلا یتدبرون القرآن ام علی قلوب اقفالها" سورة محمد۳

دالله پاك ارشاد دے" فإنها لا تعمى الأبصار ولكن تعمى القلوب التي في الصدور ا هسورة حج

معلومیږی د کونړ ملا هم په زړه تالے لګیدلی دی، او هم ئے د زړه سترګی ړندی دی۔

کونړ ملا لیکی" دی آیت کښی الله تعالیٰ دمشرانو صحابه کرامو صفت بیان کړی چه هغوی مصلحت پیژنی. ص۱۲۰

جواب :- معلومیږی د کونړ ملا په نیزد دا آیت دصحابه کرامو سره خاص دے، او نن صبا پری عمل نشی کیدے ځکه چه صحابه کرام خو شته دے نه. او حال دا دے چه

کوږ ملا کله دیهودیانو په باره کښې نازل شوی ایا تونه په مسلمانانو باندې چسپان کوی، نو هلته چغې وهی چه "دا اتفاقی قانون دے چه" العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص السبب" [۲۲]

ولے کوږ ملا د لته درنه دغه اتفاقی قانون هیر شوید ے.

اوکه په اتفاق کښې نفاق او بې اتفاقی پیدا کول غواړے، او هم دا ستاسو مقصد دے، کوږ ملا دا دځانه تفسیر ونه ته کوے اوکه مونږ ه؟ لږ انصاف پکار دے، خو افسوس چه ستاسو په نیزد د انصاف پیمانے بدلے دی. هر هغه کار چه تاسو ئے کوی هغه عین انصاف گنړئ، او چه بل ئے کوی هغه عین ظلم گنړئ. ولے کوږ ملا ستا په آیت "ویل للمطففین" باندې ایمان نشته. معلومیږی چه نشته، ځکه چه عمل دِ د دغه آیت نه خلاف دے، کوږ ملا په دی آیت کښې د تقلید اثبات ته اشاره ده، اوکه نه د غه اشاره عدم تقلید ته اړوے

نو بیا به مونږ او وایو چه ؏

گر نبیند بروز شب پره چشم　　چشمهٔ آفتاب را چه گناه

کوږ ملا لیکی، او مقلدین تحقیق نه کوی، ص [۱۴۰]

جواب :- کوږ ملا که تحریف تحقیق وی، نو دغه تحقیق د ناته مبارک وی.

## دکوږ ملا اوومه وسوسه :- قرآن کریم کښې

راځی" ولینذروا قومهم" یعنی علماء دِخلق د الله تعالی
د نافرمانئ نه یروی۔ نو ددینه دا معلومه شوه، چه خلق
به د دوئ خبره منی، کنی بیا د انذار څه معنی شوه؟ او دا عین
تقلید دے۔ کونړ ملا پدی باندی دا سے وسوسه اچوی" په
دی آیت کښ خودا مسئله ده چه هر یو قوم به دخپل عالم خبره
منی ص ۱۴۰۔

جواب:۔ دکونړ ملا دا خیال دے، چه دیو قوم عالم بل
قوم ته د الله دین نشی بیا نولے، بلکه هر قوم ته به خپل خپل
عالم دین بیا نوی۔ او دکونړ ملا دا خبره د اسلام د دائرے
نه بهر ده۔ بیا خو کونړ ملا ته په پیښور کښ څه لګیا دے؟ څه
چرته په کونړ کښ خلق ګمراه کوه۔ بله دا چه بیا به هر قوم د
جدا جدا پیغمبر مطالبه کوی۔ او وائی به چه مونږ ته خو ستا
دقوم نه پیغمبر پکار دے۔

که دکونړ ملا دا وسوسه او منلے شی۔ نو بیا به په دنیا
کښ لوی فساد پور ته شی۔ او کونړ ملا هم دغه غواړی، ځکه
چه د ده مقصد هم صرف تخریب دے تعمیر نه دے، کونړ
ملا که ستا په شان ددی امت دا سے نور هم خیر خواهان
پیدا شو، نو خدائے دِ خیر کړی۔ کار امت تمام خواهد شد
کونړ ملا مخکښ لیکی" تا سو خو په ټول امت دامام

ابوحنیفہؒ تقلید ضروری کړې دی ۔ او منذرین تا سو منحصر کړیدی په څلورو امامانو کښې ص۱۴۰

جواب :۔ دکونړ ملا دالزام تښی الزام دے ، موږه چرته یو مالکی ، یا شافعی یا حنبلی ته دا بلنه نه ده ورکړې چه ته خپل مذهب پریږده ، او زموږ مذهب ته راواوړه ، داخبره به تر قیامته څوك ثابته نه کړی ۔ هاں دا ضرور وایو چه د غیرمقلدینو پشان بی مذهبه کیږه مه ، ځکه چه "اللامذهبية قنطرة اللادينية" او ددی غوئے تا سو دکونړ ملا په بیان کښې اولید ے خصوصًا دکونړ ملا په اوومه وسوسه کښې ۔

کونړ ملا لیکی " او آیت کښې اشاره ده بے شماره علماؤ ته ص۱۴۱

جواب :۔ کونړ ملا د آیت هغه حصه اوښایه چه په هغے کښې دا اشاره وی ، او بله دا چه ته خود علماؤ خبری دلیل نه گنړے ۔ ص۱۴۱

کونړ ملا لیکی نو په دی آیت کښې په تقلید شخصی رد دی

جواب :۔ شاباسے کونړ ملا ۔ د تقلید شخصی نه انکار کوے خو مطلق تقلید دِ اومنلو

**تنبیه** :۔ کونړ ملا د خپره اوس لږ لږ مسلمانیږی مطلق تقلید خوئی اومنلو ۔ اگرچه د تقلید شخصی نه هم صرف هسے

پخوله انکار کوی۔ ګني دا هم مني، ګوره په ص۱۴۰ باندې دوی هم اقرار کوي "خصوصًا دامام اسحق بن راهویه او ابن حزم الخ" مصیبت دا دے چه دکونړ ملا خبره زر هېرېږي، ځکه چه مشهوره خبره ده۔ " دروغ گو را حافظه نباشد "

دکونړ ملا په سترګو کښې خلل دے، هر څه ورته الټه ښکاري دکوم آیت نه چه تقلید شخصي ثابتیږي، دے وائي دا په تقلید شخصي رد دے، کونړ ملا د سترګو علاج به دِ کړے وے، نو په دې خبط کښې به نه مبتلا کیدے۔

کونړ ملا مخکښې بیکي:" او دا ټګه رد دې په دې چه څلورو انحصار په څلورومذهبونو کښې کوي۔ ص۱۴۱

جوابٌ :۔ معلومیږي چه کونړ ملا مذهب مني، خو دا مشهور څلور مذهبونه او خصوصًا حنفي مذهب نه مني، کیدے شي، دا د طالبانو سره د دښمنۍ په وجه وي۔ ځکه چه طالبان حنفیان دي۔ او طالبانو په کونړ کښې د دوئ د فساد اډې ختمې کړې، کیدېشي دغه وجه ئے وي، والله أعلم۔

باقي پاتے شوه په څلورو مذهبونو کښې د انحصار خبره نو د شاه ولی الله رحمه الله د کتاب عقد الجید په حواله سره دا بحث مخکښې تیر شو۔ دوباره د ذکر کولو سره به هسے خبره اوږده شي۔

## دکونړ ملاانتمه شبه :-

ترمذی کښې حدیث دے " اقتدوا بالذین من بعدی أبی بکر وعمر اه یعنی څما نه روستو دشیخینو اقتداء کوئ. او د اقتداء او تقلید او اتباع ټولو یو مطلب دے، او دا خبره کونړ ملا هم منی او لیکی چه " العبرة لعموم اللفظ الخ ص۲۳ نو کله چه د شیخینو تقلید جائز شو، نو د نورو مجتهدینو تقلید هم جائز شو، کونړ ملا په دی باندی دخلقو په زړونو کښې دا سے وسوسے اچوی، لیکی " اقتداء د ابوبکر وعمر په څه کښې کولے شی، ایا د هغوئ ټولی خبری به منلے شی او کنه هغه چه ده دلیل والا وی. ص۱۴۲

جواب :- کونړ ملا د شیعه کانو دخوشحالولو د پاره په حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضی الله عنهما باندی دا الزام لګوی، چه کنی دوئ به بی دلیله خبری کولے، إنا لله - کونړ ملا ته او ګوره، چه خپله خو یوه خبره هم بی دلیله بزعم خویش نه کنړی، لیکن د خلفاء راشدینو خبری بی دلیله ګنړی، دا دے دغیر مقلدینو په زړه کښې د صحابه کرامو احترام.

کونړ ملا مخکښې لیکی " د ابوبکر صدیق او عمر رضی الله عنه ډیری فتوی دی چه هغه تاسو نه دی منلی ص۱۴۲

جواب :- کونړ ملا مخکښې لیکلی چه د صحابه کرامو په وخت کښې تقلید نه وو. او دلته لیکی، چه شیخینو به فتوی ورکولے.

او دا هم وائي چه ئې دليله خبرې به ئے کولے، بله خبره داده چه امام ابوحنيفه رح فرمائي، چه کله د پيغمبر عليه السلام نه حديث راشي، نو په سرسترګو منظور دے، او که د صحابه کرامو اقوال وي، نو په ديکښې يو قول اخلم۔

علامه ابن حجر الهيثمي المکي رحمه الله په "الخيرات الحسان في مناقب النعمان" کښې ليکي۔

"قال ابن المبارك رح رواية عنه إذا جاء الحديث عن رسول الله صلى الله عليه وسلم فعلى الرأس والعين وإذا جاء عن الصحابة اخترنا ولم نخرج عن أقوالهم وإذا جاء عن التابعين زاحمناهم اه الخيرات الحسان ص۶۹ وعقود الجمان ص۱۷۲

دا خبره ښو څو ځله ذکر شويده چه تقليد صرف په اجتهادي مسئلو کښې کيږي، نو که په يوه مسئله کښې امام صاحب رحمه الله ديو صحابي قول پرې بنے وي۔ نو د بل صحابي قول له به ئې ترجيح ورکړې وي، او اغستے به ئے وي، هرڅنګه چه وي د صحابه کرامو د اقوالو نه بهر نه اوځي، ليکن هغه کس چه د صحابه کرامو اقوال د سره حجت نه ګڼړي، هغه له په دا سے اعتراض کولو شرم پکار دے، کونړيان غير مقلدين پخپله د صحابي قول حجت نه ګڼړي، او په بل اعتراض کوي، هغه د پښتو متل

دے. وائی "غلبیل رایا سیدو کوزی تہ لیؑ وی پتا کینی دوسوری
دی. کونړ ملا ھم ھغہ د غلبیل کانہ کوی۔

کونړ ملا لیکی" نبی علیہ السلام خو پہ دیکبنی د ابوبکر و عمر
رضی اللہ عنہما تخصیص کړی دی، او تا سوخو د صحابہ کرامو
تقلید ناروا گنړی، کما فی ردالمحتار ص۱۴۲۔

جواب :- کونړ ملا پہ ردالمحتار باندی دروغ وائی، د صحابی
داقوالو پہ بارہ کبنی د امام صاحب رحمہ اللہ خبرہ د "الخیرات الحسان"
پہ حوالہ سرہ تیرہ شوہ۔

دویمہ داچی کونړ ملا تاخو پہ ص۱۳۰ باندی صرف د اسحٰق
بن راھویہ او ابن حزم او داؤد ظاھری تخصیص کړیدے، نو
ستا دا تخصیص د پیغمبر علیہ السلام د تخصیص پہ مقابلہ کبنی
څہ حیثیت لری، کونړ ملا ولی خلق گمراہ کوے۔ او شیطان
خوشحالوے؟ "کبر مقتا عند اللہ أن تقولوا ما لا تفعلون"،
کونړ ملا معلومیږی چہ پہ "ویل للمطففین" آیت باندی
ایمان نہ لرے۔

کونړ ملا مخکبنی لیکی" تا سوخو تقلید پہ څلورو مذھبونو
کبنی منحصر گنئ، تا سوخو دیو صحابی تقلید ھم اونکړو۔ ص۱۴۲

جواب :- د انحصار وجہ د شاہ ولی اللہ رحمہ اللہ پہ
حوالہ سرہ مخکبنی تیرہ شوہ۔ باقی د صحابہ کرامو تقلید، نو

کونړ ملا ته خو تقليد ته شرک وايي، او نور خلق ترې منع کوي، نو په نورو خلقو ولې الزام لګوي. باقي مونږه د صحابه کرامو تقليد کوو او کړو؟ نو دا چه ته د فقهي کتابونو او شروحو مطالعه اوکړې، نو حقيقت به درته معلوم شي که څه اوس هغه ټولې مسئلې ذکر کول شروع کړم، په کومو کښې چه د صحابه کرامو تقليد شويدې، نو دا به ځان له يو مستقل کتاب جوړ شي. د امام صاحب رح حواله اوس وړاندې تيره شوه، چه څه د صحابه کرامو په مختلفو اقوالو کښې يو قول له ترجيح ورکوم. او د صحابه کرامو د اقوالو نه بهر نه اوځم. او کونړ ملا ته خوئې هډو د سره حجت نه ګڼړې

کونړ ملا نهمه شبه ذکر کړيده، خو څما په علم کښې نشته چه چا د حديث "اقتدوا بي ويا تم بكم من بعدكم" نه د تقليد په اثبات باندې استدلال کړے وي. لدې وجې نه څه پرې څه نه ليکم. البته د کونړ ملا دا خبره چه "مقلدين وائي چه د صحابه کرامو تابعداري نشته. ص۱۴۳ خالص دروغ دي. د امام ابو حنيفه رح قول مخکښې ذکر شو.

کونړيان غير مقلدين پخپله د صحابه کرامو اقوال حجت نه ګڼړي. شوکاني په خپل کتاب "ارشاد الفحول" کښې ليکي.

ذهب الجمهور أن أقوال الصحابة ليست بحجة

على الصحابة ومن بعدهم من التابعين وتبع تابعيهم ص٢١٣

هذا الكلام من مسائل الاجتهاد اما اذا لم يكن منها فليس مما نحن بصدده، والحق أنه ليس بحجة، فإن الله لم يبعث إلى هذه الأمة الا محمدًا صلى الله عليه وسلم وجميع الأمة مأمورة باتباعه ولا فرق بين الصحابة ومن بعدهم فكلهم مكلفون باتباع السنة كذا في ارشاد الفحول ص٢١٤

کوړ ملا ستا په نیز د خو په صحابي او غیر صحابي کښې هډو څه فرق نشته، نو ته په کوم خوله په نورو اعتراض کوے؟

کوړ ملا لیکي تا سو همیشه داخبره کوئ که دهر یو عالم او مثلی شي، بیا اتباع دخواهشی راځي، مونږ وایو مونږ مه دهوکه کوئ اتباع دخواهشی داده، چه یو ملا تاسو رانیولی دی۔ ص٢٤٤

جواب :- کوړ ملا که داخبره وی نو بیا تا په ص١٣٠ د اسحق بن راهویه وغیره تخصیص دکوم خواهش په بنیاد باندی کړیدے؟ ولے داکوړے نفساني خواهش نه دے؟

بیکی" ځان نه ستړی کوی چه د تحقیق حق وکړی ص۱۲۱ -

کوټه ملا که دیوبل خبری را جمع کول تحقیق وی، نو دا تحقیق د تاته مبارک وی، موږ ه دا تحقیق نه گڼو، بلکه دیته د پښتو په محاوره کښی "په پردو غولو تیزونه اچول" وائی.

کوټه ملا لیکی درخص العلماء اتباع صحیح نه ده ص۱۲۲

جواب کوټه ملا عقل د نصیب شه، موږ چه دا وایو چه که دهی یو عالم خبره او منلے شی، نو اتباع د خواهشی به را شی. هغه هم دغه درخص العلماء سره متعلق خبره ده، بله نه ده، تا پری هسے دخپلے کج فهمئ په وجه اعتراض کړیدے.

## کوټه ملا د رخص العلماء تصویر دا سی پیش کوی

هغه دا چه یو عالم په یوه مسئله کښی اسانی پیدا کړی، او بل عالم په بله مسئله کښی، او هیڅ دلیل ورسره نه وی. ص۱۲۲

جواب :- آفرین کوټه ملا، که ستا غوندی دامت دا سے نور خیرخواهان خدائ مکړه پیدا شو نو "کار امت خراب خواهد شد"

عاجزته درخص العلماء صورت نه دے معلوم، او نګیا دے. تبصره پری کوی، ځان هم گمراه کوی او نور هم گمراه کوی.

لعنة الله علی شرکم

## دکوزِ ملا ځمه وسوسه :-

حدیث شریف "یحمل هذا العلم من خلف عدوله" د صحابه کرامو فتوی ورکول، او د خلقو منل، او اکثر مسئلے داسی دی چه دلیل ورسره ذکر نه دے۔ د تفصیل د پاره مصنف عبدالرزاق، مصنف ابن ابی شیبۃ، او کتاب الآثار د امام محمد رحمه الله اوګوره۔

کوزِ ملا خپلے وسوسے، د خلقو په زړونو کښی په دی دول اچوی، لیکی "یو تقلید دے یو اتباع ده، تقلید بی دلیله خبره منل، یا بے د مطالبے د دلیل نه چا پسے تلل اودا کار حرام دے۔ او یو اتباع ده، هغه دیو عالم خبره منل د دلیل د وجه نه، او یا دغه خبره ظاهراً د دلیل خلاف نه وی۔ او اتباع جائز او حلال کار دے ص ۱۲۵

دکوزِ ملا دبیان خلاصه دا شوه، چه تقلید بی دلیله وی۔ او اتباع په دلیل سره وی۔ او کوزِ ملا مخکښی لیکلی " د مسئلی دلیل خو صرف قرآن او حدیث دے، او اجماع هم تائید دی، هغه هم مستقل دلیل نه دی ص ۵۵ -

محترمو رونړو اوس څه ستاسو په مخکښ د قرآن کریم نه یو څو آیتونه د نمونے په طور وړاندی کوُم۔ چه دکوزِ ملا د دی فرق حقیقت معلوم شی۔

(۱) إن يتبعون إلا الظن وإن هم إلا يخرصون ۔ سورۃ انعام آیۃ ۱۱۶

کوم ملا دلته اتباع ده، وایه ستا د قول مطابق په دی اتباع
د دوئ سره کوم آیت یا حدیث وُو ؟

(۲) إن تتبعون إلا الظن وإن أنتم إلا تخرصون ـ سورة انعام آیت ۱۴۹
کوم ملا د دی خلقو سره په دی اتباع کوم آیت یا کوم حدیث
یا کومه اجماع وه ؟

(۳) ولا تتبع أهواء الذین کذبوا بآیاتنا الایة سورة انعام آیت ۱۵۱
کوم ملا ستا په نیزد خو اتباع په قرآنی یا حدیثی دلیل سره وی
یعنی په اتباع باندی آیت یا حدیث دلیل وی، او په دی آیت
کښی د اتباع نه منع شویده، نو دا خو ستا د قول مطابق د قرآن
او حدیث نه منع شوه، آیا د قران وحدیث نه منع کول ستا
په نیزد باندی جائز دی؟ جواب بښه په سوچ سره راکړه۔

(۴) ولا تتبعوا السبل فتفرق بکم عن سبیله" الایة سورة انعام آیت ۱۵۴
کوم ملا ته خو وائی چه اتباع په قرآن وحدیث سره وی،
او په دی آیت کښی دی، چه د اتباع به تاسو د الله تعالیٰ
د لارے نه لری کړی۔ نو ولے قرآن وحدیث د الله تعالیٰ لارے
ته نزدی کوی، او که لرے کوی؟ قرآن کریم خو هدایت
دے " إن هذا القرآن یهدی للتی هی أقوم "

(۵) فأتبعه الشیطن فکان من الغوین ـ سورة الاعراف آیت ۱۷۵
ولے کوم ملا صاحب د شیطان سره هم قرآن او حدیث وُو ؟

(۶) فاتبعوا أمر فرعون وما أمر فرعون برشید - سورۃ هود آیت ۹۷

کونړ ملا وایه کنه، ولے د فرعون سره هم قرآن او حدیث وُو - چه خلقو ئے اتباع کوله ؟

(۷) واتبع الذین ظلموا ما اترفوا فیه وکانو مجرمین - سورۃ هود آیت ۱۱۶ -

کونړ ملا دلته اتباع دکوم آیت یا دکوم حدیث په وجه سره وه.

(۸) واتبعوا الشهوات فسوف یلقون غیًّا - سورۃ مریم آیت ۵۹ -

ولے کونړ ملا عقل د نصیب شه، خواهشات نفسانی هم دقرآن او حدیث نه د دیل لوی، چه خلقو ئے اتباع اوکړه؟ او تباه شو -

(۹) واتبع هواه فتردی - سورۃ طٰهٰ آیت ۱۶

کونړ ملا ستا په نیزد خواتباع د قرآن و حدیث نه په دلیل سره وی، نو دلته د خواهشات نفسانی سره هغه کوم آیت یا کوم حدیث دے ؟ او بیا هلاک ولے شو ؟

(۱۰) ولا تؤمنوا إلا لمن تبع دینکم، سورۃ آل عمران آیت ۷۳

( تلك عشرة كاملة )

کونړ ملا داسے نوری ډیری حوالے شته - صرف دنمونے دپاره دغه لس حوالے کافی دی - او که دچا زیاتے حوالے پکار وی. نو د قرآن کریم د تلاوت په موقع دِ داسی آیتونه نوټ

کوی، دیری حوالے به ورسره جمع شی. نو کونړ ملا ولے صریح قرآن نه خلاف کوے؟ هسی ځان د هم ګمراه کړے، او نګیا ئے نور هم ګمراه کوے، ګویا "هم تو ڈوبے ہیں صنم تم کو بھی لے ڈوبیں گے" باندې عمل کوے۔

کونړ ملا ځکښې لیکی، دیو عالم په ټولو مسئلو کښې تقلید کول او هغه ته ځان منسوب کول، لکه ځان ته حنفی یا شافعی وئیل دا کار صحابه کرامو کښې نه وُو الخ ص۱۲۵

جواب:- څه دلته بیا دا خبره کووم، چه د خیرهٔ کونړ ملا اوس رورو لږ. شان مسلمانیږی۔ ځکه چه دلته په تقلید شخصی رد کوی، ګویا مطلق تقلید ئے او منلو۔ کونړ ملا لږ دا راته اووایه، چه په صحابه کرامو یا تابعینو یا تبع تابعینو کښې چا ځان ته اهلحدیث، مرکزی اهلحدیث، غرباءاهلحدیث، شبان اهلحدیث، او جماعت غیرالمسلمین وئیلی وُو۔ ولے چا ځان ته سلفی یا ظاهری وئیلی وُو؟ نه ئے وُو وئیلی، او یقیناً ئې نه وُو وئیلی، نو تا سوځنګه ګږبهائی اهلحدیث یا جماعة غیرمسلمین والاوایئ۔ ما هو جوابکم فهو جوابنا.

کونړ ملا لیکی۔" موږ ابتداء کښې راوړی چه د عام سړی رجوع مفتی طرفته او د هغه نه د مسئلې تپوس کول، دی ته په اتفاق د علماؤ سره تقلید نه وائی۔ لکه امام آمدی په

الاحکام فی اصول الاحکام ۴/۲۲۱ ، او المستصفی کبنی غزالی
لیکی، او ابن القیم په اعلام الموقعین کبنی ص۱۴۵

## دکونړ ملا نه تپوس :-

تا په ابتداء کبنی دا هم ذکر کړی چه " د علماؤ اقوال دلیل نشی
کیدے ص۵۵ - نو دلته تری څنګه استدلال کوے، او که نه
وائے چه حجت ئے په تائید کبنی پیښی کوم، نو کوم شے چه
دلیل نشی جوړیدے، هغه تائید څنګه جوړیدے شی ؟

بله دا چه نه په ص۱۴۸ باندې لیکے "چه تقلید دچا په اجماع
سره ثابت دے، آیا د صحابه کرامو یا د تابعینو او که د تبع تابعین-
نو کونړ ملا د نورو نه خو په مسئله د صحابه کرامو یا تابعینو
یا تبع تابعینو اجماع غواړے- دلته چه تا اتفاق ذکر کړے چه
د عالم نه تپوس کول په اتفاق د علماؤ سره تقلید نه دے ص۱۴۵

نو کونړ ملا دا اتفاق کوم کوم صحابه کرام وو، که تابعین
او که تبع تابعین ؟ کونړ ملا دځان د پاره بیوه پیمانه او د
بل د پاره بله پیمانه د منافقانو کار دے. آیت "ویل للمطففین"
باندې جوړ ایمان نه لرے ؟ له خدایه ویریږه ، او خلق د
قرآن او حدیث په نوم مه دهوکه کوه-

کونړ ملا تا مخکبنی لیکلی "څوک چه د اجماع دعوی لری په

یوه مسئله کښې، نو د اجماع دپاره به مأخذ ضرور بیا نوی ص۴۸۔
کونړ ملا دلته چه تا د اتفاق او اجماع دعوی کړیده، دد ی دپاره تا څه مأخذ بیان کړے؟ تا خو په ص۴۲ دا هم ویلی چه اجماع او قیاس مستقل دلیل نه دی۔ نو دلته دِ څنګه په دلیل کښې پیش کړه۔
کونړ ملا آمدیؒ خو ویلی "وان سمی ذلك تقلیداً فلا مشاحة فی اللفظ" (۴-۲۲۵)
یعنی دیته تقلید هم وئیلے کیدیشی، نو ستا اجماع چه ستا په نیزد حجت هم نه ده چرته لاړه؟
کونړ ملا تا مخکښې دا ویلی "بی دلیله خبره منل یا بی مطالبے د دلیل نه چا پسے تلل حرام دی" ص۱۴۵ نو کونړ ملا که څوک ستا دا بی دلیله خبره اومنی، نو صرف هغه به حرامکار وی، او که نه به ورسره هم شامل ئے۔ بله دا چه د صحابه کرامو دا سے ډیری فتوی شته، چه نه پکښې دلیل شته، او نه د دلیل مطالبه شویده۔ مصنف عبد الرزاق او مصنف ابن أبی شیبه کښې دا سے بے شماره فتوی دی۔ نو آیا دا وئ حرام کار کولو او که جائز؟ د خیر القرون دی خلقو په باره کښې ستا څه رائے ده؟
کونړ ملا د ابن قیم یو اوږد عبارت نقل کړیدے، او روستو پسے وائی، "نو ثابته شوه چه د عامی سړی رجوع

مفتی ته، دی ته تقلید نه وائی . ص۱۴۶

کونړ ملا ستا په نیز د خودلائل د شرع دوه دی، بلکه تا په ص۴۲ باندی لیکلی، نو د ابن قیم دا قول ستا په نیز د قرآن دے او که حدیث، چه مسئله د تری ثابته کړه ، فافهم وتدبر۔

کونړ ملا لیکی" مدینے والو د زید بن ثابت فتوی آخستہ او د ابن عباس ئے پریښودله خو دا ولی۔ وجه دا وه چه د هغوئ اجتهاد هم د زید بن ثابت د اجتهاد پیشان وُو. ص۱۴۶

کونړ ملا چه دا خلق پله مجتهدین وُو نو دوئ د زید بن ثابت رضی الله عنه نه مسئله تپوسله ، لږ د "فاسئلوا اهل الذکر" بحث د مخبله لږ بیا اوګوره۔

کونړ ملا مخکښی لیکی ۔ او که دا او منو چه دوئ د زید بن ثابت تقلید کړی دی، نو مونږ وایو چه اولاً هغوئ د زید بن ثابت تقلید ټولو مسئلو کښی نه دی کړی ص۱۴۶

جواب : د کونړ ملا د بیان مطلب شو چه مدینے والو د زید بن ثابت رضی الله عنه په بعضے مسئلو کښی تقلید کړے دے ۔ د لته دوه خبری دی ۔

(۱) کونړ ملا په مخه لګیا دے وائی چه د صحابه کرامو په دور کښی تقلید نه وُو ، لکه مخکښی لیکی " تر څلورمی صدئ پورې تقلید نه وُو ، دا بدعت روستو پیدا شوید ص۱۴۸

او دلته وائی چه د زید بن ثابت رضی الله عنه په بعضے مسئلو کښې تقلید شوید ے۔ نو د صحابه کرامو په دور کښې تقلید پخپله دکونړملا د بیان نه ثابت شو، دا تضاد بیانی صرف په دی وجه ده، چه په سلفوا عتماد نه لري ،حالانکه تقلید محض اعتماد د ے۔

کونړملا د تقلید شخصی انکارکوی، او دلته ئے اثبات کوی۔ دا هم تضاد بیانی ده۔ په ص۱۴۸ باندی وائی چه تقلید بدعت د ے، نو العیاذ بالله دده نیز د صحابه کرامو او تابعینو بدعت کولو۔ کونړملا له خدا په ویریږه ، که د خیر القرون خلق بدعتیان شو نو بیا یا تے څوک شو؟ لږ سوچ اوکړه۔

کونړملا لیکی" دابن عباس فتوی صحیح وه" ص۱۴۹ جواب:۔ هرڅنګه چه وی،تقلید بلکه تقلید شخصی تري ثابت شو۔

کونړملا لیکی" نو آیا هغوئ (مدینے والا) په دی (د زید بن ثابت په) تقلید کښې ستا سو په زعم په حق روان وُو، اوکه په غلطه؟ ص۱۴۹

دکونړملا دا خیال د ے، چه د خیرالقرون دا خلق په غلطه روان وُو۔ باقی پا تے شوه دا خبره چه دچا فتوی

صحیح وه؟ نو مونږ مخکښې د بخاري او مسلم نه نقل کړي، امام بخاري رحمه الله باب تړلے "باب أجر الحاكم إذا اجتهد فأصاب او أخطأ"

عن عمرو بن العاص أنه سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا حكم الحاكم فاجتهد فأصاب فله أجران وإذا حكم فاجتهد ثم أخطأ فله أجر او صحیح البخاري (۲/۱۰۹۲) وصحیح مسلم (۲/۷۶) واللفظ للبخاري۔

## د کونړ ملا لسمه وسوسه:-

د حدیث معاذ بن جبل رضی الله عنه نه اهل السنة والجماعة په تقلید باندې استدلال کوي، دا حدیث مخکښې ذکر شویدے سره د ابوداؤد د حوالے ـ کونړ ملا ددې په باره کښې د خلقو په زړونو کښې دا سے وسوسه اچوي، لیکي، معاذ بن جبل چا یمن ته لیږلی وُو، نبي علیه السلام لیږلی وُو، نو د هغه خبره منل د نبي علیه السلام خبره منل وُو ص۱۴۷

شا به کونړ ملا! هغه د "الكذوب قد يصدق" خبره نن پتا باندې صادقه شوه ـ کونړ ملا د حضرت معاذ رضی الله عنه په دې حدیث کښې دې ـ چه که مسئله په کتاب الله یا سنت نبوي کښې نه وي، نو څه به اجتهاد کوم ـ او پیغمبر علیه السلام

تړي په دی خوشحاله شو، او تقلید هم صرف په اجتهادي مسئلو کښې کیږي، نو موږ هم داوایو چه لکه څنګه د حضرت معاذ رضی الله عنه اجتهاد مثل د پیغمبر علیه السلام خبره مثل دی د غه شان د نورو مجتهدینو هم دا خبره ده، ځکه چه مجتهدین له ځانه دین نه جوړوي، بلکه په ادلۂ شرعیه کښې غور وفکر کوي، او مسئله را او باسي، او خلق ئې مني، او دا دے تقلید - او که په یوه مسئله باندې د ادلۂ اربعه نه څه دلیل نه وي، نو دا سے مسئله موږ هم نه منو -

کوږ ملا لیکي" والله العظیم که د تقلید د اثبات د پاره هیڅ دلیل وي په قرآن او حدیث او آثار د صحابه کښې صـ۱۴۷، صـ۱۴۸ -

جواب :- کوږ ملا په دروغه د قسم اوخوړو، او ګوره تا مخکښې لیکلي" او که دا او منو چه دوئ د زید بن ثابت تقلید کړې دی، نو موږ وایو چه او لاهغوئ د زید بن ثابت تقلید په ټولو مسئلو کښې ندی کړی صـ۱۴۶ یعنی ستا په خیال مدینے والو د زید بن ثابت تقلید په ټولو مسئلو کښې نه دی کړي، بلکه په بعضے مسئلو کښې ئے کړے - نو عجیبه ده چه په صـ۱۴۶ د صحابه کرامو د تقلید اثبات کوے - او په صـ۱۴۸ پري قسم خورے، چه د صحابه کرامو د آثارو نه تقلید ثابت نه دے - واقعی "دروغ گورا حافظه نباشد" په یوه صفحه یو څه لیکي او په ورپسے صفحه بل څه -

## دکوټر ملایوٴ ولسمه وسوسه :-

موږ د شاه ولی الله رح دکتاب "عقد الجید" په حواله سره ذکرکړي چه د صحابه کرامو د زمانے نه تقلید را روان دے،

او چا پرې انکار نه دی کړی، نو ګویا دا اجماع سکوتی شوه،

کوټر ملا په دی باندی دخلقو په زړونو کښی دا سے وسوسه اچوی، لیکی "بعضے لا داوائي، چه اجماع سره تقلید ثابت دے

موږ وایو چه دچا په اجماع سره، دصحابه کرامو او که تابعینو

او که د تبع تابعینو، ص۱۴۸

جواب :- کوټر ملا تاچه په ص۱۴۵ لیکلی "ټپوس کول ته

په اتفاق د علماوٴ سره تقلید نه ولی، نو څه وایم چه دا علماء

صحابه کرام وو که تابعین وو او که تبع تابعین ؟

کوټر ملا مخکښی لیکی" ترڅلورمی صدئ پورې تقلید نه وُو.

دا بدعت روستو پیدا شوی دی . ص۱۴۸

جواب :- کوټر ملا شاه ولی الله رحمه الله خو وائي، چه د

صحابه کرامو د زمانے نه تقلید شروع دے . لکه د عقد الجید

حواله مخکښی تیره شوه . بل تا مخکښی په ص۱۴۶ باندی د حضرت

زید بن ثابت رضی الله عنه تقلید اګرچه په بعضے مسئلو کښی

دے، خو ثابت دکړو، او کوټر ملا دا زید بن ثابت رضی الله

عنه څه دکوټر او سیدو نکے نه وو . بلکه د مدینے منورے وو.

او صحابي وو، نو ته څنګه وائې چه د څلورمې صدئ نه روستو تقليد شروع شوید ے؟ بل ته د یته بدعت وائے، نو ستا په خيال صحابه کرام او تابعين بد عتيان وو، استغفر الله

کونړ ملا کله چه صحيح خبره در ته معلومه نوی، نو هسې اوتے بوتے مه وایه، او یو غړ او بل غړ مه جنګوه، د الله پاک ارشاد دے۔ "ولا تقف ماليس لك به علم إن السمع والبصر والفؤاد كل أولئك كان عنه مسئولا"

## دکونړ ملا دولسمه وسوسه :-

موږ وایو غیر مقلدین قیاس او اجتهاد نه منی۔ کونړ ملا پدی باره کښې د خلقو په زړونو کښې داسے وسوسه اچوی۔ لیکی "موږ وایو اجتهاد او قیاس په دین کښې شته۔ ص۱۴۸

جواب:۔ کونړ ملا خلقو له دهوکه ولے ورکوے؟ ولے تا مخکښې دا نه دی لیکلی "څوك چه د قیاسونو او آراء پسے روانی دی نو هغه به ګمراه کیږی۔ ص۴۵ یعنی ستا په نیزد قیاس ګمراهی ده، او ولے تا د قیاس په باره کښې هم پدی خپل کتاب کښې دانه دی لیکلی، "تابعینو د تقلید رد صراحتًا کړی دی، او د تقلید او قیاس بدی بیا نه کړی، ص۵۳ یعنی قیاس ستا په نیزد بدی ده، او د لته د خلقو د دهوکه کولو د پاره وائے چه قیاس دین کښې شته، قیاس

ستا په نیزد ګمراهي او بدي ده، نو د دې مطلب څو داشو، چه ګني دين کښې ګمراهي او بدي شته، العیاذ بالله

کونړ ملا مخکښې لیکي" قياس په هغه وخت کښې سرې کوي چه ضرورت راشي دیوې مسئلې، او قرآن حدیث کښې دا سرې پیدا نکړي ص۱۴۸

جواب۲ :- د حضرت معاذ رضي الله عنه حدیث مونږ څو ځله ذکر کړو، چه اجتهاد هله وي، چه په کتاب و سنت کښې مسئله صراحتًا میلا ؤ نه شي، یعني د نص په موجودګئ کښې د قیاس ضرورت نشته، لږ د قیاس د صحت شرائط اوګوره، نو پته به درته اولږي۔

کونړ ملا مخکښې لیکي" لکن دده اجتهاد به تول امت د پاره نه وي. دده د نفسی سره تعلق لري. ص۱۴۹،

جواب۲ :- کونړ ملا د حضرت معاذ رضي الله عنه په حدیث کښې دی "کیف تقضی إذا عرض لك قضاء" یعني چه کله تا له څوك مسئله راوړي نو ته به څنګه فیصله کوې؟ او د دې په جواب کښې حضرت معاذ رضي الله عنه وائي "أجتهد برأئي ولا آلو" ابوداؤد (۱۴۹/۲) د دینه خو معلومیږي، چه د ا اجتها د به د نورو خلقو د پاره هم وي - کونړ ملا ته څنګه وائې، چه د اجتهاد به دده د نفس د پاره وي، کونړ ملا ځان د پیغمبر علیه السلام او صحابه کرامو نه ولې زیات

هوښیار کنړے.

**دکونړ ملا قیاس:-** کونړ ملا دا مسئله د قبلې داشتباه په صورت کښې په تحری باندې قیاس کوی، کونړ ملا هم قیاس ته ګمراهی او بدی وائي، لکه مخکښې حوالے تیرے شوے. ع درکفرهم صادق نهٔ زنار را رسوا مکن
او بیا قیاس هم غلط کوی. د قبلې داشتباه مسئله د هغه چا سره متعلق ده، چه په چا اشتباه راغلې وی، نو د هغه اجتهاد هم د هغه سره خاص دے. پدې باندې د نورو فروعی او اجتهادی مسئلو چه عوام الناس ته پیښیږی، تیاس کول قیاس مع الفارق دے، کونړ ملا نه به په خپل زړه کښې خومره خوشحاله وے چه خومره د کمال خبره مې اوکړه، حالانکه داستاد کمال نه بلکه د جهل خبره ده. او دکوزخر نه زیات حیثیت نه لری.

**دکونړ ملا دیار لسم وسوسه:-** مونږ وایو چه د اصول حدیث او جرح وتعدیل خبرے ټولے اجتهادی دی، په یوه خبره هم نه د قرآن نه څه دلیل شته او نه د حدیث نه. او ټول امت بیا هم سره د غیر مقلدینو په دې مسئلو د محدثینو او ائمه جرح وتعدیل

په پټهو سترګو تقلید کوي۔ کونړ ملا ددې مسئلې په باره کښې د خلقو په زړونو کښې وسوسه پیدا ربنا اچوي، لیکي۔ "بعضې خلک (کونړ ملا "خلق" "ق" په ځای په "کاف" سره لیکلي) وائي چه تاسو د محدثینو خبره منئ دا هم تقلید دے، مونږ وایو دا تقلید نه دی، ځکه تقلید بې دلیله خبره منلو ته ویو چا۔ او محدث چه کله یو راوی ثقه کوي او یا یې ضعیف کوي نو په دلیل سره، او هغه دلیل د هغه مشاهده ده، هغه وائي چه ما فلانی لیدلی چه غلط کاروونه یې کول۔ ص۱۴۹

جواب :۔ کونړ ملا تاخو په ص۵۵ باندې لیکلي چه دلائل د شرع دوه دي یعنی قرآن او حدیث۔ اوس دا مشاهده پکښې لکومه ځای په دلیل شو۔ بل ته وائے چه د علماؤ قول دلیل نه دے ص۵۵۔ نو دا خو ټنښ د علماؤ اقوال دي۔ ځکه خو پکښې اختلاف دے۔ ګوره په حدیث معنعن کښې دا امام مسلمؒ او امام بخاریؒ یا علی بن المدینی رحمهم الله څومره سخت اختلاف دے۔ د مسلم مقدمه اوګوره، امام مسلمؒ څومره په سختو الفاظو کښې په مخالف رد کوي۔ د هغه شان یو راوی ته یو امام ثقه وائي، بل امام ورته ضعیف وائي، یو ورته امیر المومنین فی الحدیث وائي، بل ورته دجال من الدجاجلة وائي۔ نو دا خو ټول اختلافي مسئلے دي۔

او بیا یکښې هم قول امت د دوی تقلید کوی، دا قول اجتهادی خبری دی، او ستا د وینا مطابق که دا اجتهاد د دوی د نفس دپاره وی، او دلته یې نه هم تقلید کوې - نو د علماؤ اقوال چه ستا په نیز د دلیل نه دی - نو بیا په دیکښې ولې تقلید کوی؟

دویمه دا چه ته وائې، چه هغه دلیل د هغه مشاهده ده - لکه تقریب التهذیب، تهذیب التهذیب، میزان الاعتدال، او تهذیب الکمال او نور - مثلاً په تقریب کښې ابن حجرؒ د یو راوی په باره کښې څه لیکی، او حال دا چه هغه راوی به د دویمې یا دریمې صدئ وی، ابن حجرؒ د نهمې صدی دی، نو کوم ملا دلته خود هغه مشاهده هم نشته - سره د دې چه مشاهده څه دلیل نه دی - ځکه چه په مشاهده کښې غلطی هم راتلے شی -

بل نه لیکی "هغه وائې چه فلانی مالیدلی دی چه غلط کارونه به یې کول ص۱۴۹

کوم ملا عقل د نصیب سته، په کتب جرح و تعدیل کښې خو په نیکانو صالحانو باندې هم جرحه شته، هیڅ غلط کارونه یې نه کول، نهایت متقیان وُو، خو بیا پرې هم جرحه شته -

کوم ملا لیکلی لیکی "دویم پدې خبره دامت اتفاق

دے، نو اجماع شوه چه دراوبا نو منل شته ص۱۴۹!

جواب:۔ کونړ ملا کله چه مونږ اووایو چه تقلید باندی دامت اجماع ده، او بیا د مذاهب اربعه خو یری اجماع ده، نو ته هم ددی کتاب ددی ص۱۴۹ نه صرف په بل مخ یعنی ص۱۴۸ باندی څومره په چړچیقو لګیا وے "مونږ وایو چه دچا په اجماع سره، آیا د صحابه کرامو او که د تابعینو او که د تبع تابعینو؟ ص۱۴۸۔ نو کونړ ملا هم ستا دغه خبره څه ستا په مخکښی پروت دم، چه کونړ ملا دچا اجماع آیا د صحابه کرامو او که د تابعینو او که د تبع تابعین و؟ کونړ ملا دا هم ستا خبره ده، امید دے چه خپله خبره به در باندی ګرانه نه لږی، او کم از کم خپله خبره خو به منے کنه۔

کونړ ملا دلته دِ بیا پیمانه بدله کړه، د ځان د پاره یوه او د نورو د پاره بله۔ او ځان دِ یو ځل بیا په مطففینو کښی ور داخل کړو۔

کونړ ملا تا مخکښی لیکلی " د اجماع د پاره به ماُخذ ضرور بیانوی، هسی د اجماع دعوی صحیح نه ده۔ ص۴۸

کونړ ملا تا دلته د اجماع دعوی کړیده، او ماُخذ (قرآن او حدیث) د ورله نه دے بیان کړے، نو ستا د اجماع دا دعوی هم ستا په بیان سره باطله شوه، کونړ ملا تا خو

تقریبًا هغه کار کړے، کوم ته چه په دی آیت کښی اشاره ده،
"ولا تکونوا کالتی نقضت غزلها من بعد قوة انکاثا"
سورهٔ نحل آیت نمبر ۹۲ -
نو کونړ ملا عقل د نصیب شه، تا سوهم پخپله ئې جوړوئې او
پخپله ئے ورانوئې. کونړ ملا د احنافو په دشمنئ کښی سم په
سترګو ړوند شوید ے -
کونړ ملا لیکی "د دغه محدث خبره چه مونږ منو،
نو بالدلیل، که مونږ ته بل عالم اووائی چه دغه راوی
کمزوری نه دی او دلیل پیش کړی، نو د هغه خبره بیا منل
کیږی، ص ۱۴۹
جواب :- کونړ ملا ستا په نیزد خو دلیل د شرع صرف
قرآن او حدیث دی، لکه تا په ص ۲۰۴ لیکلی. د محدث مشاهده
هیڅ دلیل نه دے. بلهٔ دا چه ستا د زعم مطابق کله چه تا
د اول محدث خبره بالدلیل او منله، نو بیا غلطه څنګه شوه؟
ځکه چه په دلیل سره خبره خو غلطه نه وی. بله دا چه دغه
بل عالم چه دلیل پیش کوی، نو دا به د قرآن نه پیش کوی
او که حدیث نه، او که وائے چه خپله مشاهده په دلیل کښی
پیش کوی. نو ځه وایم چه د مخکینی محدث دلیل هم د هغه
مشاهده وه او غلطه او ختله، نو د دی بل محدث په مشاهده

څه دلیل دے، چه کنی دا به صحیح وی - داخونه دیوی غلطے نه اووتے په بله کبنی او نخښے، کونړملا داتولے دلامذهبیت کرشمے دی - څه څه توتے دربانذی کوی -

# دکونړملاخاتمه

کونړملا لیکی" زه په دی خبره پوهیږم چه ددی رسالے د لیکلو په وجه به ماته ډیرخلق متعصب او متشدد او بی ادب وائی صنـ۱۵ -

جوابٔ :- دریں چه شک - عیان راچه بیان -

کونړملا مخکښ لیکی" دارساله ما دالله د رضادپاره لیکلی صنـ۱۵

جواب :- کونړملا ولے دهوکه فریب غلط بیانی او تضاد بیانی هم دالله تعالیٰ د رضامندئ سبب ګرځی ؟ "ماسمعنا بهذا فی الملة الآخرة

کونړملا وائی" دغیرت دینی په وجهٔ م سختی خبری کړیدی لکه څرنګ چه نورو علماؤ هم داسے کړیدی، صنـ۱۵ -

جوابٔ :- کونړملا ما هم ستا په جواب کښی بعضے خبری څه سختی لیکلی، لکه تا چه لیکلی، ځکه چه " کما تدین تدان "

ع ولم یبق سوی العدوان دنّاهم کما دانوا

او داهم وایم "إن عدتم عدنا"

کونړ ملا مخکښې لیکي "ځه دچا د ملا منتیا پروانه لرم" صـ۱۵۰

جواب :- واقعي چا رښتیا ویلي دي "بے حیا باش هرچه خواهی کن"

کونړ ملا مخکښې لیکي "کله چه په یوه مسئله عمل کوئ، یا فتوی

ورکوئ، .......... بیا که میلاؤ نه شوه نو دیل عالم نه تپوس

او کړئ صـ۱۵۰

جواب :- کونړ ملا نه خو په عامي هم اجتهاد فرض کوے

نو هغه ستا په نیزد څنګه تپوس کولے شي۔ او آیت "وفوق

کل ذی علم علیم" خو ته هلته مځے ته نه یږدے۔

## کونړ ملا یوځل بیا مسلمانئ ته نږدې کیږي

لیکي "او که بیا هم ستا تسلي ونه شوه، او مقصود حاصل

نه شو۔ نو بیا دیو عالم د اجتهاد پسے لاړ شه، کوم چه

تا ته بهتر او په دین نیه پوه ښکاره کیږي۔ صـ۱۵۱

جواب :- کونړ ملا اوس بره ورو ورو بیا مسلما نیږي۔ اجتهاد

او تقلید مني، خو مصیبت دا دے، چه د کونړ ملا دا خبره

دده دمخکینئ خبری سره متضاد ده، کونړملا په ص۱۲۸ باندی لیکلی "چه دده اجتهاد به ټول امت دپاره نه وی، دده د نفس سره تعلق لری" نوکونړملا کله چه د مجتهد اجتها د دهغه دنفس سره تعلق لری، بل چا لره نوی- نودا سړے چه مسئله ئې معلومه نکړه، په ده باندی ددغه مجتهد اجتهاد مثل ستا په ښیږ څنګه جائز شو؟

کونړملا نه وائے چه "دیو عالم اجتهاد پسی لاړ شه کوم چه تا ته بهتر او په دین سره پوره ښکاره کیږی ص۱۵۱- او مخکښې د لیکلی "که ته وائی چه هغه دټولو علماؤ نه ښه پوهیږی نوځه وایم چه د صحابه کرامو نه هم ښه پوهیږی؟ ص۱۳۳ کونړملا دلته دِ ولے د صحابه کرامو نوم وانه غستو- بل ته هم په دغه صفحه باندی لیکے چه" دا رنګه تا ته د کومه پته اولګیده، چه دټولو خلقو نه ښه پوهیږی- داخو هلته کید یشی چه تا ته اقوال دټولوعلماؤ سره د دلائلو یاد وی، نو بیا به یکینی دا ښه او بد معلوم کړی ص۱۳۳ -

نو دا سړی به دلته ستا په دی مشوره "چه تا ته بهتر او په دین ښه پوه ښکاره کیږی،" باندی څنګه عمل اوکړی- کونړملا دی له خو عمر نوح پکار دے، چه اول هغه دټولو علماؤ اقوال سره د دلائلو معلوم کړی، نو بیا هله به ورته

سره او بد معلوم شي، او کونړ ملا عقل د نصیب شه، دا تکلیف مالا یطاق دے، چه د " لا یکلف الله نفسا إلا وسعها " نه سراسر خلاف دے۔
کونړ ملا دلته دِ بیا پیمانه بدله کړه، ځان له یوه او بل له بله، او د مطففینو په صف کښې ورننوتے۔

## کونړ ملا بیا په وسوسو شروع کوي :-

لیکي " زما شان یو وړوکې طالب العلم ضعیف الذهن (بې شانه) او ضعیف البدن (گویا مسئلے پیدا کولو له بدن هم پکار وي) یوه مسئله په قرآن او حدیث کښې پیدا کولے شي. ص ۱۵۱،

جواب :- کونړ ملا هم پدې صفحه صرف درې کرښے پورته دا لیکلي چه " دیو عالم اجتهاد په بسه لاړ شه " کونړ ملا مخکښې لیکي " تا سو خو الحمد لله زمانه په ډیرو چند ونو سره پوهیږئ ص ۱۵۱ ۔

جواب :- کونړ ملا ځکه خو درته مونږ وایو، چه هسې فضول مدغوږ یږه، چه علم دِ کم دے او نه پوهیږے، نو د اُعلم په مخکښې څه ویل بې ادبي او بد تهذیبي ده۔

کونړ ملا مخکښې لیکي " ستا سو هم تقلید ته ضرورت نه راځي که ځان په زوره د خیره نه محرومولے ص ۱۵۱ ۔

کونړ ملا لامذهبیت ته خیر وائی - یعنی شر ته خیر وائی، حالانکه "اللامذهبیة قنطرة اللادینیة" - بله دا چه پیا د مدینے والو دحضرت زید بن ثابت رضی الله عنه د خپل زعم مطابق په څو مسئلو کښې په صـ۱۴۶ تقلید ثابت کړے، نو ستا په خیال د خیرالقرون دغه ټول خلق د خیر نه محرومه وُو - کبرت کلمة تخرج من أفواههم " او اوس دِ وُنیلی وُو چه د بل چا په اجتهاد پسے لاړشه، نو دا ستا دا مشوره شرعًا څه حکم لری؟

کونړ ملا لیکی " دین کښې ټولی مسئلی په دی قواعدو کښې راجمع دی - صـ۱۵۱

جواب :- په صـ۱۲۶ باندی خو دِ د قاعدو ردکړیدے، دلته ئے اثبات څنګه کوے؟ دلته د بیا د مطففینو طریقه شروع کړه - بله دا چه لږ دا اووایه چه پدی قاعدو کښې حصر د قرآن کریم نه ثابت دے، اوکه د حدیث نه، هغه بیان کړه. اوکه نه وائے چه د اجماع نه، نو ستا په نیزد د اجماع دپاره مأخذ ضروری دے. صـ۴۸ نو د اجماع مأخذ د قرآن کریم یا د حدیث نه بیان کړه -

## کونړ ملا قاعدی ذکر کوی :-

(۱) الحلال بین (۲) الحرام بین (۳) وبینهما أمور مشتبهات

فمن اتقی الشبهات استبرأ لدینه - ص۱۵۱

جواب ۱ :- کوم ملا دیته قاعده په قرآن کریم کبن ویلی شویده؟ او که په حدیث کبن، هغه بیان کړه، او که دچا امتی قول دراغستے وی، نو تقلید دِ اوکړو، او دخپل قول مطابق دِ بخپله ځان د خیر نه محرومه کړو-

دویمه خبره داچه دا یو حدیث دے- تادری ځایه کړو، دا دِ دآیت یا حدیث په وجه اوکړو یا له ځانه؟ او له ځانه دِ کړے نو ستا قول څه حیثیت لری؟ ته خو دخپل قول مطابق په څو چنده ناپوهه یې- دبې وقوف سړی دخبری څه اعتبار وی؟

(۲) دع ما یریبك إلی مالا یریبك -

جواب :- کوم ملا دی ته قاعده په کوم آیت یا حدیث کبن ویلی شویده؟ او که دچا امتی قول دراغستے وی، نو تقلید دِ اوکړو، او دخیر نه محرومه شوے-

دویمه خبره داچه دا څلور قاعدی تا ذکر کړے، دادواړه جدا جدا حدیثونه دی- نو دا بعینه قاعدی دی، او که په قاعدو باندی دلیلونه دی- که ته وائے چه دا بعینه قاعدی دی، نو دعوی او دلیل یو شو، حالانکه دعوی جدا وی، او دلیل جدا وی- او که ته وائے چه دا دلیلونه دی، نو دعوی څه شوه؟

(۵) وما سکت عنه فهو مما عفی عنه۔

جواب :۔ کوم ملا دا آیت دے اوکه حدیث دے اوکه دچا امتی قول دے؟ اوکه قول دے نو د دی په قاعده کیدو او د دی په مفهوم باندی دلیل څه دے؟

(۶) الأصل فی الأشیاء الإباحة۔

(۷) مبنی العبادات علی التوقیف۔

(۸) عدم النقل دلیل العدم۔

جواب :۔ کوم ملا کوم سوال چه په پنځمه قاعده باندی وارد یږی، هغه په دی دریو واړو باندی هم وارد یږی۔ وضاحت او دلیل ستا په ذمه لازم دی۔

(۹) إنما الأعمال بالنیات۔

(۱۰) من حسن اسلام المرء ترکه ما لا یعنیه۔

جواب :۔ کوم ملا دلته هم هغه سوال وارد یږی، چه دی ته قاعدی په آیت کښی ویلی شوی دی اوکه په حدیث کښی؟ اوکه چا امتی ورته ویلی دی۔ که داسی وی، نو تقلید د او کړو، او د خیر نه محرومه شوے د خپل قول مطابق۔

(۱۱) کثرة وقوع الشئ مع عدم النهی عنه۔

(۱۲) ترک المسائل التی لم تنقح۔

جواب :۔ کوم ملا دا آیتونه دی اوکه احادیث؟ اوکه

دچا امتی قول دے؟ او د امتی قول دے۔ نو بیا د تقلید اوکړو، او دخپلے وینا مطابق دخیر نه محرومه شوے۔

(۱۳) تعاونوا علی البر والتقوی۔

(۱۴) ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان۔

جواب:۔ دیته په آیت کښ قاعده وئیلی شویده، او که په حدیث کښ؟ که چا امتی ورته وئیلی ده؟ نو بیا خودِ تقلید اوکړو، او دلته بیا دخپل قول مطابق دخیر نه محرومه شوے، او سپیره پو دړپاتے شوے۔

بله داچه دا په آیت کښ دی چه د آیت دوه ټکړے کړه، او دوه قاعدی توی جوړی کړه یا په حدیث کښ راغلی؟ یا دچا امتی قول دے، نو بیا دخپل قول مطابق دخیر نه محرومه پاتے شوے۔ اوکنه د استاد خپل نفس فیصله ده؟ نو ستا دنفسی فیصله په نورو خلقو څنګه حجت کیدے شی، ځکه چه مجتهد هم نه یئے دخپل قول مطابق خو چیندہ ناپوهه یئے۔ نو دناپوهه، کم عقل او بی وقوف سړی دخبری څه وزن وی؟

کونړ ملا کتاب خو د تقلید په رد کښ شروع کړے وُو، خو پدا خیر کښ ئے دومره تقلید اوکړو، چه سر ئے پری اوګرځولو، شابسے کونړملا ع ایں کار از تو آید و مرداں چنیں کنند۔

کونړ ملا مخکښ لیکي" داسې نوري قاعدے هم شته، چه جوامع د ټول دین دپاره دي، لکن دعلماؤ دپاره، ص۱۵۲

جوابؔ:- کونړ ملا دعلماؤ دپاره دا تخصیص دقرآن پاك نه ثابت دے اوکه له حدیث نه؟ اوکنه دا ستا دخپل نفس فیصله ده؟ اوکه دچا امتي قول دے؟ که دچا امتي قول دِ راغستے وي، نو دکتاب په اخیرکښ دِ هم تقلید اوکړو، او په اخیرکښ دِ هم ځان دخپل قول مطابق دخیر نه محرومه کړو- اوسپیره لړګے پاتے شوے- سپیره وے اوسپیره پاتے شوے- دا دقدرت فیصله ده، چه "وکذلك نفعل بالمجرمين"

الحمدلله چه نن دنهی په ورځ په ۲۶ محرم ۱۴۱۸ھ بمطابق ۳ رجون ۱۹۹۷ء دکونړ ملا درد لیکلو نه فارغ شوم- دسخت مصروفیت په وجه په کتاب کماحقه کلام اونشو څه مختصر معروضات مې پیش کړه- والله هوالموفق ع

گفتگو آيين درويشی نبود
ورنه با تو ماجرها داشتيم

الله تعالیٰ دِ داکتاب دمسلمانانو دپاره نفع بخش

اوګرځوی، چه دکونږ ملا دوسوسو نه هم شي
اوځما دپاره دِ دی زاد دآخرت اوګرځوی (آمین)

وصلی الله تعالیٰ علی خیر خلقه محمّد وآله
وصحبه أجمعین ومن تبعهم بإحسان
إلیٰ یوم الدین -

کتبه
ابو یوسف محمّد ولی درویش غفرلہٗ
الاستاذ بجامعة العلوم الاسلامیه
علامه بنوری تاؤن کراتشی ۷۴۸۰۰
۲۶ / ۱ / ۱۴۱۸ھ
۳ / ۶ / ۱۹۹۷ء

# نذرانۂ عقیدت بحضور طالبان به مناسبت فتح مزارشریف

اُخر را غلو تر لاسه مزار رورو — دی روان ترینه په تیښته کفار رورو

که خدائی کاندی اوس نمبر د بدخشان دے — ملا ما تیږی ور پسی د تخار رورو

د بامیان بتان به وار په کښه کېږ شی — دے په ماتی اوس د کفر حصار رورو

د کُنړ حالت هغه وخت د کتو وؤ — چه ئې او خوړو په ښځه کښې کنډار رورو

شریران د زمانے دلته راغونډ وؤ — دړه په دړه شو مفسدان تار په تار رورو

اوس د هائی کونړ کا نفس نغرے سوړے دی — ته به وے یوم التناد شو د و ښار رورو

اوس ئې هیڅ طرفته رود خلاصی نشته — را تنګیږی پری دائره د پرګار رورو

د کابل د مان ئې پوځ سره چینګ و تنګ کړه — ښکاره کیږی اصلاحات د معمار رورو

اوس آوانه د رباب نه د ډوکړئ شته — تر بتر شو فساق او فجار رورو

د ظلمونو وحشتونو شپه شوه تیره — را ښکاره شو ترینه ښکلے سحار رورو

بیا به دا خزان وهلے باغ سمسور شی — راروان دے پری د سره بهار رورو

هر طرف به د بلبل نغمے خورے شی — دی روان ترینه زاغان په قطار رورو

عندلیب به بیا په سرو ګلو چړچے کړی — خصمانه د باغ شروع کړه مالیار رورو

هر طرف ته د نارنج ګل و بزمی دی — سروے سرپور ته کوی په جویبار رورو

سوکالی شوه خوشحالی شوه ننداره دی — په سیالئ شو یو ځل بیا ننګرهار رورو

اوس به ستر ګی د دوستم مسعود زړه شی — شی له سره به ئې لرے خمار رورو

طالب جانه ستا همت ته مِ سلام دے — ستا د لاسه سرنګون شو اغیار رورو

---

له کیمونستان

د تباه معاشره دې کړه آباد ه — صحت مومي اوس ذخیره بیمار رورو

چه دې توئ کړلے په دشت لیلی وینے — په زلزل شو د طاغوت اقتدار رورو

سومنات دې د را تلو په انتظار دے — کله اخلے به قدم په دالاس رورو

یو ځل بیا د پانی پت میدان کړه ګرم — د تکبیر آوازا وچت په دیار رورو

ته بچے د غزنوي او ابدالي یے — را تازه کړه کارنامے دې د پلار رورو

پرتهوي راج بیا د سر اپورته کړے — دے پکار ورله د غوري ګذار رورو

هندو کے برندوي بیا ستر مسلم ته — جوړ شو هسې ترې ستا د تورې ښکار رورو

دا خو ستا د پلار میراث وو تا ته پاتې — کړه را تینګ خپل میراث هندو بار رورو

د بګرام کوندې به تل درته دعا کړي — لوټې لوټې کړه پنجشیر چاریکار رورو

چه د سره دا ما ده شي د شر غوښه — کړه ورسم پرې د تینکو نو قطار رورو

کفن تول درته یو شو جدائي بخیر کړ — د حباب په شان به اوچوي وار رورو

دا څما په لاس کلونه دي دامن — در شیندمه به ئې ستا مزار رورو

د درویش قلم به ستا په مدح جوړي
د بلبل په شان کوي به چغار رورو